«فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَاتَعْلَمُوْنَ»

# مصباح المُصلي

د

«پښتو شرحه»

## د منية المُصلي


مصنف

مولانا ناولي الله صاحب

پښتو ترجمه کوونکی

أستاد مولوی حافظ نور احمد الحقاني



المكتبة الحبيبية كاسي روډ کوټه

المكتبة الحبيبية ارګ بازار کندهار

## د کتاب پېژند پاڼه:


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | مصباح المُصلي پښتو شرحه د منية المُصلي |
| مصنف | مولانا ناولي الله صاحب |
| پښتو ترجمه کوونکی | أستاد مولوي حافظ نور احمد الحقاني |
| کمپوز | ترجمه کوونکي په خپله |
| زموږ شمېره | : : |



المكتبة الحبيبي كاسي روډ كوټه

المكتبة الحبيبي ارګ بازار كندهار



اَلْحَمْدُ لِلْمُنْعِمِ الْعَظِيْمِ الَّذِیْ اَنْعَمَ عَلَيْنَا بِفِقْهِ الدِّيْنِ. وَالصَّلوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ قَالَ مَنْ يُّرِدِ اللهُ بِهٖ خَيْرًا يُّفَقِّهْهُ فِى الدِّيْنِ وَعَلٰى اٰلِهٖ وَاَصْحَابِهِ الَّذِيْنَ بَذَلُوْا جُهْدَهُمْ فِىْ اِسْتِنْبَاطِ الْمَسَائِلِ وَاِشَاعَةِ الدِّيْنِ.

**امابعد:** تقریباً د نن څخه اووه سوه (۷۰۰) کاله مخکې د ویل سوي علم فقهي ابواب الصلوة باندي مشتمل کتاب "منية المصلي" ده، او د ديني مدارسو څخه ماسوای د مساجدو امامان يې هم د لمانځه د مسائلو ايزده کولو لپاره عوامو ته وايي، مګر دا کتاب په عربي ژبه کي د نويشتي او تحرير د وجي د عربي څخه نا خبرو خلګو ته د رسولو څخه وتلی وو، او د کوم استعداد والا طلباء هم د ده څخه کوماحقه استفاده نه سوای اخستلی، نو د دغه ضرورت په بناء پيش نظر مي په پښتو کي د ترجمې او تشريح لپاره مي قلم را واخست او د خدای په فضل سره مي دا شرحه مصباح المصلی پيل کړه، زما د کوم علمي په وجه که هرځای زما څخه خطايي، کوموالی او زياتوالی سوی وي نو په غرض د تصحيح به مشکور يم.

هم په دغه مقام زه د هغو ملګرو د شکريې ادا کولو بغير نه سم پاته کېدی چي هغوی د دې کتاب په اشاعت کي زما سره هر ممکن تعاون کړی دی، چي په هغوی کي حافظ عبدالوهاب غوريوال، حاجي افسرخان وزير، حاجي نقيب الله او معتصم بالله الهاشمي په خصوصي توګه د ذکر وړ دي، او په آخر کي د ټولو قارينو څخه زما داعاجزانه خواست دی چي يو وخت د دې شرحي څخه استفاده واخلي نو ما بنده، زما والدين،

استاذان او شاګردان هم په خپلو دعاوو کي یاد ولری، الله تعالی دي دا کتاب د طالبانو د علم لپاره نافع او زما لپاره د اٰخرت ذخیره وګرځوي۔

وَمَا ذٰلِکَ عَلَی اللہِ بِعَزِیز



اَلْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِهِ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

**ژباړه:** ټولې صفتونه خاص دي الله تعالى لره چي دی رب د عالمين دی، او ښه انجام دی لپاره د پرهيزګارانو، درود او سلام دي وي پر رسول د هغه چي حضرت محمد مصطفى ﷺ دی، او دغه رنګه دي درود او سلام وي د رسول ﷺ په کورنۍ او په اصحابو رضي الله عنهم باندي.

**تشريح:** مصنف د دې کتاب شروع د الله تعالى د برکت نوم او د هغه د حمد او په ثناء سره وکړه، لپاره د دې چي په اقتداء بالقرآن سره برکت حاصل سي .

دغه ډول نبي کريم ﷺ ويلي دي (كُلُّ اَمْرٍ ذِىْ بَالٍ لَمْ يَبْدَاءُ فِيْهِ بِالْحَمْدُ للهِ فَهُوَ اَقْطَعُ. وفى رواية لا يَبْدَاُ فِيْهِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ) چي هر هغه ذي شان کار چي د هغه شروع د الله تعالى د حمد او ثنا يا بسم الله سره نه وسي نو هغه کار نا مکومل پاتيږي، په دغه بيناد مصنف د کتاب ابتداء په بسم الله او ثناء سره وکړه چي زما دانيک مقصد نيمګړی نه سي.

او الله نوم دی د ذات حق واجب الوجود سبحانه وتعالى، او د رب معنٰى ده ساتونکی د ټول جهان، بحالت نصب و جر (عالمون) بحالت رفعه په استعمال کي په مخلوقات کي ذوی العقول لکه څنګه چي انسان، ملائکي او د جنات لپاره کيږي، مګر الله تعالى خو د غير ذوی العقولو هم مالک دی مګر کله چي د الله تعالى لپاره په (رب العالمين) کي د ذوي العقولو لپاره رب کيدل ثابت سوه نو په کائناتو

کي تمام غير ذوي العقول د اصحاب عقل تابع دي، نو الله تعالى د غير ذوي العقولو لپاره بدرجه اولى مالک سو.

د الله تعالى د حمد وثنا سره مصنف نيک خلک د حسن عاقبت څخه خبره وي او وايي چي د بهترين انجام مالکان هغه خلک دي چي په هر حال کي د الله تعالى څخه بېرېدونکي دي نو دلته په "العاقبة "سره لفظ حسن يا خير مضاف محذوف دی، او اصل عبارت يې (حُسْنُ الْعَاقِبَةِ يَا خَيْرُ الْعَاقِبَةِ لِلْمُتَّقِيْنَ) دی.

د دې څخه وروسته مصنف په نبی کريم ﷺ درود او سلام ذکر کړ، ولي چي د ده مبارک په واسطه سره پرموږ د علم ومعارف دروازې خلاصي سوي او د ده مبارک په نوراني خلې مبارکي سره د علم نورانيت وغورېدی او مبارک عليه السلام په ال يعني کورنۍ وعيال او اصحابو رضي الله عنهم باندي صلوة او سلام ذکر کړ ولي چي د دغه عظيمو خلکو په سخت محنت سره د نړۍ په هر کونج کي د علم دين چنارونه خلاص سوي دي او نن په ديارِ عجم کي موږ د صحابه کرامو رضي الله عنهم د محنت په برکت سره کلمه ويونکي يو.

اِعْلَمُوْا وَفَّقَكُمُ اللهُ تَعَالىٰ وَاِيَّانَا اَنْوَاعَ الْعُلُوْمِ كَثِيْرَةٌ وَّاَهَمُّ الْاَنْوَاعِ بِالتَّحْصِيْلِ مَسَآئِلُ الصَّلٰوةِ فَلَمَّا رَاَيْتُ رَغْبَةَ الْمُقْتَبِسِيْنَ فِيْ تَحْصِيْلِهَا الْتَقَطْتُ مَا كَثُرَ وُقُوْعَهُ لِلْمُصَلِّيْنَ وَمَا لَابُدَّ لَهُمْ مِّنْهُ مِنْ تَصْنِيْفَاتِ الْمُتَقَدِّمِيْنَ وَمِنْ مُخْتَارَاتِ الْمُتَاَخِّرِيْنَ نَحْوَ الْهِدَايَةِ وَالْمُحِيْطِ وَشَرْحِ الْاِسْبِيْجَابِيْ وَالْغُنْيَةِ وَالْمُلْتَقَطِ وَالذَّخِيْرَةِ وَفَتَاوٰى قَاضِيْخَانَ وَجَامِعَيْهِ وَسَمَّيْتُهُ مُنْيَةُ الْمُصَلِّيْ وَغُنْيَةِ الْمُبْتَدِئْ.

**ژباړه:** پوه سئ چي الله تعالى دي موږ ټولوته د ايزده کولو، پوهېدلو توفيق راکړي، چي د علم ډېر قسمونه دي، او په اعتبار د حصول د ټولو موهم مسائل د

لمانځه دي، نو مصنف رحمه الله وايي چي ما کله په مسائلو کي د لمانځه د طلباؤ زيات رغبت وليدی نو ما د مقدمينو په کتابو چي کوم د مقدمينو علماؤ د کتابو څخه متاخرينو علماوو خوښ کړي دي لکه : هدايه، محيط، شرح الاسبيجابي، غنية، ملتقط، ذخيره، فتاوٰی قاضي خان، جامع صغير وکبير څخه مي هغه مسائل راجمع کړي چي اکثره لمونځ کونکو ته مخته راځي، چي د هغه د ايزدکولوبغير چي لمونځ کونکي چاره نه لري، او د دې نوم مي" منية المصلي وغنية المبتدي "کښيښووی.

**تشريح:** مصنف رحمه الله په دغه عبارت کي وروسته له توفيق د دعاء، وجه د تصنيف بيانوي چي کله ما علومِ دنيه په طلباؤ کي مسائل د لمانځه ايزده کولو زيات محنت او شوق وليدی نو مي د انتهايي زيات محنت څخه کار واخستی، د معتبرو کتبو څخه کثيرالوقوع مسائل مي را جمعي کړي او دغه جمع کړي مسائل مي د کتاب په شکل کي مرتبي کړلي او د" منية المصلی "نوم مي ورکړ، يعني د لمونځ کونکي خوښه، ولي چي د لمانځه اکثره مسائل په دې کتاب کي بيان کړل سوي دي، نو دلمونځ کونکي لپاره د لمانځه په موضوع د دغسي جامع کتاب وجود د لمونځ کونکي خواهش وو او غنية المبتدي يعني ابتدايي طالب چي د نورو کتبو د مطالعې څخه قاصره ده د دې لپاره د نوروکتابو ضرورت ختم کونکی کتاب دی.

وَاَسْاَلُ اللهَ تَعَالٰی اَنْ يَّجْعَلَ مَااعْتَمَدْتُّهُ خَالِصًا لِّوَجْهِهٖ وَمُکَفِّرًا لِّذُنُوْبِيْ بِفَضْلِهٖ وَاَنْ يَّغْفِرَلِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِاُسْتَاذَيَّ وَهُوَ الْمُوَفِّقُ لِسَّدَادِ وَمِنْهُ الْهِدَايَةُ وِالرَّشَادُ.

**ژباړه:** او زه د الله تعالی څخه پوښتنه کوم چي زما دغه نيکه اراده، نيک مقصد يواځي د خپل رضا لپاره، او په خپل فضل وکرم سره زما د گناهونو د بخښش، او زما د مورپلار او استاذانو د مغفرت سبب جوړ کړي، او هغه ذات د خطاؤ څخه د ساتلو توفيق ورکونکی دی او د هغه د طرف څخه هدايت او استقامت دی.

**تشریح**: مصنف د الله تعالی په حضور کي د دې کتاب د قبولیت غوښتنه کوي، چي ای الله! زما د غه سعیه قبوله کړي او خپل رضا را نصیب کړي او زما ګناهونه خراب کړي او ورسره زما مور پلار او استاذانو ته هم مغفرت وکړي ولي چي د ګناهونو څخه د ځان ساتني توفیق او اسباب د هدایت او په دین استقامت اختیار کول د خدای د فضل وکرم سره ممکن دي .

اِعْلَمْ بِاَنَّ الصَّلٰوةَ فَرِيْضَةٌ ثَابِتَةٌ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَاِجْمَاعِ الْاُمَّةِ وَاَمَّا الْكِتٰبُ فَقَوْلُهُ تَعَالٰى اَقِيْمُوْا الصَّلٰوةَ وَقَوْلُهُ تَعَالٰى وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قَانِتِيْنَ اَىْ صَلُّوْا لِلّٰهِ قَآئِمِيْنَ وَقَوْلُهُ تَعَالٰى فَسُبْحٰنَ اللهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَعَشِيًّا وَّحِيْنَ تُظْهِرُوْنَ. وَقَوْلُهُ تَعَالٰى حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى وَقَوْلُهُ تَعَالٰى اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتَابًا مَّوْقُوْتًا اَىْ فَرْضًا مُّوَقَّتًا.

**ژباړه**: پوه سه چي لمونځ فرض دی، چي په قرآن، حدیث او اجماع امت سره ثابت دی .او کوم چي قرآن دی نو د الله تعالی دا قول ۱ لمونځ قائم کړئ، ۲ ودرېږئ الله لره د عاجزی په حالت کي یعني ودرېږئ او لمونځ وکړئ د الله تعالی لپاره، ۳ الله تعالی لره پاکي ده په وخت کي د سهار او ماښام او د هغه حمد دی په آسمانو او مځکو کي په وخت کي د ماخستن او ماپښین، ۴ د لمونځونو حفاظت وکړئ او د درمیانه لمانځه، ۵ بیشکه لمونځ فرض کړل سوی دی په مؤمنانو باندي په ټاکلي وخت یعني په اوقاتِ مقرره فرض دی .

**تشریح**: مصنف وایي چي د لمانځه فرضیت په قرآن کریم، د احادیثو رسول الله ﷺ او په اجماع درو سرو سره په قطعي طور ثابت دی، او د قرآن کریم څخه د فرضیت د ثبوت لپاره مختلف آیةِ قرآني یي ذکر کړه " اقیموا الصلوة "کي الله تعالی

د لمانځه د قائمولو حکم کړی دی، د لمانځه اقامت دادی چي د لمانځه د ادا کولو په وخت کي په تمامو ارکانو کي فرائض، واجبات، سنتونه او د مستحباتو خیال وساتل سي .

(وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ) یعني په لمانځه کي د الله لپاره په عاجزی درېدل کوئ، او ځینو علماؤ د قوموا لله معنی په صلّوا لله سره کړي ده چي د لمانځه د یوه رکن یعني قیام د ذکر څخه دلته د جز مراد کل دی، او د صاحب منیة المصلي میلان هم دغه طرف ته دی لکه څنګه چي په آیت کي دي" لَاتَقُم فِيهِ اَبَداً "دلته د لاتقم معنی په لاتصل سره کیږي .

حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى. یعني د لمونځو د حفاظت حکم ورکولو د درمیانه لمانځه په خاصه توګه ذکر کړی دی .

د درمیانه لمانځه په باره کي د علماؤ مختلف اقوال دي، د عمرو ابن رافع څخه روایت دی چي ما د ام المؤمنین حضرت حفصي رضي الله عنها لپاره د قرآن پاک یوه نسخه لیکله نو ام المؤمنین ماته وویل چي کله ته دغه پورته آیت مذکور ته ورسیږي نو به ماته ووایه نو کله چي زه دغه آیت ته را ورسېدم نو مي ام المؤمنین ته خبر ورکړی، نو ماته یې په دې طریقه د لیکلو حکم راکړ (حَافِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَالصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى)

(صلوة العصر موطاء امام مالک) نو د دې روایت مطابق د صلوة وسطٰی څخه مراد د ماځیګر لمونځ دی .

ځینو علماؤ د صلوة وسطٰی څخه مراد د ماپښین لمونځ کړی دی ولي چي دا د ورځي درمیان دی، ځینو د ماښام لمونځ نیولی دی، ولي چي دا نه نماز رباعي، د څلور رکعاتو والا لمونځ دی او نه ثنایي، د دوو رکعاتو والا دی بلکي د هغه په درمیان کي د درو رکعاتو لمونځ دی، او د دې څخه علاوه د نورو علماؤ اقوال هم

سته کوم چي د طوالت په خوف دلته نه نقل کیږي.

فَسُبْحَانَ اللهِ حِيْنَ تُمْسُوْنَ وَحِيْنَ تُصْبِحُوْنَ الخ یعني په اوقاتو مذکوره وو کي دالله تعالی تسبیح کوی، سبحان مصدر دلته د فعل سَبِّحُوا په معنی کي استعمال سوی دی، د هغو مفسرینو د قول مطابق چا چي دلته د تسبیح څخه لمونځ مراد اخستی دی ولي چي لمونځ په تسبیح مشتمل دی، د حضرت ابن عباس ﷺ څخه یو چا پوښتنه وکړه چي د پنځو لمنځو ذکر په قرآن کي سته؟ نو حضرت ابن عباس ﷺ وویل چي وو او په دلیل کي یي دغه آیت حِينَ تُمسُونَ ......الخ تلاوت کړ.

اِنَّ الصَّلوٰةَ كَانَت ......الخ، یعني لمونځ په مسلمانانو په خپلو محدودو اوقاتو کي فرض کړل سوی دی، او هر لمونځ په خپل وخت کول فرض دی او دلته د " كِتَابًا " څخه مراد فرض کېدل دي لکه څنګه چي د روژې په فرضیت کي" كُتِبَ عَلَيكوم الصِّيَام "فرمایلی دی.

وَاَمَّا السُّنَّةُ فَمَا رُوِیَ عَنِ النَّبِیِّ ﷺ فِی الصَّحِیْحَیْنِ اَنَّهُ قَالَ بُنِیَ الْاِسْلَامُ عَلٰی خَمْسٍ شَهَادَةُ اَنْ لَآ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ وَاَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللهِ. وَاِقَامُ الصَّلٰوةِ وَاِیْتَآءُ الزَّكوٰةِ وَصَوْمُ شَهْرِ رَمَضَانَ وَحَجُّ الْبَیْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَیْهِ سَبِیْلاً. وَقَوْلُهُ عَلَیْهِ السَّلَامُ لِكُلِّ شَیْءٍ عَلَمٌ وَعَلَمُ الْاِیْمَانِ الصَّلٰوةُ وَقَوْلُهُ عَلَیْهِ السَّلَامُ عِمَادُ الدِّیْنِ فَمَنْ اَقَامَهَا فَقَدْ اَقَامَ الدِّیْنَ وَمَنْ تَرَكَهَا فَقَدْ تَرَكَ الدِّیْنُ وَفِیْ رِوَایَةٍ فَقَدْ هَدَمَ الدِّیْنَ وَقَوْلُهُ عَلَیْهِ السَّلَامُ خَمْسُ صَلَوَاتٍ اِفْتَرَضَهُنَّ اللهُ تَعَالٰی عَلَی الْعِبَادِ مَنْ اَحْسَنَ وُضُوْءَ هُنَّ وَصَلَّهُنَّ لِوَقْتِهِنَّ وَاَتَمَّ رُكُوْعُهُنَّ وَسُجُوْدَهُنَّ وَخُشُوْعَهُنَّ كَانَ لَهُ عَلَی اللهِ عَهْدٌ اَنْ یَّغْفِرَلَهُ وَمَنْ لَّمْ یَفْعَلْ فَلَیْسَ لَهُ عَلَی اللهِ عَهْدٌ اِنْ شَآءَ غَفَرَلَهُ وَاِنْ شَآءَ عَذَّبَهُ وَقَوْلُهُ عَلَیْهِ السَّلَامُ اَلْفَرْقُ

بَيْنَ الْعَبْدِ وَبَيْنَ الْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلٰوةِ وَمَنْ تَرَكَ الصَّلٰوةَ مُتَعَمِّدًا يُفْضِيْ إِلَى الْكُفْرِ.

**ژباړه:** (۱) کوم حدیثونه چي د نبی کریم ﷺ څخه روایت کړل سوي دي چي د اسلام بنیاد په پنځو شیانو دی، د دې خبرې ګواهي ورکول چي د الله تعالی بغیر هیڅ څوک لائق د عبا.ت نسته او محمد رسول الله د الله رسول دی، لمونځ قائمول، زکوٰۃ ورکول، د روژې د ماشتي روژې او د بیت الله شریفي حج چي څوک د تلوطاقت لري.

(۲) د هر شي لپاره یوه علامه وي او د ایمان لپاره علامه لمونځ دی، (۳) لمونځ د دین ستن ده چا چي لمونځ قائم کړ نو هغه دین قائم کړ، چا چي لمونځ پرې ښوو ی نو هغه دین پرې ښودی، او په یوه روایت کي دي چي هغه دین ونړوی.

(۴) پنځه لمونځونه الله تعالی په خپلو بندګانو فرض کړي دي، چا چي په ښه طریقه سره اودس وکړ او په خپلو وختو کي یې وکړ او رکوع، سجدې او حضور د زړه کامل کړي نو د ده لپاره د الله په خپل فضل او کرم سره وعده ده چي دی به وبخښي او چي چا دغسي نه وکړه نو د هغه لپاره د الله تعالی هیڅ وعده نسته که چېري وغواړي نو به مغفرت ورته وکړي یا به عذاب ورکړي، (۵) د انسان او د کفر په مابینځ کي دلمانځه فرق دی چاچي په قصداً پرېښووی نو و کفر ته نیژدې سو.

**تشریح:** مصنف رحمه الله د ثبوت بالقرآن د فراغت څخه وروسته د لمانځه په باره کي د یو څو حدیثو تذکره کوي، او وایي چي نبی کریم ﷺ د اسلام بنیاد پنځه شیان ښوولي دي، نو په صحیحین کي د ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت سوی دی چي نبي کریم ﷺ وویل چي د اسلام بنیاد پر پنځو عباداتو دی چي په کومو کي د توحید و رسالت د اقرار وروسته بغیر د الله په نز هیڅ عمل قبول نه دی ، فوراً د لمانځه ذکر دی په کوم سره چي په اسلام کي د لمانځه اهمیت واضح کېږي، او دغه ډول نبي

کریم ﷺ لمونځ د ایمان علامه ښوولي ده او نبی کریم ﷺ د دین تشبه د یوې خیمې سره کړي ده لکه څنګه چي یوه خیمه هغه وخت قائمه کېدلی سي چي د هغې تنبې بانسونه ودرول سي او دغه ډول لمونځ په دین کي په منزله د تنبې دی چي د لمانځه په اقامت سره د دین اقامت کېږي او د لمانځه په پرېښولو سره د دین عمارت د یوې نړېدلي کانډوالې په شان دی.

په ابوداؤد شریف کي د عباده بن صامت ﷺ څخه روایت دی چي نبی کریم ﷺ وویل: چي الله تعالی په بندګانو پنځه لمونځونه فرض کړي دي، هر څوک چي په ښه طریقه سره اودس وکړي او دا لمونځونه په خپلو مقرره اوقاتو کي وکړي او رکوع په آرامه سره او پوره لمونځ په کاملي خشوع، توجه الی الله سره وکړي نو د ده لپاره د الله تعالی پخه مضبوطه وعده ده چي ده ته به بخښنه وکړي، او هر څوک دا ډول نه کوي، بالکل لمونځ نه کوي، یا په ښه طریقه سره یي نه کوي نو د هغه لپاره د الله تعالی هیڅ وعده نسته د نورو خطاکارو په مثال که چېري وغواړي بخښش به ورته وکړي یا به سزا ورکړي.

صاحب کتاب په دغه حدیث کي د "رُکُوعَهُنَّ" سره لفظ "سُجُودُهُنَّ" هم ذکر کړی دی او د "سجودهن" لفظ په حدیث مبارک کي ثابت نه دی.

وَاَمَّا اِجْمَاعُ الْاُمَّةِ فَلِاَنَّ الْاُمَّةَ قَدِاجْتَمَعَتْ مِنْ لَّدُنْ عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ عليه السلام اِلٰى يَوْمِنَا هٰذَا عَلٰى فَرْضِيَّةِ الصَّلٰوةِ مِنْ غَيْرِ نَكِيْرِ مُنْكِرٍ وَلَارَدَّ رَادٍّ وَلَامُنَازِعَةِ مُنَازِعٍ وَكَانَ ذٰلِكَ اِجْمَاعًا وَاِجْمَاعُ الْاُمَّةِ حُجَّةٌ مِّنْ اَقْوَى الْحَجَجِ بَعْدَ نَصِّ الْاٰيَاتِ وَالْخَبَرِ لِقَوْلِهٖ عليه السلام وَالسَّلَامُ لَايَجْتَمِعُ اُمَّتِيْ عَلَى الضَّلٰلَةِ فَاِنْ اِجْتَمَعَتْ اُمَّتِيْ عَلَى الضَّلٰلَةِ فَاَنَا بَرِيْءٌ مِّنْهُمْ وَهُمْ بَرِيْئُوْنَ مِنِّيْ.

**ژباړه**: او هرڅه چي اجماع د امت ده نو امت د رسول الله ﷺ د زمانې څخه تر ننه پوري په فرضيت د لمانځه متفق دی، بغير د انکاره د منکر يا رد ويونکي يا د جنګ کونکي د جګړې څخه، او دغه ته اجماع د امت وايي، د قرآن او حديث وروسته اجماع د امت يو قوي دليل دی ولي چي حضور ﷺ ويلي دي چي زما امت به په ګمراهي نه سي جمعه او چي کله زما امت په ګمراهي جمعه سو نو زه د هغوی څخه بيزاره يم او هغه امت زما څخه بيزاره دی.

**تشريح**: مصنف رحمه الله د رسول الله ﷺ د حديثو د بيان څخه وروسته په اجماع امت سره د لمانځه ثبوت بيانه وي، چي د نبی کريم ﷺ د زمانې څخه بيا ترنن ورځې پوري بغير د څه انکار او شکه پوره امت د لمانځه د فرضيت قائل دی او د پوره امت په يوه غلطۍ مجتمع کيدل امکان نه لري ولي چي نبی کريم ﷺ ويلي دي چي زما امت په څه ګمراهۍ نه سي جمع کېدلی او که چېري بالفرض محال جمعه سو نه زه د هغوی څخه بيزاره يم او هغوی به زما څخه بيزاره يي، نو اوس دا خو نسي کېدلای چي د پوره امت څخه عليه السلام بيزاره سي او نه هم پوره امت د عليه السلام څخه بيزاره کېدی سي. لهٰذا پوره امت په يوه ګمراهي سره نه سي جمع کېدی، د دې لپاره اجماع د امت په فرضيت د لمانځه يو قوي دليل دی.

ثُمَّ اِعْلَمْ بِاَنَّ لِلصَّلٰوةِ شَرَآئِطُ قَبْلَهَا وَفَرَائِضٌ وَاَرْكَانًا وَوَاجِبَاتٍ وَسُنَنًا وَاٰدَابًا وَكَرَاهِيَةً وَمَنَاهِيَ فِيْهَا اَمَّا الشَّرَآئِطُ فَسِتَّةٌ اَلطَّهَارَةُ مِنَ الْحَدَثِ وَالْجَنَابَةِ وَالطَّهَارَةُ مِنَ النَّجَاسَةِ وَسَتْرُ الْعَوْرَةِ وَاِسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ وَالْوَقْتُ وَالنِّيَّةُ.

**ژباړه**: بيا پوه سه چي د لمانځه څخه د مخه شرائط دي او په لمانځه کي فرائض، ارکان، واجبات، سنت، مستحبات، مکروهات او محرمات هم دي، شرائط يې ٦

دي، ۱ بې اودس کيدل، ۲ د جنابت څخه پاکي، ۲د ظاهري ګندګی څخه پاکي حاصلول، ۳عورت پټول، ۴ قبلې شريفي ته مخامخ درېدل، ۵ د وخت خيال کول، ۶ نيت کول.

**تشريح**: مصنف رحمه الله د لمانځه د فرضيت د ثبوت وروسته خپل مقصود يعني مسائل د لمانځه يي شروع کړه، شرائط جمع ده د شريطة، شرط په لغت کي د يوشي لازمي علامې ته ويل کېږي، او د شريعت په اصطلاح کي په کوم شي چي د يو شي وجود موقوف وي او د هغه بغير د هغه شي په صحيح طريقه سره کيدل ممکن نه وي نو هغه ته شرط ويل کېږي، صاحب د کتاب چي کوم شپږ شيان د لمونځو لپاره شرائط بيان کړي دي هغه ټول دغه سي دي چي د کومو بغير د مطلوب الی الشريعة لمانځه وجود ممکن نه وي، مګر دا ټول د لمانځه د وجود څخه خارج دي، او ارکان جمعه د رکن ده، د کومو په اجزا سره چي د يو شي ماهيت مرکب وي هغه ته ارکان ويل کيږي، لکه څنګه چي په قيام، رکوع او سجده وغيره سره لمونځ مرکب دی، نو چي کوم فرائض د لمانځه څخه خارج دي هغوی ته شرائط ويل کيږي او چي کوم په لمانځه کي دننه دي هغو ته ارکان ويل کيږي، او د فرائضو اطلاق په شرائطو او ارکانو دواړو باندي کيږي، واجب مشتق دی د وجب څخه چي معنی يې د اضطراب ده چونکي د واجباتو ثبوت په اضطراب کي کيږي، د فرائضو په ډول قطعي الثبوت نه دی، د دې لپاره واجبات ورته ويل کيږي اواجبات ياديږي، سنت مؤکده هغه دي چي په کومو نبی کريم ﷺ مواظبت کړی وي او د هغو په فرضيت هيڅ دليل نه وي، اداب جمع د ادب ده، په دوی سره لمونځ د زيات ادب والا جوړيږي، او د دوی په پريښوولو سره هيڅ عذاب يا عتاب نسته، کراهية مصدر دی د کره يکره څخه او دلته که چېري خلاف سنت مراد واخستل سي نو کراهت تنزيهي دغه دی، او که چېري خلاف واجب مراد واخستل سي نو کراهت تحريمي جوړيږي کوم چي حرامو ته نژدې

دی، د مناهی څخه مراد هغه افعال دي چې د لمانځه فاسد کونکي دي .

اَمَّا الطَّهَارَةُ مِنَ الْحَدَثِ وَالْجَنَابَةِ فَالْوُضُوْءُ وَالْاِغْتِسَالُ عِنْدَ وُجُوْدِ الْمَآءِ وَالْقُدْرَةُ عَلَيْهِ وَاَمَّا عِنْدَ عَدَمِهِمَا فَالتَّيَمُّمُ وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا فَرَائِضٌ وَسُنَنٌ وَّآدَابٌ وَمَنَاةٍ.

**ژباړه:** کوم چې پاکوالي دی د بي اودسۍ څخه او د جنابت څخه، نو اودس کول او مکمل بدن پريمنځل کله چې اوبه موجودي وي او د هغو په استعمال قدرت هم وي، چې کله دواړه نه وي نو تيمم کول دي، او د دوی څخه د هر يوه فرائض، سنن واداب او محرومات دي .

**تشريح:** چونکي د لمانځه د شرائطو څخه طهارت يو مهم شرط دی، ځکه چې مصنف د ټولو اول په دې تفصيل بيان کولو سره وايي چې د حدث حُکمي نجاست څخه پاکي حاصلول د اودس کولو او ځان پريمنځلو په ذرئعه سره حاصليږي، وضوء " بضم الواو مصدر دی او د حسن په معنی کي راځي د اودس په ذريعه د اعضاؤ د صفايي په سبب سره حسن حاصليږي، او د رسول الله ﷺ د حديث مطابق به د اوداسه اندامونه په ورځ د قيامت به روښانه او ځليږي، د دې لپاره د دغه عمل نوم يي اودس ايښی دی او دغه ته طهارت صغرٰی هم ويل کيږي .

نو کله چې اوبه موجودي وي او په استعمال يې هم قدرت وي، نو په حدث اصغر کي اودس، او په حدث اکبر کي غسل کول فرض دي، که چېرې د اوبو وجود يا په استعمال قدرت نه وو نو د دواړو قائم مقام تيمم دی او لکه څنګه چې د لمانځه لپاره فرائض وغيره وي نو دغه ډول په اودس او غسل کولو کي شريعت فرائض، سنت ومستحبات ومفاسد بيان کړي دي چې د هغو ذکر چې لاندي را روان دی.

اَمَّا فَرَائِضُ الْوُضُوْءِ فَاَرْبَعَةٌ كَمَا قَالَ اللهُ تَعَالٰى يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْآ اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَاَيْدِيَكُمْ اِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَاَرْجُلَكُمْ اِلَى الْكَعْبَيْنِ وَالْمِرْفَقَانِ وَالْكَعْبَانِ تَدْخُلَانِ فِيْ فَرْضِ الْغَسْلِ وَكَذَا مَابَيْنَ الْعِذَارَيْنِ وَالْاُذُنَيْنِ يَجِبُ غَسْلُهُ وَالْمَفْرُوْضُ فِيْ مَسْحِ الرَّاْسِ مِقْدَارُ النَّاصِيَةِ وَهُوَ رُبُعُ الرَّاْسِ لِمَا رُوِىَ الْمُغِيْرَةُ ابْنِ شُعْبَةَ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اَتٰى سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ وَتَوَضَّا وَمَسَحَ عَلٰى نَاصِيَتِهٖ وَخُفَّيْهِ.

**ژباړه:** د اوداسه فرضونه څلور دي لکه څنګه چي الله تعالی وايي چي ای مسلمانانو! کله چي تاسي ولاړ سی لمانځه ته نو خپل مخونه پريولئ او لاسونه ترڅنګلو پوري او مسحه وکړئ په خپلو سرو او پرېولئ پښې تر بجلکو پوري، د څنګلو او بجلکو دواړو پرېولل په فرائضو کي داخل دي او دغه ډول د دواړو بارخوګانو او د غوږو درمياني علاقه هم پرېولل واجب دي او د سر مسحه هم په مقدار د نزلې يعني د سر څلورمه حصه فرض ده ولي چي مغيره ابن شعبه د نبی کريم ﷺ څخه روايت کړی دی چي عليه السلام د يو قوم په کانډواله کي د قضاء حاجت څخه وروسته اودس وکړ او خپل ناصيه او په موزو يي مسحه وکړه .

**تشريح:** مصنف د فرائضو د اودس اثبات د قرآن پاک څخه وکړ او وې ويل چي الله تعالی وايي اې مومنانو چي تاسي د لمانځه اراده وکړئ نو مخونه پرېلولی، د مخ حدود د ډېرو فقهاء کرامو په نيز په اوږدوالي د تندي طرف د وريښتانو د مقام څخه بيا لاندي ترزني پوري دی، او په پراخوالي کي د دواړو غوږو په درميان کي دی، د امام يوسف رحمه الله په نز د غوږ پتی چي د غوږ د طرف څخه د ږيري تر آخري کناری پوري او د غوږ په درميان کي تقريباً د يوې ګوتي برابر دی او په دغه پتی د

غوږو د بيري وريښتان نه راځيژي د مخ په حدودو كي داخل نه دي او د دغه پرېولل ضروري نه دي، مصنف د امام يوسف په قول رد كولو سره ويلي دي"مَا بَيْنَ العِذَارَيْنِ وَالأُذُنَينِ يَجِبُ غَسلُهُ "يعني د غوږ د پتۍ پرېولل هم ضروري دي او داهم د مخ په حدودو كي شمار دى.

دغه رول الله ﷺ د لاسونو ترڅنګلو پوري د پرېوللو حكم كړى دى، مرافق د مرفق جمع ده، په لاس كي د بازو لاندي او د ذراع څخه پورته درمياني مصافې ته وايي، او د دې وروسته يې د سر د مسحي حكم كړى دى، مسحه په لغت كي په يو شي د بل شي تيرولو ته ويَل كيږي او په شريعت مطهره كي لوند لاس پر هغه مواضعو تيرول د كومو چي په شريعت كي حكم دى او په تيمم كي د مسحه لغوي معنٰى مراد اخستل كيږي، او د پښو تر بجلكو پوري د پرېولوحكم دى.

كه څېري دا پوښتنه وسي چي د مفسرينو د قول مطابق دا آيت مدني دى او لمونځ په مكه مكرمه كي فرض سوى دى، نو د دې آيت د نزول څخه ترمخه لمونځ بغير اوداسه وو؟

ځواب دادى چي د اودس حكم د دې ترمخه يا خو د وحي غير متلو په ذريعه وو يا د تېرسوو پيغمبرانو په شريعت كي د اودس حكم وو او د مكې د زندګۍ په دور كي په دغه عمل كېدى، لكه څنګه چي نبي كريم ﷺ اودس كوى نو تهوله اندامونه به يي درې درې واره پرېولل او ويل يې چي دا زما او زما څخه ترمخه تېر سوي انبياوودا اودس وو.

په " وَالمِرفَقَانِ وَالكَعبَانِ تَدخُلاَنِ فِي فَرضِ الغُسلِ"كي مصنف يو اختلافي بحث راخستى دى، د جمهورو علماؤ په نز څنګلي او پښې تر بجلكو پوري پرېولل فرض دي، مګر د امام زفر رحمه الله په نز فرض نه دي، هغه وايي چي مرفقان او كعبان دلته د انتهاء لپاره بيان كړي دي، د لاسو پرېولل ترڅنګلو پوري او د پښو پرېولل تر بجلكو

پوري دي، خپله ښنګلي او بجلکي د پړپولو په فرائضو کي داخل نه دي .

جمهور علماء وايي چي چېري غايت، انتها د ماقبل جنس ښخه وي نو هغه هم د ماقبل په حکم کي داخلېږي لکه (حفظت القرآن او له الٰى آخره) کي د قرآن اٰخر هم د قرآن د جنس ښخه دی، ځکه چي تر آخره مراد د قرآن پاک حفظ دی نو دلته هم مرفقان د يد د جنس ښخه دي او کعبان رجل د پښو د جنس ښخه دي او د دوی پړپولل هم فرض دي .

د سر په مسحه کي مقدار ښلورمه حصه ده او د امام مالک رحمه الله په نز د ټول سر مسح فرض ده لکه ښنګه چي په آيت تيمم کي" فامسحو بوجوهکوم "ښخه د پوره مخ استعاب فرض دی، او امام شافعي رحمه الله د آيت په اطلاق عمل کولو سره د سر په ادنی جزء باندي مسح کول يعني که ښه هم يو ښه وريښتان وي مسح يي جائز ګڼلي ده، د احنافو په نز د نبی کريم ﷺ د عمل مبارک په پيروي کي ناصيه ښلورمه حصه مسح فرض ده .

وَاَمَّاسُنَنُهُ فَغَسْلُ الْيَدَيْنِ قَبْلَ اِدْخَالِهِمَا الْاِنَآءَ اِلَى الرُّسْغِ ثَلاَثًا قَالَ النَّبِيُّ ﷺ اِذَا اسْتَيْقَظَ اَحَدُكُمْ مِّنْ مَّنَامِهٖ فَلاَيَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِى الْاِنَآءِ حَتّٰى يَغْسِلَهَا ثَلٰثًا فَاِنَّهُ لاَيَدْرِیْ اَيْنَ بَاتَتْ يَدَهُ مِنْ جَسَدِهٖ وَتَسْمِيَةُ اللّٰهِ تَعَالٰى فِیْ اِبْتِدَآئِهٖ وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ يُسَمِّیْ مَرَّتَيْنِ قَبْلَ كَشْفِ الْعَوْرَةِ وَمَرَّةً بَعْدَ سَتْرِهَا وَالشَّهَادَةُ عِنْدَ اِبْتِدَآءَ غَسْلِ سَآئِرِ الْاَعْضَآءِ وَالْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ بِمَآئَيْنِ جَدِيْدَيْنِ وَاِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى مَاتَحْتَ الشَّارِبَيْنِ وَالْحَاجِبَيْنِ وَمَسْحُ مَا اسْتَرْسَلَ مِنَ اللِّحْيَةِ وَتَخْلِيْلُهَا وَاِسْتِيْعَابُ جَمِيْعِ الرَّاْسِ فِى الْمَسْحِ بِمَآءٍ وَّاحِدٍ وَكَيْفِيَّةُ اِسْتِيْعَابِ الْمَسْحِ اَنْ يَّاْخُذَ

اَلْمَآءَ وَيَبُلَّ كَفَّيْهِ وَاَصَابِعَهُ ثُمَّ يُلْصِقُ الْاَصَابِعَ وَيَضَعُ عَلٰى مُقَدَّمِ رَأْسِهٖ مِنْ كُلِّ يَدٍ ثَلٰثَ اَصَابِعَ وَيُمْسِكُ اِبْهَامَيْهِ وَسَبَّابَتَيْهِ وَيُجَافِي بَطْنَ كَفَّيْهِ عَنْ رَأْسِهٖ وَيَمُدُّ هُمَا اِلَى الْقَفَاءِ ثُمَّ يَضَعُ كَفَّيْهِ عَلٰى جَانِبَيِ الرَّأْسِ وَيَمْسَحُهُمَا وَيَمُدُّهُمَا اِلٰى مُقَدَّمِ الرَّأْسِ وَيَمْسَحُ ظَاهِرَ اُذُنَيْهِ بِبَاطِنِ اِبْهَامَيْهِ وَبَاطِنَ اُذُنَيْهِ بِبَاطِنِ مُسَبِّحَتَيْهِ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَيَمْسَحُ الرَّقَبَةَ بِظُهُوْرِ الْاَصَابِعِ الثَّلٰثِ بِمَآءٍ جَدِيْدٍ وَقَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ اٰدَابٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ سُنَّةٌ وَتَخْلِيْلُ الْاَصَابِعِ وَتَكْرَارُ الْغَسْلِ اِلَى الثَّلٰثِ وَالنِّيَّةُ وَالتَّرْتِيْبُ وَالدَّلْكُ وَالْمُوَالَاتُ.

**ژباړه:** د اوداسه چي کوم سنت دي نو دواړه لاسونه تر ښنگلو پوري دري واره پريولل دي مخکي تر داخلولو په يو لوښي کي، نبي کريمﷺ ويلي دي چي کله ستاسو څخه يوڅوک د خوب څخه را کښيني نو لاس دي نه اچوي په يو لوښي کي مخکي تر درو وارو پريوللو، ولي چي ده ته څه معلوم دي چي د ده لاس تهوله شپه د جسم د کومي حصې سره پروت وو، او د اودس په شروع کي بسم الله ويل او صحيح داده چي بسم الله دوه واره ووايي، يو وار د کشف عورت (استنجاء) ترمخه، او يو وار وروسته، او کلمه شهادت د هر اندام تر پرېوللو ترمخه ويل کيږي، او په جلا جلا اوبو سره په خوله او پوزه کي اوبه اچول، او بريتو او د ورڅو لاندي حصې ته اوبه ورسول دي، او د ږيري لاندي زړېدونکي وريښتان مسح کول، او د ږيري خلالول، او د پوره سر مسح کول په يوه وار اوبو سره، او د پوره سر د مسح کولو طريقه داده چي اوبه راواخلي ورغوي او لاسونه لانده کړي، بيا د هرلاس دري دري گوتي يوځاى کړي، د سر په اولنۍ حصه باندي يې کښيږدي، د گوتو تسبيحي گوتو او د ورغوو

باطني حصه د سر څخه وساتي او دواړه لاسونه شاته د غاړي و طرف ته يوسي د دې وروسته ورغوي د سر په دواړو اطرافو راسته چپه طرف کښيږدي او په دواړو مسح کولو سره يي سيده يوسي او د غوږو بيروني حصه د ګوتو په باطن او دننه حصه يي د تسبيح د ګوتو په باطن سره مسح کړي، دغه ډول په محيط کي د مسح طريقه ذکر کړل سوي ده، بيا دي مسح وکړي د غاړي د درو ګوتو په ظاهر سره او په نوو ابو سره، ځينو علماوو د غاړي مسح ته مستحب ويلي دي او ځينو سنت، او د ګوتو خلال او درې واره پرېولل، نيت کول او ترتيب قائمول او پرله پسې پرېولل.

**تشريح**: منصف رحمه الله په دغه عبارت کي د اودس سنتونه بيان کړي دي د نبي کريم ﷺ څخه عبدبن زيد بن عاصم روايت کړي دی، چي عليه السلام د اوداسه په اول کي درې واره لاسونه پرېولل او دغه ډول د اوداسه په شروع کي بسم الله ويل سنت ده، مګر د فقهاء کرامو په دغه باره کي اختلاف دی چي تسميه د استنجاء څخه ترمخه يي او که وروسته د اودس کولو په وخت کي، نو مصنف د دغه اختلاف څخه د ځان ساتلو لپاره وويل چي بسم الله دوه واره ويل پکار دي، د کشف عورت يعني د استنجاء څخه ترمخه او د اودس کولو په وخت کي دي بيا ووايي، د هدايې مصنف بسم الله ويل مستحب ليکلي ده، ځينو د اوداسه په شروع کي د نبي عليه السلام څخه" بسم الله العظيم والحمدلله علي دين الاسلام "الفاظ نقل کړي دي او ځينو صرف بسم الله الرحمن الرحيم ته افضل ويلي دي، د خولې او پوزي پرېوللو لپاره جلا اوبه اخيستل لکه څنګه چي امام طبراني د کعب بن عمرو اليمامي څخه روايت کړي دی چي نبي کريم ﷺ په اوداسه کي درې واره خوله او درې واره پوزه ومينځل او د هر وار لپاره يي جلا جلا اوبه اخستلي، د بريتو او وريځو لاندي اوبه رسول هم سنت دي، او صاحب تجنيس دا په مستحباتو کي شمار کړي دي، او د ږيري ځرېدونکي وريښتان لندول او د ږيري خلالول هم سنت دي لکه څنګه چي امام

ترمذي او ابن ماجه د حضرت عثمان څخه روایت کړی دی چي نبي علیه السلام ږیره خلالوله او امام ابوداود د حضرت انس ﷺ څخه روایت کړي دي چي کله به علیه السلام د یولوبني څخه اوبه په لاس کي واخستلي، نو د لاندیني حصې څخه د ږیري په پرېولوسره یي وول چي دغه ډول ماته الله تعالي حکم کړی دی.

او د پوره سر مسح کول هم سنت دي، علیه السلام په دې باندي همیشه توب کړی دی، او کله کله یي د پوره سر مسح پرې ایښي ده لکه څنګه چي د حضرت مغیره په روایت کي تیر سویدي، دا د دغه تعلیم لپاره وو چي د همیشه توب په وجه سره د پوره سر مسح فرض ونه ګڼل سي، د غاړي په مسح کي د فقهاوو اختلاف دی ځینو سنت او ځینو مستحب ګڼلي ده، او د صحیح قول مطابق مستحب ده، په فتاوٰی قاضیخان کي راغلي دي چي د غاړي مسح نه سنت ده او نه مستحب او د حلقوم مسح بدعت دی، د ګوتو خلالول هم سنت دي لکه څنګه چي د لقیط بن صبره څخه روایت دی چي نبي علیه السلام په کامل او احسنه طریقې سره په اوداسه کي په ګوتو کي خلال وکړ، او د عبدالله بن عباس ﷺ په روایت کي دي چي علیه السلام وویل چي کله تاسي اودس کوی نو د لاسو او پښو په ګوتو کي خلال کوی، او د اوداسه اندامونه درې درې واره پرېولل سنت دي، ولي چي علیه السلام اودس وکړ او ټوله اندامونه یي یو یو وار پرېولل او د هغه وروسته یې وویل چي دا اودس دی، د دې بغیره الله تعالی لمونځ نه قبلوي او چي کله یې دوه دوه واره اعضاء پرېولل نو وې ویل چي په دغه اوداسه سره الله تعالي اجر دوه چنده کوي او د درې واره پرېوللو په باره کي یې وویل چي دا زما او زما د مخکنیو انبیاؤ اودس دی، نو د دې څخه دا ثابته سوه چي یو وار پرېولل فرض، او درې واره هر اندام پرېولل دانبیاء علیهم السلام سنت دي او د درې واره څخه زیات که په اعتقاد سنت سره وي نومکروه دی او که چېري د شک په وجه د زړه د اطمینان لپاره وي نو مکروه نه دی

او نیت هم د اوداسه لپاره سنت دی فرض نه دی، د ائمه ثلاثه وو په نز فرض دی او ترتیب لکه څنګه چي په آیت الوضوء کي ذکر دی سنت دی ولي چي یو وخت نبي کریم ﷺ څخه د اودس کولو په وخت کي مسح پاته سوه او د فارغیدو وروسته یي د سر مسح په یاد سوه نو فقط د سر مسح یې وکړه، که چېري ترتیب فرض وای نو علیه السلام به نیوی اودس کړی وای، او دغه ډول په خوله کي، په پوزه کي اوبه اچولو او د مخ پرېوللو په مابینځ کي هم ترتیب سنت دی، او د هر اندام پرېوللو په وخت کي مږل هم د تکمیل د فرضو سنت دی، او پرله پسې اندامونه داسي پرېولل چي د هر اندام د وچېدو تر مخه بل اندام پریولي دا سنت دی .

وَاَمَّا اٰدَابُهٗ فَهُوَ اَنْ يَّتَاَهَّبَ لِلصَّلٰوةِ قَبْلَ دُخُوْلِ الْوَقْتِ وَاَنْ يَّجْلِسَ لِلْاِسْتِنْجَاءِ اِلٰى يَمِيْنِ الْقِبْلَةِ اَوْ اِلٰى يُسَارِهَا مُتَفَرِّجًا اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ صَآئِمًا وَاَنْ يَّغْسِلَ مَخْرَجَ النِّجَاسَةِ اِذَا لَمْ تَتَجَاوَزِ النِّجَاسَةُ مِنْ مَّخْرِجِهَا فَغَسْلُهٗ مُسْتَحَبٌّ اَمَّا اِذَا جَاوَزَتْ مَخْرَجَهَا وَلَمْ تَكُنْ قَدْرَ الدِّرْهَمِ فَغَسْلُهٗ سُنَّةٌ وَاِنْ كَانَتْ قَدْرَا الدِّرْهَمِ فَغَسْلُهٗ وَاجِبٌ وَاَمَّا اِنْ زَادَتْ عَلٰى قَدْرِ الدِّرْهَمِ فَغَسْلُهٗ فَرْضٌ وَالْاَدَبُ اَنْ يَّغْسِلَهٗ حَتّٰى يُنَقِّيَهٗ وَلَيْسَ فِيْهِ عَدَدٌ مَسْنُوْنٌ وَكَذَا فِى الْاِسْتِنْجَاءِ بِالْاَحْجَارِ يَمْسَحُ حَتّٰى يُنَقِّيَهٗ وَاَنْ يَّمْسَحَ مَوْضِعَ الْاِسْتِنْجَاءِ بِالْخِرْقَةِ بَعْدَ الْغَسْلِ قَبْلَ اَنْ يَّقُوْمَ وَاِنْ لَّمْ تَكُنْ مَعَهٗ خِرْقَةٌ يُجَفِّفُهٗ بِيَدِهِ الْيُسْرٰى وَاَنْ يَّسْتُرَ عَوْرَتَهٗ حِيْنَ فَرَغَ وَاَنْ يَّتَوَلّٰى فِىْ اَمْرِ الْوُضُوْءِ بِنَفْسِهٖ وَلَا يَاْمُرَ غَيْرَهٗ لِقَوْلِهٖ عليه السلام اَنَا لَا اَسْتَعِيْنُ عَلٰى طَاعَةِ اللّٰهِ تَعَالٰى اِلَّا بِالضَّرُوْرَةِ وَاَنْ يَّجْلِسَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ عِنْدَ غَسْلِ سَآئِرِ الْاَعْضَاءِ وَاَنْ يَّكُوْنَ جُلُوْسُهٗ عَلٰى

مَكَانٍ مُرْتَفِعٍ وَاَنْ لَايَتَكَلَّمَ فِيْ اِثْنَآءِ الْوُضُوْءِ بِكَلَامِ الدُّنْيَا وَاَنْ يَّتَشَهَّدَ عِنْدَ غَسْلِ كُلِّ عُضْوٍ وَاَنْ يَّدْعُوَ بِمَا جَآءَ فِي الْاٰثَارِ وَاَنْ يُّمَضْمِضَ وَيَسْتَنْشِقَ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى وَيَمْتَخِطَ وَيَسْتَنْثِرَ بِيَدِهِ الْيُسْرٰى وَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّاْخُذَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مَآءً جَدِيْدًا وَاَنْ يَّسْتَاكَ بِالسِّوَاكِ اِنْ كَانَ لَهٗ مِسْوَاكٌ وَاِلَّا فَبِالْاَصْبَعِ وَاَنْ يُّبَالِغَ فِي الْمَضْمَضَةِ وَالْاِسْتِنْشَاقِ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ صَائِمًا وَالْمُبَالَغَةُ فِي الْمَضْمَضَةِ قَالَ بَعْضُهُمْ هِيَ الْبَغْرَغْرَةُ وَقَالَ صَدْرُ الشَّهِيْدِ هِيَ تَكْثِيْرُ الْمَآءِ حَتّٰى تَمْلَاُ الْفَمُ وَفِي الْاِسْتِنْشَاقِ جَذْبُ الْمَآءِ حَتّٰى يَصْعَدَ اِلٰى مَنْخَرِهٖ وَاَنْ يَّدْخَلَ اِصْبَعَيْهِ الْخِنْصَرَيْنِ فِيْ صِمَاخِ اُذُنَيْهِ عِنْدَ الْمَسْحِ وَاَنْ يُّخَلِّلَ اَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِ يَدِهِ الْيُسْرٰى وَاَنْ يُّحَرِّكَ خَاتِمَهٗ اِنْ كَانَ وَاسِعًا وَاِنْ كَانَ ضَيِّقًا فَفِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ عَنْ اَصْحَابِنَا لَابُدَّ مِنْ تَحْرِيْكِهٖ اَوْ نَزْعِهٖ هٰكَذَا ذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ وَاَنْ لَّا يُسْرِفَ فِي الْمَآءِ وَاِنْ كَانَ عَلٰى شَطِّ نَهْرٍ جَارٍ لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ اَنَّهٗ سُئِلَ اَوَفِي الْوُضُوْءِ سَرَفٌ قَالَ نَعَمْ وَلَوْ كُنْتَ عَلٰى ضِفَّةِ نَهْرٍ جَارٍ وَاَنْ لَّا يُقْتَرَ فِي الْمَآءِ وَاَنْ يَّمْلَاَ اِنَاءَهٗ ثَانِيًا وَاَنْ يَّقُوْلَ عِنْدَ تَمَامِهٖ اَوْفِيْ خِلَالِهٖ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ عِبَادِكَ الصّٰلِحِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الَّذِيْنَ لَاخَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَاهُمْ يَحْزَنُوْنَ، وَاَنْ يَّقُوْلَ بَعْدَ فِرَاغِهٖ سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لَّآاِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ وَحْدَكَ لَاشَرِيْكَ لَكَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُوْلُكَ نَاظِرًا اِلَى السَّمَآءِ وَاَنْ يَّقْرَاَ بَعْدَ الْفِرَاغِ

سُوْرَةُ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ اَوْ ثَلٰثًا وَاَنْ يَّشْرَبَ فَضْلَ وُضُوْئِهٖ قَائِمًا وَيَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ اشْفِنِيْ بِشِفَآئِكَ وَدَاوِنِيْ بِدَوَآئِكَ وَاَعْصِمْنِيْ مِنَ الْوَهْلِ وَالْاَمْرَاضِ وَالْاَوْجَاعِ وَيَكْرَهُ الشُّرْبُ قَائِمًا اِلاَّ هٰذَا وَشُرْبُ مَآءِ زَمْزَمٍ وَاَنْ يَصِلَهٗ بِسَبْحَةٍ اَىْ نَافِلَةٍ اِلاَّ اَنْ يَّكُوْنَ فِيْ وَقْتٍ مَكْرُوْهٌ وَاَنْ يَّتَوَضَّا عَلَى الْوُضُوْءِ وَاسْتِصْحَابُ النِّيَّةِ.

**ژباړه:** د اوداسه مستحبات دادي چي د لمانځه تر وخت تر مخه تياري وکړل سي، او د استنجاء لپاره د قبلې شريفي راسته يا چپه طرفته خلاص کښېنستل، مګر دا چي روژه يې وي، عورت دي پرېولي، که نجاست بولي د خپل مخرج (عورت) څخه متجاوز نه يې نو پرېولل يې مستحب دي، که چېري د مخرج څخه زيات سي او په قدر د درهم نه وي نو پرېولل يې سنت دي، او که چېري په قدر د درهم وي نو پرېولل يې واجب دي او که چېري د درهم د مقدار څخه زيات سي نو پرېولل يې فرض دي، او مستحب دا دی چي مخرج (عورت) په ښه وضعي سره چي پاک او صاف سي په دې استنجاء کي هيڅ عدد مسنون نه دی، او دغه ډول په ډېرو سره دې د استنجاء وهلو په وخت کي ښه صفايي وکړل سي او د پرېوللو وروسته د استنجاء ځای (عورت) دي په يوې کپړې سره وچ کړي او که چېري کپړه نه وي نو په چپه لاس سره دي وچ کړي او د فراغت وروسته دې ستر پټ کړی، په خپل اودس کولو کي پکار دی چي د بل چا څخه بغير د ضرورته کومک اخستل نه دي پکار، ولي چي نبي کريم ﷺ ويلي دي چي زه د الله په عبادت کي د يوچا کومک نه کوم مګر د ضرورت په وخت کي، او د ټولو اعضاء وو اودس پرېوللو په وخت کي دي مخامخ قبلې ته کښيني، د اودس لپاره ناسته دي په پورته ځای وي او په دغه دوران کي دي د خبرو څخه ځان وژغوري او د هر اندام پرېوللو په وخت کي دي کلمه تشهد او هغه دعاوي

د سلف صالحينو څخه نقل سوي دي ووايي، او په راسته لاس سره دي خوله ومينځي او په پوزه كي دي اوبه واچوي او بيا دي په چپه لاس سره پوزه صفا كړي، مناسبه داده چي د هر وار لپاره جلا جلا اوبه واخستل سي، او مسواک ووهي كه چېري موجود وي، او كه نه وي نو په ګوتي سره دي خوله پرېمنځي او په پوزه كي دي د اوبو اچولو په وخت كي ښه كوشش وكړي مګر نه چي روژه دار وي.

ځينو فقهاؤ ويلي دي چي د خولې په پرېمنځلو كي د مبالغې څخه مراد غرغره ده او امام صدر الشهيد وايي چي په خوله كي ډېري اوبه اچول چي خوله ډكه سي "مبالغه في المضمضه" ده، او په استنشاق پوزه كي د اوبو اچولو مبالغه داده چي پورته تر خيشوم پوري اوبه وخيژي، او د دواړو لاسو د شهادت ګوتي د مسح په وخت كي د غوږو په سوريانو كي داخلي كړئ او د پښو د ګوتو خلال د چپه لاس په ښي ګوتي سره دي وكړي، او كه ګوتمی چېري فراخه وي نو حركت دي وركړي او كه فراخه نه وي نو د ظاهر روايت مطابق د هغه ښورول يا را ايستل ضروريدي، دغه ډول په "محيط" كتاب كي ذكر دي چي په اوبو كي اسراف مه كوئ كه څه هم د ولې په غاړه ياست، ولي چي د نبي كرم ﷺ څخه يو چا پوښتنه وكړه چي ايا په اوداسه كي اسراف كيدی سي؟ نو نبي كريم ﷺ وويل چي هو كه څه هم د جاري ولې په غاړه ناست ياست ، او دا چي په اوبو كي كمی هم نه وكی او لوښي دوهم وار ډك كړئ او د اوداسه په آخر يا په منځ كي دا دعا ووايإست:

(اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِيْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنْ عِبَادِكَ الصَّالِحِيْنَ وَاجْعَلْنِيْ مِنَ الَّذِيْنَ لاَ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَهُمْ يَحْزَنُوْنَ) د اوداسه د فراغت څخه وروسته دي (سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ اَشْهَدُ اَنْ لاَّ اِلٰهَ اِلاَّ اَنْتَ وَحْدَكَ

لَا شَرِيْكَ لَكَ اَسْتَغْفِرُكَ وَاَتُوْبُ اِلَيْكَ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُوْلُكَ) د آسمان طرف ته په کتولو سره دې ووايي، او د فراغت وروسته دې سورة القدر يو يا دوه يا درې واره ووايي او د اوداسه څخه پاته اوبه په ولاړه سره وڅښيئ او دا ووايا ست:

اَللّٰهُمَّ اشْفِنِيْ بِشِفَائِكَ وَدَاوِنِيْ بِدَوَائِكَ وَاعْصِمْنِيْ مِنَ الْوَهْلِ وَالْاَمْرَاضِ وَالْاَوْجَاعِ

په ولاړه سره څښاک مکروه دی مګر د اوداسه پاته سوي اوبه او د زمزم اوبه مکروه نه دي، که چېري مکروه وخت نه وي نو دوه رکعات نفل دي هم وکړي.

**تشريح:** مصنف رحمه الله د سنتو د بيان څخه د فراغت وروسته د مستحباتو په بيانولو سره وايي، چي د لمانځه د وخت څخه ترمخه د لمانځه لپاره تياري کول مستحب دي ولي چي په دې تياري سره شيطان د دې خبري څخه نااميده کيږي چي زه به دا انسان د لمانځه څخه غافله کوم، د استنجاء په وخت کي د قبلې د ادب لحاظ کولو سره راسته يا چپه طرف ته کښينستل، ولي چي په وخت د ضرورت مخ پر قبله کښينستل مکروه تنزيهي دي، البته په وخت کي د ضرورت قبلې ته مخامخ اودس مات، چکر وهل مکروه تحريمي دي، د استنجاء څخه چونکي مقصد صفايي حاصلول دي نو په وخت کي د استنجاء پور څخه خلاص کښينستل پکار دي د دې لپاره چي صفايي په ښه طريقه سره وسي، او د روژې په وخت کي د اوبو داخلېدو احتمال سته نو د دې لپاره احتياط کول پکار دي چي روژه فاسده نه سي.

مصنف رحمه الله د دې وضاحت کړی دی چي په هر وخت کي استنجاء مستحبه نه ده بلکي په ځينو حالاتو کي واجب او فرض هم ده، د کومو تفصيل چي په متن کي ذکر سوی دی، او ځينو فقهاؤ کرامو په استنجاء کي درې يا اووه واره وغيره کي مختلف قولونه ذکر کړي دي، او دغه ډول په ډبرو د استنجاء وهلو په وخت کي درې واره يا اووه يا لس واره پوري بيان کړی دی، مګر د احنافو په نزد دوی کي يو

عدد هم مسنون نه دی او وايي چي دا رايه دي په مبتلٰی باندي پرېښودل سي، البته که چېري څوک د وسوسې مريض وي نو د هغه لپاره د نورو مرداريو په مثل درې واره دي مقدر کړل سي .

د فراغت وروسته د استنجاء مقام په کپړې سره وچ کړئ، يا په چپه لاس سره يې وچ کړئ، د دې لپاره چي د مستعملو اوبو احتمال پاته نه سي، عورت چونکي د ضرورت لپاره خلاص کړی وو نو اوس دا پټ کړئ ولي چي ستر بغيره ضرورته خلاصول جائز نه دي .

په اوداسه کي بغير د ضرورته د چا څخه کومک غوښتل خلاف اولی دی مگر کله چي څوک خپله د محبت په وجه بغير د طلبه د اودس کونکي لپاره اوبه راوړي يا د اودس کونکي په اعضاؤ اوبه ورواچوي نو په دې کي هيڅ قباحت نسته، د عليه السلام څخه خپله هم ثابت دي چي د اودس کولو په وخت کي خادم ده مبارک ته اوبه وراچولي دي .

د اودس کولو په وخت کي اودس کونکي ته پکار ده چي مخ پر قبله کښيني او په پورته ځای کښيني چي د مستعملي اوبو د څاڅکو خطره نه سي پاته، د اودس په وخت کي د دنياوي خبرو پر ځای منقولي دعاوي ويل پکار دي د دې لپاره چي د اودس کولو عمل د دنياوي خبرو څخه پاک او صرف د خدای تعالی لپاره سي، د اودس کولو په وخت کي خوله او په پزه اوبو اچولو لپاره راسته لاس استعمال کړئ ولي چي دا طهارت دی او د پزي لپاره چپه لاس استعمال کړئ ولي چي د حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها څخه روايت دی چي د نبي کريم ﷺ راسته لاس د طهارت او خوراک لپاره وو او چپه لاس يې په نورو کارو کي استعمالي دی، په خوله کي مسواک وهئ، امام قدوي مسواک په سنتو کي شمار کړی دی، په تحفة الفقهاء کي دي چي د خولې مينځلو په وخت کي سنت دی او که چېري مسواک نه يې نو د

شهادت ګوته کفایت کوي، په اوږدوالی به مسواک یوه لوېشت وي او په پراخوالی به د یوې ګوتي په مقدار وي، علیه السلام ویلي دي چي په مسواک سره خوله پرېولل د الله تعالی د رضامندی سبب دی.

په مضمضه، استنشاق کي مبالغه کول پکار دي لکه څنګه چي علیه السلام لقیط بن صبره ته ویلي وه "که چېري ته روژدار نه یي نو په استنشاق کي مبالغه کوه "او مضمضه هم ځینو علماؤ په استنشاق باندي د مبالغې په حکم کي قیاس کړي ده، د سر د مسح په وخت کي کوچنۍ خچنه ګوته د غوږو سرېو ته داخلول پکار دي ولي چي ربیع بنت معوذ بن عفرا په یو حدیث کي بیان کړی دی چي ما علیه السلام د اودس کولو په وخت کي ولیدی دغه ډول حدیث بیانه وي او وایي چي ګوتي یي د غوږو په سرېو کي د سر د مسح په وخت کي داخلي کړي.

خچنه (کوچنۍ) ګوته چونکي د کوچنیوالي په وجه په اسانۍ سره داخلېږي نو د دې لپاره فقهاؤ د دې ګوتي داخلولو ذکر کړی دی، او وروسته د ګوتو خلالول هم مستحب دي، مستور بن شداد وایي چي ما د اودس کولو په وخت کي علیه السلام ولیدی چي په خچنې ګوتي سره یې د پښې ګوتي مږلې. ګوتمې یرتت ضرورت حرکت ورکول پکار دي او که چېري د تنګۍ په وجه د اوبو د ننه کېدو احتمال نه وي نو ایستل یې پکار دي د دې لپاره چي دا ځای وچ نه سي پاتې.

دغه ډول په وبو کي د اسراف کولو څخه چي اقتصاد سنت یعني د درو وارو څخه زیات د اودس اندامو پرېوللو څخه پرهیز پکار دی. حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ وایي چي علیه السلام یو وخت تیرېدی نو حضرت سعد ﷺ اودس کوی، علیه السلام وویل ای سعد ﷺ! ته اسراف کوي نو حضرت سعد پوښتنه وکړه ایا په اودس کي هم اسراف سته؟ علیه السلام وویل چي هو که څه هم د نهر پرغاړه یي، او کمي هم نه ده پکار ولي چي د هر اندام پرېولل یقیني سي، د اودس په اخر یا په

ماينځ کي په متن کي ذکر سوي دعاګاني ويل د اجر باعث دي، په ترمذي شريفي کي د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي عليه السلام وويل چاچي د اوداسه وروسته دغه لاندي کلمه شهادت وويل نو د هغه لپاره د جنت اته دروازې خلاصيږي، په کومه دروازه چي هغه وغواړي داخل به سي:

اَشْهَدُ اَنْ لاَّاِلٰهَ اِلاَّاللّٰهُ وَحْدَهٗ لاَشَرِيْكَ لَهٗ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ.

دغه ډول د اوداسه څخه پاته اوبه د ولاړي په حالت وڅښئ، ولي چي حضرت علي رضي الله عنه خلکو ته د ښووولو لپاره اودس وکړ او د اوداسه پاته اوبه يي په ولاړي سره وڅښلي او وې ويل چي ماته دا محبوبه وه چي تاسو ته د نبي کريم ﷺ د اودس طريقه در ښکاره کوم، د زم زم اوبه هم په ولاړه سره څښلای سئ ولي چي د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي عليه السلام د زم زم اوبه د ولاړي په حالت کي وڅښلي.

دغه ډول په هر اوداسه کم از کم دوه رکعاته نفل کول پکاري دي ولي که چيري د اوداسه سره مقصودي عبادت نه وکړل سي نو هغه پخپله مقصود بالذات عبادت نه دی.

وَاَمَّا الْمَنَاهِيْ فَهُوَ اَنْ لاَّيَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ وَقْتَ الْاِسْتِنْجَآءِ وَلاَيَكْشِفَ عَوْرَتَهٗ عِنْدَ اَحَدٍ وَالْاِسْتِنْجَآءُ بِالْمَآءِ اَفْضَلُ اِنْ اَمْكَنَهٗ مِنْ غَيْرِ كَشْفٍ فَاِنْ لَّمْ يُمْكِنْهُ يَكْفِي الْاِسْتِنْجَآءُ بِالْاَحْجَارِ وَلاَيَكْشِفُ عَوْرَتَهٗ اِذَا لَمْ تَكُنِ النَّجَاسَةُ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ دِرْهَمٍ اَمَّا الْاِسْتِنْجَاءُ عَلٰى نَوْعَيْنِ لُغَوِيٌّ وَشَرْعِيٌّ اَمَّ اللُّغَوِيُّ فَهُوَ طَلَبُ النَّجْوِ وَفِيْ بَعْضِ اَقْوَالِ النَّاسِ اَرَادَبِهٖ قَلْعُ النَّجَاسَةِ وَاَمَّا الْاِسْتِنْجَاءُ الشَّرْعِيُّ فَهُوَ اِزَالَةُ النَّجَاسَةِ عَنْ

عُضْوٍ مَّخْصُوْصٍ بِالْمَآءِ اَوْ بِالتُّرَابِ اَوْ بِالْحَجَرِ اَوْ بِالْمَدَرِ وَاَنْ لاَّيَسْتَنْجِيْ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى وَلاَ بِطَعَامٍ وَلاَ بِرَوْثٍ وَلاَ بِعَظْمٍ وَلاَ بِعَلَفِ الدَّوَابِّ وَلاَ بِحَقِّ الْغَيْرِ وَلاَ بِفَحْمٍ وَلاَ بِخَذَفٍ وَلاَ بِاٰجُرٍ وَاَنْ لَّا يَتَخَمَّرَ وَلاَيَمْتَخِطَ فِي الْمَآءِ وَاَنْ لَّا يَتَعَدّٰى فِي الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ فِي الْمَرَّاتِ وَفِي الْمَوَاضِعِ وَاَنْ لاَّيَمْسَحَ اَعْضَائَهُ بِالْخِرْقَةِ الَّتِيْ يَمْسَحُ بِهَا مَوْضِعَ الْاِسْتِنْجَآءِ وَاَنْ لاَّيَضْرِبَ وَجْهُهُ بِالْمَآءِ عِنْدَ الْغَسْلِ وَاَنْ لاَّيَنْفُخَ فِي الْمَآءِ وَاَنْ لاَّ يُغَمِّضَ فَاٰهُ وَلاَ عَيْنَيْهِ تَغْمِيْضًا شَدِيْدًا حَتّٰى لَوْ بَقِيَتْ عَلٰى شَفَتَيْهِ اَوْعَلٰى جَفْنَيْهِ لُمْعَةٌ لاَيَجُوْزُ وُضُوْئُهُ هٰذِهِ هِيَ الطَّهَارَةُ الصُّغْرٰى.

**ژباړه:** موانع د اوداسه دادي چي په وخت د استنجاء د قبلې طرفته مخ مه کوی او د چا په موجودګۍ کي عورت (شرمګاه) مه ښکاره کوئ، که چېري بغير د اظهار د عورت استنجاء په اوبو ممکنه وي نو افضل دی، که نه وي نو په ډبرو، لوټو سره استنجاء کافي ده او ترکوم وخته پوري چي نجاست د يو درهم د مقدار څخه نسي زيات نو کشف د عورت جائز نه دی .

**د استنجاء دوه قسمونه دی (۱) لغوي، (۲) شرعي:** استنجاء لغوي پاکي طلبولو ته ويل کيږي او په قول د ځينو نجاست ايسته کولو ته ويل کيږي .

استنجا شرعی د عضوي مخصوصه څخه په اوبو، خاوري، لوټي سره نجاست ليري کولو ته ويل کيږي .

استنجاء په راسته لاس، طعام، خوشايو، ادوکو، د چارپايو خوراک، د بل حق، کوئله، کاڼي او په پخه خښته سره جائز نه ده، اوبه مه توېوئ او مه د پزي فضله ورته اچوی، د اوداسه اندامونه د پرېوللو په وخت کي د پرېوللو د تعداد او پرېوللو

ځای په مقاماتو کي کمی او بیشي مه کوئ، او په کومي کپړې سره چي موضع استنجاء (مقعد) يي صفا کړی وي په هغه کپړي سره د اوداسه اندامونه مه مسح کوی، او د مخ پړېوللو په وخت کي يې پرمخ باندي مه تیروئ، اوبه مه اچوی او په اوبو کي ساه مه کاږئ، خله او سترګي په سختۍ سره مه بندوی ولي چي د شونډانو او وريځو په ځای کي که چېري لږ ځای هم وچ پاته سي نو اودس نه کيږي، دا وو بيان د طهارت اصغر .

**تشريح**: منصف رحمه الله د ادابو د اوداسه څخه د فراغت وروسته، موانع د اوداسه چي په کومو کي محرمات او مکروهات دواړه داخل دي په بيان کولو سره وايي چي په وخت کي د استنجاء مخ د قبلې طرفته کول نه دي پکار، علماؤ په مکروهاتو کي شماريلي دي البته يوه خبره د توجه وړ ده چي صاحب کتاب" ان لا يستقبل القبلة " ويلي دي حالانکي عدم استقبال خو ممنوع نه دی بلکي په وخت کي د استنجاء قبلې ته مخکول ممنوع دي، فافهم .

د استنجاء لپاره د چا په موجودګۍ کي کشف د عورت نه دي پکار، ولي چي دا حرام دی، د مصنف د عبارت څخه دا څرګنديږي که چېري نجاست د قدر درهم څخه زيات سي نو کشف د عورت ضروري دی مګر دا درسته نه ده ولي که چېري نجاست د قدر درهم څخه هم زيات سي نو هم به د استنجاء بالماء نه کولوکي دا سړی شرعاً معذوره وي، فقهاء کرام وايي که چا د استنجاء لپاره د يوچا په مخکي کشف د عورت وکړ نو هغه فاسق دی .

په راسته لاس سره د استنجاء وهلو څخه عليه السلام منع کړي ده، دغه ډول عليه السلام ويلي دي چي په ليد، ګوبر او هډوکو سره استنجاء مه وهئ ولي چي دا ستاسي د وړونو پيرانانو خوراک دی، نو چي کله د جناتو په خوراک سره استنجاء جائز نه ده نو د انسان په خوراک سره بدرجه اولی ناجائز نه ده او ليد خو خپله نجس

دی نو په ده سره نور نجاست زیاتیږي، او په پخه خښته وغیره سره په استنجاء وهل
کي د زخم کېدلو اندیښنه یي، د بل چا په حق مثلاً کپړي، اوبه وغیره سره بغیر
رضامندی د مالک استنجاء وهل نه دي پکار، کومه کپړه چي په موضع استنجاء
کي مستعمله سوي وي هغه تهوال (تولیه) په شکل د اعضاء وضوء لپاره استعمال
کول د طبیعت کراهت راځي د دې لپاره ځان ژغورل پکار دي، اوبه پر مخ باندي په
زوره اچول مکروه دي بلکي په آرامه سره د تندي څخه لاندي اوبه تویول پکار دي،
چونکي په اوداسه کي د پوره مخ استیعاب فرض دی د دې لپاره که چېري خوله او
سترګي په سختی سره بندي کړي او یو ځای وچ پاته سي نو اودس نه وسو، او دا د
طهارت صغرٰی بیان وو چي مکمل سو.

وَاَمَّا الطَّهَارَةُ الْكُبْرٰى فَهِيَ الْاِغْتِسَالُ وَسَبَبُهُ خُرُوْجُ الْمَنِيِّ بِشَهْوَةٍ وَدَفْقٍ فَاِنَّ
يَجِبُ الْغُسْلَ بِالْاِجْمَاعِ وَاَمَّا انْفِصَالُهُ عَنْ مَّوْضِعِهِ بِشَهْوَةٍ فَمُخْتَلِفٌ فِيْهِ حَتّٰى اَنَّ
الْمُحْتَلِمَ لَوْ اَخَذَ ذَكَرَهُ وَخَرَجَ الْمَنِيُّ بَعْدَ سُكُوْنِ الشَّهْوَةِ يَجِبُ عَلَيْهِ الْغُسْلُ
عِنْدَهُمَا خِلَافًا لِاَبِيْ يُوْسُفَ وَكَذَا الْاِيْلَاجُ فِيْ اِحْدَى السَّبِيْلَيْنِ مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْءَةِ
اِذَا تَوَارَتِ الْحَشْفَةُ اَنْزَلَ اَوْ لَمْ يَنْزِلْ وَجَبَ الْغُسْلُ عَلَى الْفَاعِلِ وَالْمَفْعُوْلِ بِهِ وَاَمَّا
بِالْاِيْلَاجِ فِي الْبَهِيْمَةِ وَالْمَيْتَةِ وَالصَّغِيْرَةِ الَّتِيْ لَا تُجَامَعُ مِثْلُهَا فَلَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْغُسْلُ
مَا لَمْ يُنْزِلْ وَذَكَرَ الْاِسْبِيْجَابِيُّ اَنَّ بِالْاِيْلَاجِ فِي الصَّغِيْرَةِ يَجِبُ الْغُسْلُ وَالْمُرَاهِقُ اِذَا
وَطِئَ اِمْرَءَةً بَالِغَةً لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْغُسْلُ وَلٰكِنْ يُؤْمَرُ بِهِ تَخَلُّقًا وَاعْتِيَادًا وَيَجِبُ
غُسْلُ وَلٰكِنْ يُؤْمَرُ بِهِ تَخَلُّقًا وَاعْتِيَادًا وَيَجِبُ الْغُسْلُ عَلَى الْمَرْءَةِ الْمَوْطُوْءَةِ وَلَوْ

وَطِيَ الْبَالِغُ صَغِيْرَةً فَالْجَوَابُ عَلَى الْعَكْسِ وَكَذَا الْحَيْضُ وَالنِّفَاسُ.

**ژباړه**: د طهارت کبرٰی څخه مراد غسل دی، د دې طهارت کبرٰی سبب لذت او په غوټه سره د مني وتل دي او دا خروج د مني په لذت او غوټه سره بالاجماع غسل واجبه وي که چېرې مني د خپل ځای څخه په شهوت سره جلا سي نو په دې کې اختلاف دی، که چېرې محتلم خوب لېدونکی خپل ذکر بند ونیسي او د شهوت د ختمېدو وروسته مني خارج سي نو د طرفینو په نز غسل واجب دی، په خلاف د امام ابویوسف رحمه الله.

اَمَّا فَرَائِضُ الْغُسْلِ فَالْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ وَغَسْلُ سَآئِرِ الْبَدَنِ وَاِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى مَنَابِتِ الشَّعْرِ وَاِنْ كَثُفَ شَعْرُهٗ بِالْاِجْمَاعِ وَكَذَا اِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى اِثْنَاءِ اللِّحْيَةِ وَالشَّعْرِ وَالْمَرْاَةُ فِي الْاِغْتِسَالِ كَالرَّجُلِ وَاَمَّا الشَّعْرُ الْمُسْتَرْسَلُ مِنْ ذَوَائِبِهَا فَغَسْلُهٗ مَوْضُوْعٌ فِي الْغُسْلِ اِذَا بَلَغَ الْمَآءُ اُصُوْلَ شَعْرِهَا بِخِلَافِ الرَّجُلِ كَذَا ذَكَرَهٗ فِيْ غُنْيَةِ الْفُقَهَآءِ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ اَنَّ الرَّجُلَ اِذَا اَضْفَرَ شَعْرَهٗ كَمَا يَفْعَلُهُ الْعَلَوِيُّوْنَ وَالْاَتْرَاكُ هَلْ يَجِبُ اِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى اَثْنَاءِ الشَّعْرِ اَمْ لَا عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رِوَايَتَانِ فِيْ رِوَايَةٍ يَجِبُ وَفِيْ رِوَايَةٍ لَا وَذَكَرَ صَدْرُ الشَّهِيْدِ اَنَّهٗ يَجِبُ اِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى اَثْنَاءِ الشَّعْرِ فِيْ حَقِّهٖ.

**ژباړه**: فرائض د غسل غړغره کول دي، په پوزه کي اوبه اچول،او د پوره بدن پرېولل، د وېښتانو بیخو ته اوبه رسول که څه هم ګڼ وي بالاتفاق، دغه ډول د ږیرې منځ ته او وېښتانو ته اوبه رسول دي، ښځه هم په غسل کي د سړي په مثال ده. مګر سر د چوټیلانو. کوڅیو وېښتان پرېولل معاف دي که اوبه د وېښتانو بیخو ته

ورسيږي، په خلاف د نارينه وو، دغه ذکر په غنية الفقهاء او محيط کي دی، که چيري نر د سر د وريښتانو کوڅۍ جوړي کړي لکه څنگه چي علويان اولاد د حضرت علي رضي الله عنه او په ترکيانو کي رواج دی، نو په هغوی د وريښتانو منځ ته اوبه رسول لازم دي که نه؟ د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله څخه دوه روايتونه دي، په يوه روايت کي واجب دي، او په دوهم کي واجب نه دي، او صدر الشهيد ذکر کړي دي چي د نر لپاره د وريښتانو منځ ته اوبه رسول ضروري دي .

**تشريح**: د احنافو رحمهم الله تعالی په نز مضمضه، استنشاق او د پوره خارجي بدن پرېولل په غسل کي فرض دي، د امام شافعي او امام مالک په نز د اوداسه په ډول يعني لکه څنگه چي په اوداسه کي مضمضه او استنشاق سنت دي، دغه ډول په غسل کي هم مضمضه او استنشاق سنت دي .

د احنافو په نز په اوداسه قياس کول درست نه دي ولي چي په اوداسه کي فقط د مخ پرېولل فرض دي، د خولې او پزي دننۍ حصې د مخ په تعريف کي نه دي شمار، د غسل لپاره الله تعالی" فاطهروا "په مبالغې سره حکم کړی دی، نو دا ټوله بدن شمار دی ما سوای د هغه مقاماتو چي هغو ته اوبه رسول مشکل يي .

ښځه به هم د نارينه په مثل په غسل کي پوره بدن پرېولي، البته د کوڅيو پرېولل د ښځي لپاره معاف دي، ولي چي حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه ښځوته حکم کړی وو چي هغی دي د غسل په وخت کي کوڅۍ خلاصوي، چي کله دا خبره حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورسيده نو ام المؤمنين وويل چي عجبه خبره ده چي ابن عمرو رضي الله عنه ښځوته د کوڅۍ د خلاصولو حکم کوي او هغه دوی ته د پوره سر د خريلو حکم ولي نه کوي؟ په حقيقت او په يقين سره ما او رسول کريم ﷺ په يو لوښي باندي غسل وکړ او د درو لپو څخه زياتي اوبه ما پر سر نه واچولي، حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها د حضرت عبدالله بن عمرو د حکم څخه انکار وکړ د کوم څخه

چي ثابته سوه چي د ښځو لپاره د ټولو وریښتانو خلاصولو حکم نسته، دغه ډول حضرت ام سلمه رضی الله عنها هم د نبي کریم ﷺ څخه د دې مسئلي پوښتنه وکړه نو علیه السلام وویل چي ستا لپاره درې واره په سر اوبه اچول کافي دي او دا حکم فقط د ښځي لپاره دی، که چېري نارینه وریښتان دا ډول غټ کړي او کوڅی جوړي کړي نو د هغه لپاره د خلاصولو حکم دی.

اِمْرَءَةٌ اِغْتَسَلَتْ هَلْ تَتَكَلَّفُ فِيْ اِيْصَالِ الْمَآءِ اِلٰى ثَقْبِ الْقُرْطِ اَمْ لَا قَالَ تَتَكَلَّفُ فِيْهِ كَمَا تَتَكَلَّفُ فِيْ تَحْرِيْكِ الْخَاتِمِ اِنْ كَانَ ضَيِّقًا اِمْرَءَةٌ اِغْتَسَلَتْ وَقَدْ كَانَ بَقِيَ فِيْ اَظْفَارِهَا عَجِيْنٌ قَدْ جَفَّ لَمْ يَجُزْ غُسْلُهَا وَكَذَا الْوُضُوْءُ وَلَوْ بَقِيَ الدَّرَنُ فِي الْاَظْفَارِ جَازَ الْغُسْلُ وَالْوُضُوْءُ يَسْتَوِيْ فِيْهِ الْمَدَنِيُّ وَالْقَرَوِيُّ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَجُوْزُ لِلْقَرَوِيِّ وَلَا يَجُوْزُ لِلْمَدَنِيِّ وَالْاَقْلَفُ اِذَا اغْتَسَلَ وَلَمْ يَدْخُلِ الْمَآءُ دَاخِلَ الْجِلْدَةِ قَالَ بَعْضُهُمْ يَجُوْزُ غُسْلُهُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ لَا يَجُوْزُ وَهُوَ الْاَصَحُّ وَاِنْ خَرَجَ بَوْلُهُ حَتّٰى صَارَ فِيْ قُلْفَتِهِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ بِالْاِجْمَاعِ وَاِنْ لَّمْ يَظْهَرْ.

**ژباړه:** یوه ښځه به د غوږو د والیو (کړی) سُریانو ته دننه د اوبو رسولو کوشش کوي که نه؟ فقهاؤ ویلي دي چي کوشش به کوي، لکه څنګه چي د تنګي ګوتمی د ګوتي کولو په وخت کي ښځي غسل وکړي او د دې په نوکانو کي وچ سوي وړه یي نو غسل نه کیږي او دا ډول حکم د اوداسه هم دی.

که چېري په نکانو کي خیره خاوره پاته یي نو غسل او اودس دواړه جائز دي، او په دې حکم کي د ښاراو د کلي خلګ دواړه برابر دي، ځینو ویلي دي چي کلی د زناني لپاره جائز او ښار د زناني لپاره ناجائز دی او غیر زیارکښ سړی چي کله

غسل وکړي او اوبه و پوست نه سي داخيلي نو ځينو ويلي دي غسل جائز دی او ځينو ويلي دي چي نه دی جائز، دغه زيات صحيح دی، که چېري بولي ووزي او د ختنې په پوست کي ودريږي نو بالاتفاق په هغه باندي اودس لازم دی که څه هم بولي ظاهري نه وي .

**تشريح**: د غوږو په پای کي د واليو (کړی) لپاره چي کوم سُريان دي نو د غسل کولو په وخت کي د هغوی دننه اوبه رسول ضروري دي، که د غسل کولو په وخت کي والي موجود وي او که غوږ خالي وي. صاحب د کتاب په ظن غالب سره د ښځي ذکر کړی دی که نه حکم عام دی، که چېري د نارينه په غوږ کي سری يي نو د هغه لپاره هم دا حکم دی لکه څنګه چي د ځينو خلګو عادت يي چي د ځينو هلکانو په غوږو کي کړی اچوي، البته د دومره تکليف ضرورت نسته چي د غسل په وخت کي تار وغيره په دغو سريانو کي داخل کړي ولي چي په دې سره حرج تکليف رائي .

دغه ډول که چېري لانده کړي وړه په نوکانو کي وچ سي نو داهم د پوست پوري د اوبو په رسيدو کي بندش يي نو غسل جائز نه دی البته که چېري په نوکانو کي خيره خاوره يي نو غسل جائز دی ولي چي دا د بند خپل پيداوار دی، څه غير شی نه دی، دغه ډول چي کله غير مختون يعني نا سُنته نارينه غسل وکړي نو د هغه لپاره د صحيح قول مطابق دا حکم دی چي د پوست دننه د ذکر ترسره پوري دي اوبه ورسوي ولي چي دا ځای د پوست دننه دی مګر حکم د ظاهر لري، د دې لپاره که چېري د ذکر څخه بولي ووزي قلفه ته ورسيږي نو بالاتفاق اودس کول فرض دی که څه هم د باندي په نظر نسي را .

رَجُلٌ اِغْتَسَلَ وَبَقِيَ بَيْنَ اَسْنَانِهِ طَعَامٌ قَالَ بَعْضُهُمْ اِنْكَانَ زَآئِدًا عَلٰى قَدْرِ الْحِمِّصَةِ لَايَجُوْزُ غُسْلُهُ وَاِنْكَانَ قَدْرَ الْحِمِّصَةِ اَوْ اَقَلَّ يَجُوْزُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ

كَانَ صُلْبًا مَمْضُوْغًا مُتَاكِّدًا قَلِيْلاً اَوْ كَثِيْرًا لاَيَجُوْزُ ذَكَرَهُ فِي الذَّخِيْرَةِ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ اِذَا كَانَ عَلٰى ظَاهِرِ بَدَنِهِ جِلْدُ سَمَكٍ اَوْ خُبْزٌ مَمْضُوْغٌ قَدْ جَفَّ وَاغْتَسَلَ اَوْ تَوَضَّاَ وَلَمْ يَصِلِ الْمَاءُ اِلٰى مَاتَحْتَهُ لَمْ يَجُزْ وَقَالَ فِي الذَّخِيْرَةِ فِيْ مَسْئَلَةِ الْحِنَاءِ وَالدَّرْنِ وَالطِّيْنِ يَجْزِئُ وُضُوْئُهُمْ لِلضَّرُوْرَةِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى.

**ژباړه:** كه چېري يو سړي غسل وكړ او د هغه د غاښنو په مابينځ كي څه شی پاته سو، ځينو ويلي دي كه چېري د نخود د دانې څخه زيات وي نو غسل جائز نه دی، او كه د نخود د دانې د مقدار څخه كم وي نو جائز دی، ځينو ويلي دي كه چېري سخت يي او په غاښي پوري مښتی يي نو قليل وكثير په دواړو حالتو كي جائز نه دی، دغه ډول په ذخيره كي ذكر دي او په محيط كي كه چېري په ظاهري بدن پوري د ماهي پوست يا سخته وچه ډوډۍ وګرځول سي او د غسل كولو په وخت كي اوبه لاندي بدن ته نه ورسيږي نو جائز نه دی، او په ذخيره كي يې ويلي دي چي د نوكرزو، خيري، خاوري په صورت كي ضرورتاً اودس جائز دی او په دغه سره فتوٰی ده.

**تشريح:** كله چي په غاښنو كي يوشی بند سي او هغه ته اوبه رسول مشكل يي نو د روژې په مسئله قياس كولو سره كه چېري د نخود د مقدار څخه زيات وي نو غسل جائز نه دی، د نخود د مقدار سره برابر يا كم وي نو صحيح دی، مګر ځينو فقهاؤ ويلي دي چي قليل وكثير څخه قطع نظر دا دي وكتل سي كه چېري په غاښنو باندي سخت مښتی وي چي اوبه نه ور رسيږي نو غسل جائز نه دی، نوكريزي كه چېري په سرباندي ولګول سي نو په نوكريزو مسح جائز نه ده لكه څنګه چي په فتاوٰی تاتارخانيه ج ۱ص۹۲ كي د دې تشريح سوي ده، البته د نوكريزو كوم اثر چي د رنګ

په صورت کي پاتيږي نو په هغه باندي د خيرو خاورو په ډول ضرورتاً مسح جائز ده.

وَاِذَا كَانَ بِرِجْلَيْهِ شِقَاقٌ فَجَعَلَ فِيْهِ الشَّحْمَ اِنْ كَانَ لَايَضُرُّهُ اِيْصَالُ الْمَآءِ لَايَجُوْزُ غُسْلُهُ وَوُضُوْئُهُ وَاِنْ كَانَ يَضُرُّهُ يَجُوْزُ وَاِيْصَالُ الْمَآءِ اِلٰى دَاخِلِ السُّرَّةِ فَرْضٌ وَكَذَا الْاِسْتِنْجَآءُ عِنْدَ الْغُسْلِ فَرْضٌ بِالْمَآءِ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ عَلَيْهِ نِجَاسَةٌ وَكَذَا تَخْلِيْلُ الْاَصَابِعِ فِي الْغُسْلِ وَالْوُضُوْءِ فَرْضٌ اِنْ كَانَتِ الْاَصَابِعُ مُنْضَمَّةً غَيْرَ مَفْتُوْحَةٍ وَاِنْ كَانَتْ مَفْتُوْحَةً فَهُوَ سُنَّةٌ وَكَذَا اِنْقَاءُ الْبُشْرَةِ وَبَلُّ الشَّعْرِ فَرْضٌ وَلِقَوْلِهِ عليه السلام اَلَا فَبَلُّوْا الشَّعْرَ وَاَنْقُوْا الْبُشْرَةَ لِقَوْلِهِ عليه السلام اِنَّ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ نِجَاسَةٌ وَلَوْ بَقِيَ شَيْءٌ مِّنْ بَدَنِهِ لَمْ يُصِبْهُ الْمَآءُ لَمْ يَخْرُجْ مِنَ الْجَنَابَةِ وَاِنْ قَلَّ وَشُرْبُ الْمَآءِ يَقُوْمُ مَقَامَ الْمَضْمَضَةِ اِذَا بَلَغَ الْمَآءُ الْفَمَّ كُلَّهُ وَاِلَّا فَلَا وَلَوْ تَرَكَهَا نَاسِيًا وَصَلّٰى ثُمَّ تَذَكَّرَ يُمَضْمِضُ وَيُعِيْدُ مَا صَلّٰى.

**ژباړه:** که چېري په پښه کي چاودي وي او په هغه کي يې وازګه اچولي وي، که د اوبه رسولو څخه تکليف نه وي نو غسل او اودس جائز نه دی او که تکليف وي نو جائز دی، نو ته دننه اوبه رسول فرض دي، دغه ډول په غسل کي د اوبو سره استنجاء هم فرض ده که څه هم په موضع د استنجاء کي نجاست نه وي دغه ډول د غسل او د اوداسه په وخت کي د ګوتو خلالول هم فرض دي که چېري ګوتي پرله پوري مښتي وي که خلاصي وي نو سنت دی، ظاهري پوست او د وريښتانو پرېولل فرض دي.

عليه السلام ويلي دي که وريښتان لنده وي او پوست صفاکوي او د عليه السلام دا قول چي د هر وريښته لاندي جنابت دی، په يوه روايت کي نجاست دی که چېري د

بدن يوڅه حصه وچه پاته سي نو انسان د جنابت څخه نه وزي، او اوبه څښل د مضمضې قائم مقام دی چي پوره خولې ته ورسيږي، او که ونه رسيږي نو نه دی، که چېري په ېيره سره مضمضه پاته سي او وروسته يي په ياد سي نو بيا دي مضمضه وکړي او کړی لمونځ دي را وګرځوي .

**تشريح**: که چېري په‌يو چاباندي څه زخم را سي او په هغه باندي مرهم وغيره کښېږدي، نو که دا زخم داسي وي چي هغه ته د اوبو په رسيدو څه ضرر نه رسيږي نو د هغه پرېولل ضروري دي او بغير د پرېوللو اودس او غسل جائز نه دی، که چېري ضرورت وي نو د ټوله پرېولو بغير صرف په‌ظاهري حصې باندي په‌اوبو اچولو سره اودس او غسل کيږي، دغه ډول موضع د استنجاء هم په اوبو سره پرېولل فرض دي، که څه هم هلته نجاست ظاهري نه وي، ولي چي په غسل کي د ټوله بدن پرېولل فرض دي‌او داهم د بدن حصه ده .

په‌نجاست حکمي کي جنابت هم سته، نو لاس او د پښو د ګوتو پرېولل فرض دي که چېري دا ډول ضم وي چي بغير د خلاله اوبه دننه نه رسيږي نو خلال فرض دي د دې‌لپاره چي يو ځای هم وچ نه سي پاته ولي که چېري د ستني برابر ځای په جسم کي وچ پاته سي نو غسل نه کيږي، که د غسل کولو په وخت کي مضمضه، استنشاق يا د بدن څه حصه وچه پاته سي او وروسته يې‌په ياد سي نو فقط مضمضه‌او استنشاق دي وکړي يا پاته سوي وچه حصه دي پرېولي، د نوي غسل کولو ضرورت نسته، او چي کوم کالي يې‌اغوستي وي هغه هم پاک دي البته که چېري فرض لمونځ يي کړی وي نو هغه‌دي بيرته را وګرځوي که نفل لمونځ يي کړي‌نو د هغه‌د راګرځولو ضرورت نسته، د دې لپاره چي په‌دغو نوافلو کي ابتداء صحيح نه ده نو دا پر ذمه نه لاميږي .

وَسُنَّةُ الْغُسْلِ اَنْ يُّقَدِّمَ الْوُضُوْءَ عَلَى الْغُسْلِ اِلاَّ غَسْلَ رِجْلَيْهِ وَاَنْ يُّزِيْلَ النِّجَاسَةَ عَنْ بَدَنِهٖ اِنْ كَانَتْ ثُمَّ يُصَبُّ الْمَآءِ عَلٰى رَاْسِهٖ وَسَآئِرِ جَسَدِهٖ ثَلٰثًا ثُمَّ يَتَنَحّٰى عَنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ فَيَغْسِلُ قَدَمَيْهِ اِلاَّ اَنْ يَّكُوْنَ عَلٰى حَجَرٍ اَوْ عَلٰى خَشَبٍ اَوْ غَيْرِ ذٰلِكَ وَاَنْ لاَّ يُسْرِفَ فِى الْمَآءِ وَاَنْ لاَّ يُقَتِّرَ وَاَنْ لاَّ يَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ وَقْتَ الْغُسْلِ وَاَنْ يَّدْلِكَ كُلَّ اَعْضَآئِهٖ فِى الْمَرَّةِ الْاُوْلٰى وَاَنْ يَّغْتَسِلَ فِىْ مَوْضِعٍ لاَيَرَاهُ اَحَدٌ وَاَنْ لاَّ يَتَكَلَّمَ بِكَلاَمٍ قَطُّ وَيُسْتَحَبُّ اَنْ يَّمْسَحَ بَدَنَهٗ بِمِنْدِيْلٍ بَعْدَ الْغُسْلِ وَاَنْ يَّغْسِلَ رِجْلَيْهِ بَعْدَ اللُّبْسِ وَاَنْ يَّصِلَهٗ بِسُبْحَةٍ اَىْ نَافِلَةٍ وَاَمَّا النِّيَّةُ فَلَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِى الْوُضُوْءِ وَالْاِغْتِسَالِ حَتّٰى اَنَّ الْجُنُبَ اِذَا انْغَمَسَ فِى الْمَآءِ الْجَارِىْ اَوْ فِى الْحَوْضِ الْكَبِيْرِ لِلتَّبَرُّدِ اَوْقَامَ فِى الْمَطَرِ الشَّدِيْدِ وَتَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ يَخْرُجُ مِنَ الْجَنَابَةِ.

**ژباړه:** د غسل سنت دادي چي اودس دي په غسل باندي مخ كي كړي د پښو د پرېوللو بغير، كه چېري په بدن باندي څه نجاست وي نو صفادي كړي بيا دي درې واره سر او په ټوله بدن باندي اوبه واچوي بيا په بل ځاى كي دواړې پښې پرېولي مګر دا چي په يوه ډبره يا تخته وغيره باندي وي، په اوبو كي زياتوب او كمى مه كوئ، د غسل په وخت كي لڅ بدن قبلې ته مخ نه وي ، اول وار ټوله اعضاء ومږږئ په داسي ځاى كي غسل وكړئ چي څوک يي نه سي ليدى، د غسل په وخت كي بالكل خبري مه كوئ، او دا مستحب دي چي د غسل وروسته بدن په تواڵ باندي وچ كړي د كپړو اغوستلو وروسته پښې پرېولي او ورسره دوه ركعاته نفل وكړي، نيت په اوداسه او غسل كي ضروري نه دى. كه چېري جنبوب سړى په روانو اوبو كي يا په غټ تالاب كي د يوشي حاصلولو لپاره غوټه ووهي يا په تيز باران كي د دريدو

وروسته مضمضه او استنشاق وکړي نو د جنابت څخه وزي .

**تشريح:** د غسل کولو ترمخه اودس سنت دی مګر په تېره زمانه کي د هر چاه لپاره د پخو خښتو، د فرشو غسلخانې ميسري نه وي، په کچه مځکه باندي د غسل کولو د وجي به چي کوم کيچړ جوړيدی يا اوبه درېدلي نو په دې بنا دا ضروري وه چي د پوره غسل کولو وروسته ګالي واغوستل سي او پښې وروسته په يو پاک ځای کي پرېولي مګر نن صبا اکثره غسلخانې پاخه فرشونه دي نو د دې لپاره پښې په هغه غسلخانه کي پرېولل پکار دي، د غسل څخه ترمخه که چېري په ورانه باندي نجاست حقيقي مني وغيره يې نو د هغه صفاکول پکار دي، د دې وروسته په پوره بدن باندي اوبه واچوئ. په سر بيا په راسته اوږه بيا په چپه اوږه اوبه واچوئ. که چېري په غسلخانه کي بدن لڅ وي نو د قبلې طرف ته مخ مه کوئ، او که لڅ نه وي ګناه نه ده، اول وار په بدن باندي په اوبو اچولو وروسته ټول بدن په لاسو سره ومږئ چي دوهم او دريم وار په اوبو تويولو سره د بدن هيڅ د وچ پاتېدو امکان هم نه سي پاته .

که چېري غسل فرض وي او د پردې ځای نه وي نو د دې مسئله د فقهاؤ په مابينځ کي مختلف فيه ده، ځيني وايي چي غسل دي نه ترک وي که څه هم کشف د عورت د خلکو مخته راسي مګر صحيح قول دادی چي غسل دي ترک کړي ولي چي د غسل نيابت تيمم کېدلای سي او نهي مقدم دی پر امر، په کشف د عورت خو نهي واردي سوي دي. نو د دې لپاره امر د غسل به ترک کول کيږي او د غسل کولو وروسته په ټوال توليه سره د بدن وچول هم بهتر دي لکه څنګه چي په ترمذي شريفي کي د حضرت عائشې صديقې ﷺ څخه روايت دی چي د نبی کريم ﷺ يوه توليه وه په کوم سره چي به عليه السلام وروسته د اوداسه مخ لاس مبارک وچوی . د احناف په نز په اوداسه او غسل کي نيت فرض نه دی مګر د ائمه ثلاثه په نز فرض دی .

آئمه ثلاثه وو دليل د رسول الله ﷺ حديث" اِنَّمَا الاَعمَالُ بِالنِّيَاتِ "دی .

د آئمه ثلاثه په نز لفظ" صحة "مقدر دی چي په اصل کي" انما صحة الاعمال" دی، نو چېري چي نيت نه وي هلته به عمل صحيح نه وي، احناف رحمهم الله وايي چي دلته د حکم لفظ مقدر دی يعني حکم الاعمال بالنيات .

حکم پر دوه قسم دی، يو دنيوي چي صحت د عمل دی، او يو اخروي چي کوم اجر او ثواب دی، کوم غسل او اودس چي بغير د نيت د طهارت وي نو هغه فقط د ثواب به خالي وي مگر وجود به يي معتبر بلل کيږي لکه څنګه چي د لمانځه لپاره ستر د عوت شرط دی پس که چېري څوک کالي په دې نيت واغوندي چي په دې سره به زما ستر پټ سي او زه به لمونځ وکړم نو د اجر او ثواب مستحق به وي، او که چېري د کپړو اغوستلو په وخت کي يي د ستر عورت نيت نه وي کړی فقط زينت يي مراد وي نو هم په دې کپړو کي لمونځ ادا کيږي، په دې بنا زموږ متقدمينو علماؤ ويلي دي چي هر چاچي بغيرطهارت د نيته اودس وکړ نو دا خلاف د سنت دی او اودس مطلوب شرعي نه دی په دې باندي ثواب نه رسيږي مطلقي د دې په اودس او غسل سره د لمانځه په صحيح کېدولي هيڅ کلام نه سي کېدی .

وَالاِغتِسَالُ عَلٰی اَحَدَ عَشَرَ وَجهًا خَمسَةٌ مِّنهَا فَرِيضَةٌ الاِغتِسَالُ مِنَ الحَيضِ وَالنِّفَاسِ وَالتِقَآءِ الخَتَانَينِ مَعَ غَيبُوبَةِ الحَشفَةِ وَخُرُوجِ المَنِيّ عَلٰی وَجهِ الدَّفقِ وَالشَّهوَةِ وَمِنَ الاِحتِلاَمِ اِذَا خَرَجَ مِنهُ المَنَیُّ اَوِالمَذِیُّ وَاَربَعَةٌ مِّنهَا سُنَّةٌ غُسلُ يَومِ الجُمُعَةِ وَالعِيدَينِ وَعِندَ الاِحرَامِ وَعَرَفَةَ وَوَاحِدٌ مِّنهُمَا وَاجِبٌ وَهُوَ غُسلُ المَيِّتِ حَتّٰی لاَيَجُوزُ الصَّلوٰةُ عَلَيهِ قَبلَ الغُسلِ اَو قَبلَ التَّيَمُّمِ عِندَ عَدَمِ المَآءِ وَوَاحِدٌ مِّنهَا مُستَحَبٌّ وَهُوَ غُسلُ الکَافِرِ اِذَا اَسلَمَ هٰکَذَا ذَکَرَهُ شَمسُ الاَئِمَّةِ السَّرخِسِیّ فِیْ شَرحِهٖ

وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ اَنَّ الْكَافِرَ اِذَا اَجْنَبَ ثُمَّ اَسْلَمَ الصَّحِيْحُ اَنَّهُ يَجِبُ الْغُسْلُ عَلَيْهِ.

**ژباړه:** د غسل يوولس (۱۱) قسمونه دي، پنځه فرض دي، هغه داچي كله د حيض يا نفاس څخه فارغه سي نو غسل به كوي، او بل چي د دوو فرجو (عورتو) يوځای والی وسي سره د ذكر د پټېدو، او بل مني وتل دي په غورزېدو او خوند سره، بل په خوب كي چي مني، مذي، يا ودي ووځي.

او څلور قسمه سنت دی، د جمعې د لمانځه لپاره غسل، بل د اخترونو لپاره، بل د احرام لپاره، بل د عرفاة لپاره، او يو قسم واجب دی، چي هغه د مړي غسل دی، ترهغه وخته پوري لمونځ نه وركول كيږي ترڅوپوري چي يې دا مړي ته غسل نه وي وركړی، ياېې تيمم نه وي ور وهلی په هغه وخت كي چي اوبه نه وي، او يوبل قسم مستحب دی، هغه د كافر غسل دی چي كله دی اسلام راوړي، دغه ډول ذكر كړي دي شمس الائمة السرخسي په خپله شرحه كي، او په محيط شريف كي ذكر سوي دي چي كله كافر د جنابت په وخت كي اسلام راوړي نو صحيح خبره داده چي پرده غسل واجب دی.

**تشريح:** صاحب كتاب د دې عبارت څخه د غسل يوولس قسمونه بيان كړي دي، اول پنځه قسمونه په متن كي ذكر سوه چي د ټولو په اجماع سره فرض دي، او څلور قسمه سنت غسلونه، يعني د جمعې په ورځ سنت دی، د امام مالك رحمه الله په نز واجب دی، زموږ دليل د ترمذي شريف دا روايت دی چي رسول الله ﷺ د جمعې د ورځي د غسل افضليت بيان كړی دی، نو ځكه صاحب د هدايې غسل د جمعې، اخترو، عرفه، او احرام لپاره مستحب ګڼلی دی، دغه ډول ځينو فقهاء كرام د دخول مكه، مدينه منوره، او د وقوف مزدلفه په وخت كي غسل مستحب ګڼلی دی، او مړي ته غسل وركولو والا دي وروسته تر فراغت بيا خپله هم غسل وكړي داهم مستحب دی.

مصنف رحمه الله په آخر كي د مړي غسل ته واجب ويلي دي حالانكي دا فرض كفايي

ده، که چېرې يوه ښځې ته د جنابت په حالت کې حيض راسي نو اختيار دی ورته که اوس په حالت کې د حيض غسل وکړي او يا يې وروسته د انقطاع د حيض غسل وکړي. که چېري څوک غسل د لمانځه تر وخته پورې مؤخر کړي نو ګناهګار به نه يي، او که څوک د خپل کوروالا سره جماع وکړي نو وروسته يې بيا د کولو شوق يي نو په مابينځ کې غسل کول ضروري نه دی بلکې په حالت کې د جنابت جماع کولای سي، البته په مابينځ کې غسل كول فقط مستحب دی، په دې سره په طبيعت کې تازګي پيدا کيږي.

وَلَا يَجُوْزُ لِلْجُنُبِ وَالْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ قِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ يَعْنِيْ اٰيَةً تَامَّةً وَاِنْ قَرَءَ مَادُوْنَ الْاٰيَةِ اَوْ قَرَءَ الْفَاتِحَةَ عَلٰى قَصْدِ الدُّعَآءِ اَوِ الْاٰيَةَ الَّتِيْ تَشْبَهُ الدُّعَآءَ عَلٰى نِيَّةِ الدُّعَآءِ يَجُوْزُ وَقِيْلَ يَكْرَهُ وَقِيْلَ لَايَكْرَهُ وَاَمَّا قِرَآءَةُ الْقُنُوْتِ فَلَا يَكْرَهُ فِيْ ظَاهِرِ مَذْهَبِ اَصْحَابِنَا وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ يَكْرَهُ وَلَا يَكْرَهُ التَّهَجِّيْ بِالْقُرْاٰنِ وَكَذَا التَّعْلِيْمُ لِلصِّبْيَانِ حَرْفًا حَرْفًا وَكَذَا لَايَجُوْزُ لَهُمْ كِتَابَةُ الْقُرْاٰنِ وَذُكِرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ الْمَنْسُوْبِ اِلٰى قَاضِيْخَانَ لَابَاسَ لِلْجُنُبِ اَنْ يَكْتُبَ الْقُرْاٰنَ وَالصَّحِيْفَةَ عَلٰى وَجْهِ الْاَرْضِ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ وَلَا يَجُوْزُ لَهُمْ مَسُّ الْمُصْحَفِ اِلَّا بِغِلَافِهٖ وَلَا يَجُوْزُ اَخْذُ دِرْهَمٍ فِيْهِ سُوْرَةٌ مِّنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا بِصُرَّتِهٖ وَكَذَا لِلْمُحْدِثِ هٰذَا اِذَا كَانَ الْغِلَافُ غَيْرَ مُشَرَّزٍ وَاِنْكَانَ مُشَرَّزًا لَايَجُوْزُ وَالْخَرِيْطَةُ اَحَقُّ مِنَ الْغِلَافِ فِيْ اَنَّهُ لَايَكْرَهُ فَاِنْ اَخَذَ الْمُصْحَفَ بِكُمِّهٖ فَلَابَاسَ بِهٖ عِنْدَ مُحَمَّدٍ وَكَرِهَهُ بَعْضُ مَشَائِخِنَا لِاَنَّ الثَّوْبَ تَبَعٌ لَهٗ وَذُكِرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ لَابَاسَ بِدَفْعِ الْمُصْحَفِ وَاللَّوْحِ اِلَى الصِّبْيَانِ وَالْاَحْوَطُ اَنْ

يَأْخُذَ بِكُمِّهٖ وَيَدْفَعَهُ وَيَكْرَهُ اَيْضًا تَفْسِيرَ الْقُرْاٰنِ وَكُتُبَ الْفِقْهِ وَاِنْ اَخَذَ بِكُمِّهٖ لَابَأْسَ بِهٖ لِتِكْرَارِ الْحَاجَةِ لِاَهْلِهَا اِلٰى اَخْذِهٖ وَلَا تَكْرَهُ قِرَاءَةُ الْقُرْاٰنِ لِلْمُحْدَثِ ظَاهِرًا وَاَمَّا الْجُنُبُ اِذَا غَسَلَهُ فَمَهُ وَيَدَهُ فَلَا يَجُوْزُ لَهُ الْمَسُّ وَالْقِرَاءَةُ لِبَقَاءِ الْجَنَابَةِ وَتَكْرَهُ قِرَاءَةُ التَّوْرَاةِ وَالْاِنْجِيْلِ وَالزَّبُوْرِ لِلْجُنُبِ.

**ژباړه**: د جنابت حيض، او نفاس په حالت کي د پوره آيت ويل جائز نه دي، که چېري د يوه آيت څخه کم وي يا الحمد لله شريفه په نيت د دعا ووايي، دا سي آيت چي د دعا سره مشابه وي ويل يي جائز دي. د ځينو په نز مکروه دی او د ځينو په نز نه دی مکروه، د ظاهر مذهب په نز دعائ قنوت ويل مکروه نه دی، د امام محمد څخه د يوه روايت مطابق مکروه دي، قرآن د جوړ سره ويل ياکوچنيانو ته د يوه حرف ويل يې هم مکروه نه دي، دغه ډول د قرآن پاک کتابت هم نه دی جائز.

په جامع صغير کي د قاضي خان وطرف ته په منسوبولو سره ذکر دی کد چېري د قرآن پاک د کتابت په وخت کي کاغذ په مځکه وي نو د امام يوسف په نز په حالت کي د جنابت هيڅ قباحت نسته، د د جنب، حائضې او نفساءلپاره قرآن پاک ته لاس وروړل بغير د پوښه نه دي جائز، داسي درهم په کوم چي قرآن پاک نکيلی وي بغير د پوښه اخيستل ګرځول يي جائز نه دي ، دغه حکم د بې اودسه هم دی، کله چي د قرآن پاک پوښ ګنډل سوی نه وي جائزدی، که چېري ګنډل سوی وي نو جائز نه دی او بخچکی د غير مکروه په حکم ډېر موزو دی.

د امام محمد په نز په لستوڼي کي د قرآن پاک د اخيستلو هيڅ قباحت نسته، ځينو علماؤ مکروه ورته ويلي دي ولي چي لباس د هغه انسان تابع يي، کوچيانو ته قرآن او تختی ورکولو کي قباحت نسته البته بهتره دادی چي په لستوڼي کي يې ورکړي،

دغه ډول تفسير د قرآن پاک او د فقهي د کتابو مسح کول هم مکروه دي، که چېرې په لستوڼي کي يي ونسي نو د دې لپاره قباحت نسته چي د اکثرو علماؤ او طالبانو لپاره د اخستلو ضرورت پيښيږي، د بي اودسه لپاره زباني د قرآن پاک تلاوت مکروه نه دی او جنب انسان که چېري مخ لاس پريوللي نو د قرآن پاک مسح کول او ويل ورته جائز نه دي، د جنب لپاره تورات، انجيل، او د زبور ويل هم مکروه دي.

**تشريح**: د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي د نبي کريم ﷺ لپاره د جنابت څخه علاوه بل يو شی مانع د قرآن نه وو، د دې حديث مبارک څخه په حالت کي د جنابت د قرآن پاک د تلاوت عدم جواز ثابتيږي او حالت د حيض او نفاس هم پر دې قياسيږي، د ترمذي شريف په يو روايت کي عليه السلام تصريح کړي ده (لاَ تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلاَ الْجُنُبُ شَيْئًا مِّنَ الْقُرْآن) البته که چېري د يو پوره آيت څخه کم وي نو د اکثرو فقهاؤ په نز يي ويل جائز دی ولي چي قليل مقدار ويلو والا ته قرائت ويلو والا نه ويل کيږي، ځينو بيا د يوه آيت څخه په کم مقدار هم د عدم جواز فتوی کړي ده ولي چي د عليه السلام حديث عام دی او په دې کي د قليل او کثير د مقدار هيڅ قيد نسته، د مصنف رحمه الله په نز اول قول راجح دی ولي چي په لمانځه کي هم د يوه آيت څخه په کم قرآئت باندي فرض نه ادا کيږي.

دغه ډول الحمد لله شريفه په طور د دعا يا د دعا سره مشابه بل آيت مثلاً" رَبَّنَا اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ په ويلو سره يا د خوشالی په وخت کي الحمدلله يا د غم په وخت کي" انا لله وانا اليه راجعون "په ويلو کي هيڅ ګناه نسته ولي چي دلته د قاري نيت د دعا ويلو نه دی، نو د قاري و نيت ته اعتبار کيږي.

د دعائي قنوت ويل هم د اصح قول مطابق په حالت کي د جنابت وغيره مکروه نه

دی، دغه ډول کوچيانو ته د تعليم په وخت کي يو حرف يا د جوړ سره ويل مکروه نه دي، امام طحطاوي ترنيم آيته پوري د جواز قائل دی، ولي چي د دې پوري يو څوک هم قاري د قرآن نه بلل کيږي، څه ډول چي جنب، حائضه او نفساء لپاره د قرآن پاک مسح کول جائز نه دي دغه ډول د قرآن پاک ليکل هم نه دي جائز، البته د خانيو پر قول باندي يې دومره ګنجائش سته که چېري کاغذ يا تختی په مځکه باندي ايښي وي، يا قرآن پاک په داسي پوښ کي نغښتی وي چي جلا کيدی سي نو لاس وروړل جائز دي، که پر قرآن پاک پوري ګنډلی وي نو دې غلاف ته د جنبي، حائضه، نفساء او د بې اودسه لاس وروړل جائز نه دی.

د قرآن پاک څخه علاوه د فقهي کتابونه، تفسيرونه، او نورو کتابو لپاره هم طهارت بهتر دی البته د قرآن حکيم په حکم نه، ولي د علماؤ او طالبانو لپاره د دې کتابو د مسح کولو زيات ضرورت دی، د قرآن پاک حفظ هم کولی سي پر دې بنا چي د بې اودسه لپاره بغير د مسح کولو زباني تلاوت جائز دی.

د قرآن پاک په مثل نور اسماني کتابونه زبور، تورات، او انجيل هم بغير د طهارته مسح کول مکروه دي ولي چي دا کتابونه د اول څخه تر آخره پوري ټول تحريف شده دي، تحريف کړل سوي مواضع غير معين دي نو د دې لپاره د ټول کتاب تعظيم پکار دی، البته منسوخه ټول دي مګر د منسوخيت په وجه يې تعظيم نسي کېدی لکه څنګه چي په قرآن پاک کي منسوخه آياتونه قابل د تعظيم دي.

وَاِذَا اَرَادَ الْجُنُبُ الْاَكْلَ وَالشُّرْبَ يَنْبَغِيْ لَهُ اَنْ يَغْسِلَ يَدَيْهِ وَفَاهُ ثُمَّ يَاْكُلُ وَيَشْرَبُ وَيُكْرَهُ كِتَابَةُ الْقُرْاٰنِ وَاَسْمَآءُ اللهِ تَعَالٰى عَلَى الْمُصَلّٰى وَيُكْرَهُ دُخُوْلُ الْمَخْرَجِ وَفِيْ اِصْبَعِهِ خَاتِمٌ فِيْهِ شَيْءٌ مِّنَ الْقُرْاٰنِ لِمَا فِيْهِ مِنْ تَرْكِ التَّعْظِيْمِ وَكَذَا لَايَجُوْزُ لَهُمْ دُخُوْلُ الْمَسْجِدِ سَوَآءٌ دَخَلُوْا لِلْجُلُوْسِ اَوْ لِلْعُبُوْرِ وَقَالَ الشَّافِعِيُّ يَجُوْزُ

لَهُمُ الدُّخُوْلُ لِلْعُبُوْرِ وَإِذَا احْتَلَمَ فِي الْمَسْجِدِ تَيَمَّمَ لِلْخُرُوْجِ وَإِنْ خَافَ يَجْلِسُ مَعَ التَّيَمُّمِ وَلٰكِنْ لَايُصَلِّيْ وَلَايَقْرَءُ الْقُرْاٰنَ.

**ژباړه**: که جنب انسان د خوراک څښاک اراده وکړي نو د مخ لاس پرېولو وروسته دي خوراک څښاک وکړي، د قرآن پاک تلاوت، اسمائي حسناء په مصلي ویل مکروه دي او بیت الخلا ته په داسي وخت کي ورتلل چي په ګوته کي یي داسي ګوتمۍ وي چي پرهغه د قرآن پاک آیت نویشته وي نود تعظیم لازموالي په وجه مکروه دی، دا ډول هغه جنب، حائضه او نفساء لپاره ومسجد ته داخلیدل جائز نه دي که د ناستي په نیت یي یا د تیرېدو لپاره وي، امام شافعي رحمه الله وایي چي د تېرېدلو په نیت داخلېدل دوی ته جائز دي.

که چېري په مسجد کي احتلام وسي نو د وتلو لپاره تیمم وهل دي، او که خوف وي نو په مسجد کي دي ووسي مګر په دې تیمم سره دي لمونځ او تلاوت نه کوي.

**تشریح**: په حالت کي د جنابت که چېري خوراک څښاک د زړه وغواړي نو مخ لاس پرېولل مستحب دي، ځینو علماؤ ویلي دي چي په حالت کي د جنابت د خوړو او څښلو څخه تنګدستي پیدا کیږي، په هر هغه ځای کي قرآني آیاتونه، حادثونه، اسمائی حسنی او اسمای رسول لیکل چي چېري یي د توهین احتمال وي هلته یې لیکل مکروه دي.

چونکي پر مصلي یعني پرمسئله باندي کله کله د لمانځه علاوه هم ناسته کیږي نو د دې لپاره لیکل نه دي پکار ولي چي د عظمت خلاف دی البته که په جیب کي یا په یوې کیړي، لفافه. پوښ یا داسي بل شي کي نغښتی وي چي په ظاهري ډول په نظر نه سي را نو په دې کي هیڅ قباحت نسته، البته احتیاط بیاهم بهتر د، د جنب، حائضې او نفساء لپاره هم مسجد ته داخلیدل نه دي جائز.

که يوچا ته په مسجد کي احتلام راسي نو تيمم دي وکړي او د مسجد څخه دي ووزي، که د مسجد څخه دباندي د يو حيوان يا د غله بيره وي نو د ضرورت په بنا باندي په مسجد کي د تيمم سره کښني نستی سي مگر په دې تيمم سره لمونځ او تلاوت د قرآن پاک نه دی جائز.

## فصل في التيمم

وَلِلتَّيَمُّمِ رُكْنٌ وَشَرْطٌ لَابُدَّ مِنْ مَعْرِفَتِهَا اَمَّا رُكْنُهُ فَضَرْبَتَانِ ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَضَرْبَةٌ لِلذِّرَاعَيْنِ يَعْنِيْ يَدَيْهِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ وَصِفَتُهُ اَنْ يَضْرِبَ يَدَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ اَوْعَلٰى مَاهُوَ مِنْ جِنْسِ الْاَرْضِ ضَرْبَةً وَاحِدَةً مُتَفَرِّجًا اَصَابِعَهُ فَيَنْفُضُهُمَا مَرَّةً اَوْ مَرَّتَيْنِ فَيَمْسَحُ بِهِمَا وَجْهَهُ ثُمَّ يَضْرِبُ ضَرْبَةً اُخْرٰى فَيَنْفُضُهُمَا وَيَمْسَحُ الْيُمْنٰى بِالْيُسْرٰى وَالْيُسْرٰى بِالْيُمْنٰى مِنْ رُءُوْسِ الْاَصَابِعِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ وَاِسْتِيْعَابُ الْعُضْوَيْنِ بِالْمَسْحِ وَاجِبٌ عِنْدَ الْكَرْخِيِّ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ عَنْ اَصْحَابِنَا حَتّٰى لَوْ تَرَكَ شَيْئًا قَلِيْلاً مِنْ مَوَاضِعِ التَّيَمُّمِ لَايُجْزِيْهِ وَرُوِيَ الْحَسَنُ بِنْ زِيَادٍ عَنْ اَصْحَابِنَا اَنَّ الْاِسْتِيْعَابَ لَيْسَ بِوَاجِبٍ حَتّٰى لَوْتَرَكَ اَقَلَّ مِنَ الرُّبُعِ يُجْزِيْهِ وَعَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ نَزْعُ الْخَاتِمِ وَالسِّوَارِ وَتَخْلِيْلُ الْاَصَابِعِ لَايَجِبُ وَعَلٰى تِلْكَ الرِّوَايَةِ يَجِبُ وَيَنْبَغِيْ اَنْ يُحْتَاطَ وَرُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ لَوْتَرَكَ ظَهْرَ كَفَّيْهِ بِلَا مَسْحٍ لَايُجْزِيْهِ وَمَقْطُوْعُ الْيَدَيْنِ مِنَ الْمِرْفَقَيْنِ اِذَا تَيَمَّمَ يَمْسَحُ مَوْضِعَ الْقَطْعِ.

**ژباړه**: د تیمم لپاره ارکان او شروط سته چي د هغو پېژندل ضروري دي، رکن دوه واره لاس وهل دي، یو وار د مخ لپاره او یو وار د څنګلو لپاره، د تیمم طریقه داده چي دواړه لاسونه پر مځکه یا په هغه شي سره چي د جنس څخه د مځکي وي، یو وار د خلاصو ګوتو په حالت کي ووهي او وروسته د دې دي یو یا دوه واره وڅنډي یا دي تړوله مخ په مسحه کړي، بیا دي یو وار ووهي او دواړه لاسونه دي وڅنډي او

راسته لاس د چپه لاس او چپه لاس د راسته لاس د ګوتو په سرو سره ترڅنګلو پوري دي مسح کړي او په مسح کي دواړه اعضاء مخ، لاس پوره احاطه کول دي.

د امام کرخي رحمه الله په نز تیمم واجب دی لکه څنګه چي زموږ د اصحابو حنفیو څخه ظاهر روایت هم دغه دی، تر دې پوري که چېري یوځه ځای هم پاته سي نو تیمم نه کیږي ، حسن ابن زیاده زموږ د اصحابو څخه روایت کړی دی چي پوره احاطه کول واجب نه دي تر دې پوري که چېري د څلورمي څخه کم د اندام مسح پاته سي لا تیمم کیږي، په دې روایت سره د ګوتمی او بنګړي، کړی ایستل او خلالول واجب نه دي، په اول روایت سره واجب دي او مناسب احتیاط هم دغه دی، د اما محمد رحمه الله څخه روایت دی که چېري د څنګلو د ظاهر مسح پاته سي نو تیمم جائز نه دی او د چا چي دواړه لاسونه ترڅنګلو پوري پرې وي نو چي کله تیمم وهي په پرې سوي ځایو دي مسح وکړي .

**تشریح:** مصنف رحمه الله د اوداسه او د غسل د بیان د فراغت څخه وروسته اوس د تیمم بیان کوي، د تیمم لغوي معنٰی د مضبوطي ارادې ده، په اصطلاح کي د شریعت د خاورو څخه پاکي حاصلولوته ویل کیږي، د تیمم ثبوت د قرآن پاک آیت دی (فَلَمۡ تَجِدُوۡا مَآءً فَتَيَمَّمُوۡا صَعِيۡدًا طَيِّبًا)، او علیه السلام حدیث مبارک، دی چي تیمم د مسلمانانو لپاره د پاکی ذریعه ده که څه هم ترشپږو لسو کالو پوري وي .

د دې مفهوم د نورو احادیثو مبارکو څخه هم تیمم ثابت دی. په تیمم کي دوه فرض دي یو رکن چي د دواړو لاسو پر مخکه دوه واره وهل دي او یو شرط یعني نیت .

د تیمم مسنونه طریقه داده چي یو وار په پاکه مځکه دواړه لاسونه ووهی او د پورته کولو وروسته یو یا دوه واره یې وڅنډی د دې لپاره چي کومي خاوري په لاسو

مبتني وي هغه کښته سي او مخ ډېر په ګرز په خاوره ککړ نه سي، وروسته د ذې تول مخ په لاسو سره مسح کړي، دوهم وار لاسونه په مځکي د وهلو وروسته راسته لاس په چپه او چپه لاس په راسته سره مسح کړي نو تيمم پوره سو .

مګر څنګه چي په اوداسه کي د مخ او د دواړو لاسو پوره احاطه ضروري ده چي يو ځاى هم خالي نه سي پاته، دغه ډول په تيمم کي هم د دواړو اندامو پوره مسح کول واجب دي، زموږ د آئمه حنفيه څخه په ظاهرو متونو کي دغه منقول دي مګر حسن ابن زياد د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله څخه دا هم نقل کړي دي چي که چېري د ځلورمي څخه کوم اندام پاته سي نو تيمم کيږي .

د هر اندام په ګُلي طور سره مسح کول ضروري نه دي لکه څنګه چي په نورو ممسوحاتو يعني د سر او موزو په مسح کي استيعاب واجب نه دی بلکي د سر ځلورمه حصه او په موزو کي د درو ګوتو په مسح سره فرض پوره کيږي، مګر حتياط د امام کرخي رحمه الله په روايت کي دی چي استيعاب واجب دی، که څه هم دا سح ده مګر د تيمم مسح د پرېولو قائم مقامه ده کله چي د اودس کولو څخه عضاء پرېولل متعذر سي نو تيمم کيږي او د موزو د مسحي څخه د پښو پرېولل ساقطيږي، نه دا چي د قائم مقام په حيثيت سره کيږي .

وَاَمَّا شَرْطُهُ فَالنِّيَّةُ فَلَا يَجُوْزُ بِدُوْنِهَا وَكَذَا طَلَبُ الْمَآءِ اِذَا غَلَبَ عَلٰى ظَنِّهِ اَنَّ هُنَاكَ مَآءً اَوْ كَانَ فِي الْعِمْرَانَاتِ اَوْ اُخْبِرَ بِهِ وَجَبَ الطَّلَبُ بِالْاِجْمَاعِ وَاِنَّمَا الْخِلَافُ فِيْمَا اِذَا لَمْ يَغْلِبْ عَلٰى ظَنِّهِ اَوْ لَمْ يُخْبِرْ بِهِ اِنْسَانٌ اَوْ كَانَ فِي الْفَلَوَاتِ عِنْدَنَا لَا يَجِبُ خِلَافًا لِّلشَّافِعِيِّ وَلَوْ اَخْبَرَ اِنْسَانٌ بِعَدَمِ الْمَآءِ جَازَ بِلَا خِلَافٍ.

**ژباړه**: د تيمم نيت شرط دی چي د ذې بغير جائز نه دی دغه ډول د اوبو طلب کول

که چېري غالب ګمان دا وي چې اوبه به پیدا سي که په ابادۍ کي وي، یا د اوبو خبر ورکړل سوی وي نو بالاجماع طلب کول یې واجب دي، اختلاف په دې کي دی چې کله ګمان نه وي یا چا خبر نه وي ورکړی یا په صحرا کي وي نو زموږ په نز طلب واجب نه دی ، خلافا للشافعي رحمه الله که چېري څوک د اوبو د نیستی اطلاع ورکړي نو بلا خلاف جائز دی .

**تشریح**: د تیمم لپاره نیت شرط د طهارت دی، امام زفر رحمه الله وایي چې کله په اوداسه کي نیت طهارت فرض نه دی نو تیمم کوم چې د اوداسه قائم مقام دی په دې کي هم فرض کول د نیت صحیح نه دی .

موږ جواباً وایو چې د لفظ تیمم څخه خپله د نیت معنٰی څرګندیږي، ولې چې د تیمم معنٰی قصد او اراده کول دي، خاوره خلقتًا لپاره د تطهیر نه ده نو خاوره لپاره د طهارت بغیر د نیته څنګه استعمال کېدی سي؟ د دې لپاره که څوک په تیزو دوړو کي ودرېږي او د ده پر مخ او لاسو ګرزونه ولګېږي یا چا ته یې د ښوولو لپاره تیمم ووهی او په خپله یې نیت د طهارت نه وو نو دا سړی شرعاً متیمم نه بلل کیږي، البته صرف نیت د طهارت فرض دی او تخصیص ضروري نه دی.

که دا تیمم خاص لپاره د اودس او یا لپاره د جنابت وي، که چېري یې غالب ګمان داوي چې نژدې به اوبه پیدا سي په ابادۍ کي نو چې غالب ګمان یې دا کیږي او دا ابادي دلته قائمه ده نو لازماً د اوبو انتظام به هم وي یا یو عادل سړي دا خبر ورکړ چې په فلاني ځای کي اوبه سته نو بغیر د تلاش کولو تیمم جائز نه دی .

فقهاؤ کرامو لیکلي دي چې غشی کله د کمان څخه ووزي نو تقریباً د درې سوه څخه تر څلور سوه قدمو پوري ځي، دغه ډول د څلور سوه قدمه پوري د اوبو تلاش ضروري دی، د دې بغیر تیمم جائز نه دی البته که چېري غالب ګمان دا وي چې دلته د ابو وجود ممکن نه دی او نه ابادي وي نه یو چا یقیني خبر کړی وي نو د احنافو

رحمهم الله تعالی په نز طلب واجب نه دی ، د امام شافعي رحمه الله په نزدي بیا هم د طلب ضروري خیال کوي، که چېري څوک د ابو د نیستۍ یقیني خبر ورکړي نو بالاتفاق طلب واجب نه دی .

وَكَذَا مِنْ شُرُوْطِهِ عَجْزُهُ مِنْ اِسْتِعْمَالِ الْمَآءِ حَتّٰى اَنَّ الْمَرِيْضَ اِذَا خَافَ زِيَادَةَ الْمَرَضِ اَوْ اِبْطَاءِ الْبَرْءِ جَازَلَهُ التَّيَمَّمُ وَذَكَرَ الْاِسْبِيْجَابِيُّ فِيْ شَرْحِهِ جُنُبٌ عَلٰى جَمِيْعِ جَسَدِهِ جِرَاحَةٌ اَوْ عَلٰى اَكْثَرِهِ اَوْ بِهِ جَدَرِيٌّ فَاِنَّهُ يَتَيَمَّمُ وَلَايَجِبُ عَلَيْهِ غَسْلُ الْمَوَاضِعُ الَّذِيْ لَاجِرَاحَةَ بِهِ وَكَذَالِكَ اِذَا كَانَ عَلٰى اَعْضَآءِ الْوُضُوْءِ كُلِّهَا اَوْ اَكْثَرِهَا جِرَاحَةٌ يَتَيَمَّمُ وَاِنْ كَانَ عَلٰى اَقَلِّهَا جِرَاحَةٌ وَاَكْثَرُهَا صَحِيْحٌ فَاِنَّهُ يَغْسِلُ الصَّحِيْحَ وَيَمْسَحُ عَلَى الْمَجْرُوْحِ اِنْ لَّمْ يَضُرُّهُ الْمَسْحُ وَاِنْ كَانَ يَضُرُّهُ الْمَسْحُ مَكْشُوْفَةً يَرْبِطُ عَلَيْهِ الْجَبِيْرَةَ وَيَمْسَحُ فَوْقَهُ وَاِنْكَانَ لَايَضُرُّهُ يَمْسَحُ عَلَى الْجِرَاحَةِ.

**ژباړه:** دغه ډول د تیمم په شرائطو کي د اوبو د استعمال څخه عاجزه کیدل تر دې پوري چي ناروغ ته په زیاتوب د مرض یا په ځنډ د جوړېدو اندیښنه وي نو د هغه لپاره تیمم جائز دی .

اسبیجابي په خپله شرح کي بیان کړی دی وایي که چېري د جنب انسان په ټوله بدن یا په اکثره بدن زخم وي یا دانې وي نو تیمم دي ووهي او په مابینځ کي د جوړو ځایونو پرېولل واجب نه دي، دغه ډول که چېري په ټوله اعضاء د اوداسه په اکثرو ځایو باندي زخم وي نو تیمم دي ووهي، که زخم کم وي او اکثره جوړ وي نو چي کوم جوړ وي هغه دي پرېولي او په زخمي اندامو که چېري ضرر نه وي نو مسح دي وکړي او که په خلاص زخم کولو کي تکلیف رسیږي نو وروسته د پټۍ د تړلو دي مسح

وکړي او که ضرر نه وي نو په زخم دي مسح وکړي.

**تشريح**: د قرآن پاک آيت دی (وَاِن كُنتُم مَرضٰى) الفاظو څخه دا خبره په ظاهري طور ثابتيږي چي مرض د تيمم لپاره شرط دی، نو باقي عذرو په وخت تيمم د دې لپاره جائز دی چي ځيني عذرونه د مرض څخه هم زيات لوی وي نو چي کله په مرض کي تيمم جائز دی نو د مرض په مثال د نورو عذرو د وجي څخه هم تيمم جائز دی ولي چي الله تعالى ويلي دي چي (مَايُرِيدُ اللّٰهُ لِيَجعَل عَلَيكُم مِن حَرَجٍ) که چيري د اوداسه په وجه زيادت د مرض يا په جوړيدلو کي د تاخير خوف وي نو د احنافو رحمهم الله په نز تيمم جائز دی، د دې لپاره اسبيجابي په خپله شرحه کي ليکلي دي که چيري د جنب انسان په ټوله يا په اکثره جسم زخم يا دانې وينو هغه په اوبو لګيدلو سره تکليف رسيږي، دغه ډول په اوداسه کي هم نو تيمم دي ووهي، په قليل مقدار هغه مواضع چي جوړ وي د هغوی پرېولل واجب نه دی ولي چي زموږ په نز پرېولل او تيمم دواړه نه سي جمع کېدی، بلکي د اکثرو اعتبار کولو سره صرف عمل باندي کيږي.

وَالْجُنُبُ الصَّحِيْحُ فِي الْمِصْرِ اِذَا خَافَ اِنِ اغْتَسَلَ اَنْ يَّقْتُلَهُ الْبَرْدُ اَوْ يُمَرِّضَهُ يَتَيَمَّمُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاِنْ كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ يَتَيَمَّمُ بِالْاِتِّفَاقِ وَاِنْ خَرَجَ مُسَافِرًا اَوْ مُحْتَطِبًا اَوْ خَرَجَ مِنْ قَرْيَةٍ اِلٰى قَرْيَةٍ يَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ اِنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمَآءِ نَحْوُ مِيْلٍ اَوْ اَكْثَرُ وَالْمِيْلُ اَرْبَعَةُ اٰلَافِ خُطْوَةٍ وَكُلُّ خُطْوَةٍ ذِرَاعٌ وَنِصْفُ ذِرَاعٍ وَكُلُّ ذِرَاعٍ اَرْبَعَةٌ وَعِشْرُوْنَ اِصْبَاعًا وَهُوَ اَرْجَحُ وَهُوَ ثُلُثُ الْفَرْسَخِ سَوَآءٌ خَرَجَ مِنَ الْمِصْرِ اَوِ الْقَرْيَةِ جُنُبًا اَوْ اَجْنَبَ بَعْدَ الْخُرُوْجِ.

**ژباړه**: په جسماني طور باندي جوړ جنب انسان که چيري په ښار کي : اوسېدو په

حالت د غسل کولو په وجه سره مرني یا د ناروغۍ خوف لري نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نز دي تیمم ووهي، که چېري د ښار څخه دباندي وي نو بالاتفاق تیمم وهلی سي، که د سفر په اراده د کور څخه ووزي یا د لرګیو لپاره یا د یوه کلي څخه د بل کلي طرف ته روان وي نو د هغه لپاره تیمم جائز دی په دې شرط چي د هغه او د اوبو په مابینځ کي د یوه میل فاصله وي یا د دي څخه زیاته وي، میل څلور زره قدمه دی او هر قدم یونیم ګز دی او هر ګز ۲۴ اینچه دی، بهتر دغه قول دی او میل د یوه فرسخ (۱/۳) دی، که دښار یا د کلي څخه په حالت کي د جنابت وتلی وي یا د وتلو وروسته جنوب سوی وي.

**تشریح**: که په اٰبادۍ کي جنوب انسان ته دا خوف لاحق وي که زه په یخو اوبو سره غسل وکړم نو هلاک یا به ناروغه سم نو د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په نز په ښلذۍ کي د اوسېدلو په حالت کي هم تیمم جائز دی ولي د چا لپاره چي په اٰبادۍ کي د ګرمو اوبو انتظام نه سي کېدی نو د هغه په حق کي صحرا او اٰبادي برابر دي.

صاحبین رحمهم الله په غالب حالت د حکم کولو سره ویلي دي چي چونکي په اکثرو ابادیو کي د ګرمو حمامو انتظام وي نو د دې لپاره په ابادۍ کي د یخ د ېيري څخه د غسل په ځای تیمم وهل جائز نه دی، البته د اٰبادیو څخه د وتلو په حالت کي بالاتفاق تیمم وهل جائز دی.

دغه ډول که څوک د شرعي په‌اندازه مسافر نه وي، د خپل یار یا د یوچا د ملاقات لپاره یا د محنت مزدورۍ مثلاً لرګي راوړلو لپاره ووزي او د لمانځه وخت سي نو اوبه که چېري د یویه میل یا د دې څخه په زیاته فاصله وي نو تیمم جائز دی، او که فاصله د یوه میل څخه کمه وه نو جائز نه دی که څه هم اوبوته ته په رسېدلو کي د لمانځه فوت کیدلو خوف وي، د میل مقدار د فقهاؤ کرامو د راجح قول مطابق څلور زره قدمه او هر قدم یو نیم ګز یعني د شرعي په‌ګز سره شپږ زره ګزه کېږي، شرعي ګز

د موجوده زماني د حساب څخه اتلس اینچه یعني یونیم فټ دی، د شرعي میل په باره کي د پوره تحقیق او څېړني سره د آئمه وو اختلافي اقوالو لپاره (احسن الفتاوی، باب صلوٰة المسافر جلد څلورم کتلی سئ).

وَاِنْ كَانَ مَعَهُ مَآءٌ فِيْ رَحْلِهٖ فَنَسِيَهُ وَتَيَمَّمَ وَصَلّٰى ثُمَّ تَذَكَّرَ فِي الْوَقْتِ لَمْ يُعِدْ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَعِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ يُعِيْدُهَا وَاِنْ تَذَكَّرَ بَعْدَ خُرُوْجِ الْوَقْتِ لَمْ يُعِدْ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا وَاِذَا تَيَمَّمَ وَصَلّٰى وَالْمَآءُ قَرِيْبٌ مِّنْهُ وَهُوَ لَايَعْلَمُ وَلَايَظُنَّ اَجْزَاهُ وَاِنْكَانَ مَعَ رَفِيْقِهٖ مَآءٌ لَايَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ قَبْلَ اَنْ يَّسْئَلَ اِذَا كَانَ غَالِبُ ظَنِّهٖ اَنَّهُ يُعْطِيْهِ وَاَمَّا اِذَا كَانَ غَالِبُ ظَنِّهٖ اَنَّهُ لَمْ يُعْطِهٖ وَلَمْ يَسْئَلْ وَتَيَمَّمَ وَصَلّٰى جَازَ وَاِنْ تَيَمَّمَ قَبْلَ اَنْ يَّسْئَلَ وَصَلّٰى ثُمَّ سَئَلَ فَاَعْطٰى يَلْزَمُهُ الْاِعَادَةُ وَاِذَا كَانَ غَالِبُ ظَنِّهٖ اَنَّهُ يُعْطِيْهِ وَلَمْ يَسْئَلْ وَتَيَمَّمَ قَبْلَ اَنْ يَّسْئَلَ وَصَلّٰى ثُمَّ سَئَلَ فَاَعْطٰى يَلْزَمُهُ الْاِعَادَةُ وَاِذَا كَانَ غَالِبُ ظَنِّهٖ اَنَّهُ يُعْطِيْهِ وَلَمْ يَسْئَلْ وَتَيَمَّمَ قَبْلَ اَنْ يَّسْئَلَ وَصَلّٰى ثُمَّ اَعْطٰى لَهُ يَلْزِمُهُ الْاِعَادَةُ.

**ژباړه**: که چېري یې په خپل سامان کي اوبه ایښې وي بیایې ایري سوي وي، نو د تیمم سره یې لمونځ وکړ او د لمانځه په وخت کي اوبه وربه یاد سوي نو د امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نز اعاده نسته، د امام یوسف رحمه الله په نز بیا د لمانځه اعاده سته، که چېري د وخت د اختتام وروسته وربه یاد سي نو بالاتفاق اعاده نسته.

که په تیمم سره لمونځ وکړي او اوبه نژدي وي مګر لمونځ کونکي ته معلومي نه وي او نه یې ګمان وي نو لمونځ یې جائز دی، که چېري د سفر د ملګري سره اوبه وي

او د ورکولو يي غالب ګمان وي نو د اوبو د غوښتلو څخه د مخه تيمم نه دی جائز که غالب ګمان يې د نه ورکولو وي نو يي د غوښتلو بغيره په تيمم سره لمونځ وکړ نو جائز دی، که چېري د غوښتلو ترمخه په تيمم سره لمونځ وکړي د هغه وروسته يي وغوښتلي او وريي کړي نو د لمانځه اعاده لازمه ده او کله چي يې غالب ګمان دا وي چي ور به يې کړي او د غوښتلو بغيره يي په تيمم سره لمونځ وکړ د هغه وروسته يي اوبه ورکړي نو اعاده يي لازمه ده.

**تشريح**: د مسافر که چېري په خپل سامان کي اوبه ايري سي او په تيمم سره د لمونځ کولو وروسته يي په يادي سي نو که چېري د ادا کړل سوي لمانځه وخت تر اوسه پوري باقي وي د طرفينو په نز د لمانځه اعاده نسته، امام يوسف رحمه الله وايي چي د وخت د بقا په صورت کي يي اعاده ضروري ده ولي چي اکثره داسي کيږي چي د مسافر په سامان کي اوبه موجودي وي نو مسافر لره پکار وه چي د تيمم څخه ترمخه يي په خپل سامان کي اوبه تلاش کړي وای او کله چي هغه بغير د تلاشه په تيمم سره لمونځ وکړ نو اعاده يي ضروري ده.

طرفين وايي چي د مسافرو په سامان کي موجودي اوبه عموماً د څښلو لپاره يي کومي چي د اودس په حق کي مفقودي شماريل کيږي نو د دې لپاره په سامان کي د اوبو تلاش کول ضروري نه دی، که چېري بغير د تلاشه په تيمم سره يي لمونځ وکړ نو اعاده واجب نه ده البته د آئمه وو د اختلاف څخه د ځان ساتلو لپاره اعاده بهتره ده، اختلاف په صورت کي دی چي په سامان کي يې اوبه خپله ايښي وي يا بل چا د ده په حکم باندي ايښي وي، که چېري د ده د ويلو بغير بل چا ايښي وي نو بالاتفاق اعاده لازمه نه ده.

دغه ډول که چېري د وخت د وتلو وروسته يې په ياد سي نو بالاتفاق اعاده يې نسته او اوبه که چېري معلومي نه وي چي دلته په لږ فاصله باندي اوبه موجودي

دي نو د لاعلمي په وجه يي په تيمم سره لمونځ وکړ نو جائز دی، چي نژدې نهر بهېږي او هغه ته معلوم نه وي .

وَاِنْ كَانَ لَايُعْطِيْهِ اِلاَّ بِالثَّمَنِ فَاِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ ثَمَنٌ تَيَمَّمَ بِالْاِجْمَاعِ وَلَوْ كَانَ مَعَهُ مَالٌ زِيَادَةٌ عَلٰى مَا يَحْتَاجُ اِلَيْهِ فِي الزَّادِ اِنْ بَاعَهُ بِمِثْلِ الْقِيْمَةِ اَوْ بِغَبْنٍ يَسِيْرٍ لَايَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ وَاِنْ بَاعَهُ بِغَبْنٍ فَاحِشٍ تَيَمَّمَ وَالْغَبْنُ الْفَاحِشُ مَا لَايَدْخُلُ تَحْتَ تَقْوِيْمِ الْمُقَوِّمِيْنَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ تَضْعِيْفُ الثَّمَنِ وَعَنْ نَصِيْرِ بْنِ الصَّفَّارِ اَنَّ الْمُسَافِرَ اِذَا كَانَ فِيْ مَوْضِعٍ عَزَّ الْمَاءُ فِيْهِ فَالْاَفْضَلُ اَنْ يَسْئَلَ عَنْ رَفِيْقِهِ وَاِنْ لَمْ يَسْئَلْهُ وَتَيَمَّمَ وَصَلّٰى اَجْزَاهُ وَاِنْ كَانَ فِيْ مَوْضِعٍ لَايُعِزُّ الْمَآءُ فِيْهِ لَا يَجْزِيْهِ قَبْلَ الطَّلَبِ كَمَا فِي الْعِمْرَانَاتِ.

**ژباړه:** که څوک يي بغير قيمته اوبه نه ورکوي او د هغه سره د اوبو قيمت نه وي نو بالاتفاق دي تيمم ووهي، که په توښه کي د ضرورت څخه زائد مال موجود وي نو که څوک يي په مناسب قيمت سره اوبه خرڅيږي يا په لږ ګرانۍ سره يي ورکوي نو تيمم جائز نه دی .

که يې د غبن فاحش څخه ورکوي نو تيمم دي ووهي، د غبن فاحش څخه مراد هغه قيمت دی کوم چي د سوداګرانو د عام نرخ څخه ډېر زيات وي، ځينو د اصل قيمت د ګناه کولو ته غبن فاحش ويلی دی .

د نصير ابن صفار څخه روايت دی چي مسافر که چېري په داسي علاقې کي وي چي هلته اوبه قيمتي وي نو بهتره ده چي د خپل ملګري څخه يې وغواړي، که چېري يي بغير د غوښتلو لمونځ وکړ نو جائز دی او که داسي ځای وي چي اوبه قيمتي نه

وي لکه په ابادیو کي نو د غوښتلو تر مخه تیمم جائز نه دی.

**تشریح**: د مسافر ملګری که چېري او به قیمتاً ورکوي نو په دې کي دوه صورتونه دي یو دا چي د دې مسافر سره د سفرخرچې علاوه څه زائد مال موجود نه وي نو چونکي هغه په اوبو قادر نه دی لهٰذا د ده لپاره تیمم جائز دی، البته که چېري د ضرورت څخه زائد مال موجود وي نو اوبه د خپل مناسب او لږ زیات قیمت سره ورکوي نو دا مسافر په اوبو قادر دی د دې لپاره تیمم وهل جائز نه دی.

که د مناسب قیمت څخه په ډېر زیات نرخ یې خرڅوي نو په دې نامناسب قیمت سره اخستل یې ضروري نه دي ولې چي دا مال تلفول دي او د مال تلفول د ځان تلفولو په ډول مشکل دی، په دې کي په مسافر حرج واقع کېږي، لهٰذا په تیمم سره دې لمونځ وکړل سي، د امام قاضي د قول مطابق غبن فاحش د ګناه قیمت ته ویل کېږي چي د یوه درهم شی په دوه درهمه خرڅ سي.

رَجُلٌ مَعَهُ مَآءُ زَمْزَمٍ فِيْ قُمْقُمَةٍ وَقَدْ رَصَّصَ رَأْسَ الْاِنَآءِ وَيَحْمِلُهُ لِلْعَطِيَّةِ اَوْ لِلْاِسْتِشْفَآءِ لَايَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ وَلَوْ وَهَبَهُ لِاٰخَرَ وَسَلَّمَهُ اِلَيْهِ لَايَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ عِنْدَنَا لِثُبُوْتِ الْقُدْرَةِ بِوَاسِطَةِ الرُّجُوْعِ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَاِنْ كَانَ الْمَآءُ فِي الْبِئْرِ وَلَمْ يَكُنْ مَعَهُ دَلْوٌ اَوْ رَشَآءٌ هَلْ يَجِبُ عَلَيْهِ اَنْ يَسْئَلَ رَفِيْقَهُ اَمْ لَا قَالُوْا لَايَجِبُ وَلَوْسَئَلَ فَقَالَ لَهُ انْتَظِرْ فَعِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ يَنْتَظِرُ اِلٰى اٰخِرِ الْوَقْتِ فَاِنْ خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ تَيَمَّمَ وَصَلّٰى وَعِنْدَهُمَا يَنْتَظِرُ وَاِنْ فَاتَ الْوَقْتُ وَكَذَا فِي الْعَارِيْ وَمَعَ رَفِيْقِهٖ ثَوْبٌ وَاَجْمَعُوْا عَلٰى اَنَّهُ فِي الثَّوْبِ لَايَنْتَظِرُ وَفِي الْمَآءِ يَنْتَظِرُ وَاِنْ فَاتَ الْوَقْتُ.

**ژباړه**: که د یو سړي سره په کوزه کي د زمزم اوبه وي هغه کوزه چي د هغې سر په

قلعي سره بند وي چي هغه په طور د شفاء حاصلولو لپاره وړي نو تيمم جائز نه دی .
که چېري چاته يې په طور د بخشش ورکړي وي نو زموږ په نز د قدرت د موجودګی په وجه تيمم د دې لپاره جائز نه دی چي په رجوع کولو سره خپل بخشش بيرته واخلي، دغه ډول په محيط کي هم ذکر دي.

که چېري په ځاه کي اوبه موجودي وي مګر سولاغه ستل او رسۍ نه وي ورسره نو په هغه واجب دی چي د خپل ملګري څخه يي طلب کړي که نه؟

وايي چي واجب نه دی که چېري يي وغوښتل او هغه وويل چي انتظار وکړه نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نز تر آخر وخته پوري دي انتظار وکړي، وروسته که چېري د وخت د ختمېدلو خوف وي نو په تيمم سره دي لمونځ وکړي، د صاحبينو په نز انتظار دي وکړي که څه هم وخت ختم سي، دغه ډول لګ وي که چېري د ده د ملګري سره کپړه موجوده وي مګر په دې کي اتفاق دی چي د کپړي انتظار دي نه کوي او په اوبو کي دي انتظار وکړي که څه هم وخت ختم سي .

**تشريح:** که يوسړی چاته د تحفې ورکولو لپاره يا د څه مرض څخه د شفاء حاصلولو په غرض د خپل ځان سره په سفر کي اوبه وړسي او د دې لوښي سر په پخه طريقه سره بند کړي نو د ده لپاره تيمم جائز نه دی که څه هم نوري اوبه موجودي نه وي ولي چي دا هم پاکي اوبه دي او په دې سره طهارت حاصلېدی سي، که صفا اوبه د استعمال او د قدرت سره موجودي وي نو د جائزېدو شرائط پوره نه وي د تحفې او شفاء حاصلولو لپاره نور شيان هم په استعمال کي را وړلی سي .

دغه ډول که چېري دا اوبه يو چاته هبه کړي نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د مسلک مطابق د غيرذي رحم څخه په هبه کي رجوع کول جائز ده نو . هغه موهوب څخه اوبه بيرته په رجوع کولو سره حاصلېدی سي البته که چېري ذي رحم ته يي هبه کړي وي نو رجوع نه ده جائز او د قدرت د نه حاصلېدلو په وجه تيمم جائز دی .

که په ځاه کي اوبه وي او د را ایستولو لپاره رسۍ او سولاغه موجوده نه وي نو رسۍ او سولاغه د چاڅخه غوښتل نه دي واجب مګر د دې باوجوده که چیري د چا څخه یې وغواړي او هغه ورته ووایي چي انتظار وکړه زه په لږ وخت کي تالره رسۍ او سولاغه را وړمه نو د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په نز تر آخر وخته پوري انتظار مستحب دی او د وخت فوتېدو څخه ترمخه دي په تیمم سره لمونځ وکړي ، د صاحبینو د قول مطابق انتظار واجب دی که څه هم د لمانځه وخت فوت سي .

وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ مَآءً اِلاَّ سُؤْرَ الْحِمَارِ اَوِالْبَغْلِ يَتَوَضَّأُ بِهِ وَيَتَيَمَّمُ وَاَيُّهُمَا قَدَّمَ جَازَ وَلٰكِنَّ الْاَفْضَلَ اَنْ يَّبْدَءَ بِالْوُضُوْءِ وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ اِلاَّ سُؤْرَ الْفَرَسِ فَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ رِوَايَتَانِ اِلٰى اَرْبَعَ رِوَايَاتٍ فِيْ رِوَايَةٍ مَشْكُوْكٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ مَكْرُوْهٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ طَاهِرٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ نَجَسٌ وَالْفِتْوٰى عَلٰى اَنَّهُ طَاهِرٌ وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ اِلاَّ نَبِيْذَا التَّمَرِ فَعِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ يَتَوَضَّأُ بِهِ وَلاَيَتَيَمَّمُ وَعِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ يَتَيَمَّمُ وَلاَيَتَوَضَّأُ بِهِ وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ اِلاَّ عَصِيْرَ الْعِنَبِ لاَيَتَوَضَّأُ بِهِ بِالْاِجْمَاعِ.

**ژباړه:** که د چا لپاره د خره او خچر د پسخوردې څخه علاوه نوري اوبه نه وي نو په دې اوبو دي اودس هم وکړي او ورسره دي تیمم هم وکړي او کوم یو چي مقدم کړي جائز دی مګر اول اودس کول افضل دی .

که یو چاته د آس د پسخوردې څخه علاوه نوري اوبه نه سي پیدا نو په دې باره کي د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله څخه تر دوو بیا تر څلورو پوري روایتونه دي، په یوه روایت کي مشکوک، په یوه کي مکروه، په یوه روایت کي پاک او په بل روایت کي ناپاکي دي او فتوی په پاکیدو کي ده .

که چاته د نبذ تمر (هغه اوبه په کومو چي خرما اینبودل کیږي او په هغوی کي د

خُرما خوږوالی راځي) څخه علاوه نوري اوبه نه سي پیدا نو د حضرت امام ابو حنیفهؒ په نز په دغه سره دي اُودس وکړي او تیمم دي نه وهي، د امام یوسفؒ په نز تیمم دي وهي او اودس دي نه کوي ، د امام محمدؒ په نز اودس او تیمم دواړه دي وکړي، چاته چي د انګورو د نیستېږلو اوبو څخه علاوه نوري اوبه نه وي پیداسوي نو بالاتفاق اودس دي نه کوي .

**تشریح**: د خره او د خچر په پسخوردو کي مختلف اقوال دي، د ځینو څخه طهارت او د ځینو سره نجاست ثابتیږي، نو په طهارت او نجاست سره په کوم یوه باندي یقیني حکم نه سي کېدی نو احتیاط په دې کي دی چي د اودس او تیمم دواړو حکم دي ورکړل سي، د آس په پسخورده کي د حضرت امام ابوحنیفهؒ څخه چونکي شاګردانو مختلف اقوال نقل کړي دي مګر صحیح قول د پاک دی، صاحبین هم د آس پسخوردې ته پاک ویلي دي ولي چي د پسخوردې حکم د غوښو تابع دی ، د حضرت امام ابو حنیفهؒ په نز کراهتاً چي دا اله جهاد دی، نو د دې لپاره یې غوښه خوړل بهتر نه دي .

بالاتفاق د آس پسخورده هم پاکه ده او په دې سره پاکي حاصلېدی سي په نبیذ تمر (یعني هغه اوبه په کومو چي د خرما خوږوالی راغلي وي) کي د آئمه وو د احنافو اختلاف واقع سوی دی چي په دې سره پاکي حاصلول جائز دي که نه؟ د حضرت امام ابوحنیفهؒ په نز په نبیذ تمر سره پاکي حاصلول جائز دي ولي چي په ابوداود او ترمذي شریف کي روایت دی چي عبدالله بن مسعودؓ وایي چي د لیلة الجن په موقع باندي علیه السلام ماته وویل چي په لوښي کي څه شی دی، ما ورته وویل چي نبیذ تمر دی نو علیه السلام وویل خُرما پاکي دي او اوبه یې هم پاکي دي نو په هغوی سره اودس وکړئ، مګر د امام یوسفؒ په نز په نبیذ تمر سره اودس کول جائز نه دی، د دې لپاره چي په آیت تیمم سره هغه دا حدیث منسوخ شماري. امام

محمد رحمه الله احتیاطاً د اودس او تیمم دواړو حکم وکړ چې د ناسخ لپاره د منسوخ څخه موخره کېدل ضروري دي، او د لیلة الجن وقوع تقریباً شپږ واره پیش سوي دي. ځیني وخت په مکه مکرمه او ځیني وخت په مدینه منوره کي، نو په صحیح طور معلومه نه ده چي حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د کوم وار ذکر کوي، د دې لپاره امام محمد رحمه الله احتیاطاً د دواړو جمع کولو قول کړی دی مګر فتوی د امام یوسف رحمه الله په قول ده چي د نبیز تمر څخه پاکي حاصلول جائز نه ده البته په نورو اشربه مثلاً د انګور وغیره کي د عدم اختلاف په بناء بالاتفاق اودس جائز نه دی.

جُنُبٌ وَجَدَ الْمَآءَ فِي الْمَسْجِدِ وَلَيْسَ مَعَهُ اَحَدٌ يَأْتِيْهِ بِهِ يَتَيَمَّمُ وَيَدْخُلُ فَاِنْ لَمْ يَصِلِ الْمَآءَ يَتَيَمَّمُ ثَانِيًا لِلصَّلٰوةِ لِاَنَّ نِيَّةَ التَّيَمُّمِ لِلصَّلٰوةِ شَرْطٌ لِصِحَّةِ التَّيَمُّمِ لِلصَّلٰوةِ وَكَذَا لَوْ تَيَمَّمَ لِمَسِّ الْمُصْحَفِ اَوْ لِقِرَاءَةِ الْقُرْاٰنِ عِنْدَ عَدَمِ الْمَآءِ لَاتَجُوْزُ بِهِ الصَّلٰوةُ بِخِلَافِ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ وَصَلٰوةِ الْجَنَازَةِ وَصَلٰوةِ النَّافِلَةِ فَاِنَّهُ يُصَلِّيْ بِذٰلِكَ التَّيَمُّمِ الْمَكْتُوْبَاتِ اَيْضًا وَلَوْ تَيَمَّمَ لِصَلٰوةِ الْجَنَازَةِ اَجْزَاهُ اَنْ يُّصَلِّيَ بِهِ الْمَكْتُوْبَاتِ.

**ژباړه:** که چېري جنب انسان ته په مسجد کي اوبه پیدا سي او د راوړلو والا بل څوک نه وي نو خپله دي تیمم ووهي او مسجد ته دي داخل سي که چېري د اوبو پوري رسایي نه وي نو د لمانځه لپاره دي دوباره تیمم ووهي، ولي چي لمونځ د تیمم لپاره نیت د لمانځه لپاره د صحت د تیمم شرط دی.

دا ډول قرآن پاک ته لاس وروړل یا د ویلو لپاره د اوبو په نامجودګۍ کي تیمم ووهي نو په دې تیمم سره لمونځ نه دی جائز. سجده تلاوت، د جنازې لمونځ یا د نفل په نیت سره کړي تیمم باندي فرض لمونځ کول جائز دي، د جنازې د لمانځه په تیمم باندي فرضي لمونځونه کول جائز دي.

**تشريح**: که د مسجده څخه علاوه بل ځای اوبه نسي پيدا نو لپاره د دخول مسجد د جنب لپاره تيمم وهل ضروري دي، ولې چي په مسجد کي د جنب، حائضه او نفساء داخلېدل ممنوع دي، مګر په دې تيمم سره لمونځ کول که څه هم نفل وي يا فرض جائز نه دي.

که يو څوک ووايي چي په دخول د دواړو يعني د داخليدو اوکه چېري اوبو ته رسايي نه سوی کېدی نو د دې وروسته يي د لمانځه نيت کړی وي نو جائز دی که نه؟

په وخت د خول نيت کول جائز نه دی، د دې لپاره چي د اوبو څخه عجز ثابت نه وي تر هغه وخت پوري د تيمم نيت د لمانځه لپاره صحيح نه دی نو په وخت د دخول دا معلومه نه وه چي اوبو ته به زما رسايي کيږي که نه، نو د دې لپاره په دې تيمم سره لمونځ نه دی جائز، دوباره په نيت د لمانځه تيمم وهل ضروري دی، البته کوم تيمم چي د سجده تلاوت، د جنازې لمانځه يا د نفل لمونځ لپاره کړل سوی وي نو په هغه سره فرض هم ادا کيږي.

رَجُلٌ فِي رَحْلِهِ مَآءٌ وَهُوَ لَايَعْلَمُ بِهِ فَتَيَمَّمَ وَصَلّٰى اِنْ كَانَ وَضَعَ الْمَاءَ بِنَفْسِهِ اَوْ وَضَعَهُ غَيْرُهُ بِاَمْرِهِ فَنَسِيَهُ ثُمَّ تَذَكَّرَ الْمَآءُ بَعْدَ فِرَاغِهِ مِنَ الصَّلٰوةِ فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِیْ ذَكَرْنَاهُ وَاِنْ كَانَ قَدْ وَضَعَ غَيْرُهُ بِغَيْرِ اَمْرِهِ لَايُعِيْدُ الصَّلٰوةَ بِالْاِتِّفَاقِ وَاَمَّا الْعَارِیْ اِذَا نَسِیَ ثَوْبًا فِي الْمَتَاعِ فَمِنَ الْمَشَائِخِ مَنْ قَالَ هُوَ عَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْمَذْكُوْرِ وَمِنْهُمْ مَّنْ قَالَ لَاتَجُوْزُ بِالْاِتِّفَاقِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ قَالَ يَجُوْزُ وَلَوْ تَيَمَّمَ وَهُوَ عَلٰى شَطِّ نَهْرٍ جَارٍ وَهُوَ لَمْ يَعْلَمْ بِالْمَآءِ فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الَّذِیْ ذَكَرْنَاهُ

وَلَوْ كَفَّرَ عَنِ الْيَمِيْنِ بِالصَّوْمِ وَفِيْ مِلْكِهٖ رَقَبَةٌ اَوْثِيَابٌ اَوْ طَعَامٌ فَنَسِيَهٗ فَالصَّحِيْ اَنَّهٗ لَايَجُوْزُ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ وَعِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ يَجُوْزُ وَيَسْتَحِبُّ لَهٗ اَنْ يُؤَخِ الصَّلٰوةَ اِلٰى اٰخِرِ الْوَقْتِ اِذَا كَانَ يَرْجُوْ وُجُوْدَ الْمَآءِ فِيْهِ ثُمَّ لَايَفْرُطُ فِى التَّاخِّرُ حَتّٰ لَاتَقَعَ الصَّلٰوةُ فِيْ وَقْتٍ مَكْرُوْهٍ وَلَوْ تَيَمَّمَ قَبْلَ دُخُوْلِ الْوَقْتِ جَازَ عِنْدَنَا.

**ژباړه**: د يو سړي په سامان کي اوبه موجودي وي مګر هغه ته نه وي معلومي نو په تيمم يې سره لمونځ وکړ که چېري دا اوبه ده خپله او يا بل چا د ده په حکم ايښې وي او د هغه ايري سي او وروسته د لمانځه يې په ياد سي نو دا مسئله په دغه خلاف ده چي ترمخه تيره سوه، که چېري د ده د حکم څخه بغير بل چا ايښې وي نو بالاتفاق د لمانځه اعاده نسته .

او که د لڅ سړي په خپل سامان کي کپړې ايري سوي نو ځينو علماؤ دلته هم هغه هغه خلاف ذکر کړی دی کوم چي په اوبو کي دی، ځينو ويلي دي چي بالاتفاق جائز نه دی او دغه صحيح دی، د امام محمد رحمه الله څخه يو روايت دی چي هغه جائز وايي .

**تشريح**: د اوبو يا کپړې د ايښودو په باره کي د احنافو علماؤ رحمهم الله اختلاف سره د دلائلو او د هغه تشريح اول تيره سوي ده، چي د هغه خلاصه داده چي د ايښودو ، په صورت طرفين يعني امام ابو حنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نز لمونځ صحيح دی، د امام يوسف رحمه الله په نز بيا په دې صورت کي لمونځ نه دی جائز، البته ځينو علماؤ په دې مسئله کي د احنافو آئمه ؤ اتفاق هم نقل کړی دی چي دا ډول لمونځ جائز نه دی او دغه زيات صحيح قول دی، د احنافو آئمه ؤ او امام محمد بن ادريس الشافعی په دې خبري کي اختلاف دی چي په تيمم قبل از وقت لمونځ جائز دی که

نه، د آئمه احنافو په نز جائز دی ولي چي عليه السلام ويلي دي" الصعيد الطيب طهور المسلم وفی رواية وضوء المسلم "دغه ډول يي ويلي دي چي" جعلت لی الارض مسجداً وطهوراً "يعني پاکه صافه خاوره د مسلمان پاکولو والا ده، الله تعالی مځکه زما لپاره مسجد د پاکی والا جوړ کړی دی نو لکه څنګه چي اوبه د پاکولو والا دي دغه ډول تيمم هم د پاکولو والا دی او په دې کي هيڅ شک نشته چي نائب د خپل د اصل عمل کوي، د نائب سره د اصل معامله کيږي نو چي کله په اودس قبل از دخول وقت لمونځ جائز وي نو تيمم هم مخکي د دخول تر وخته جائز دی.

وَلَوْكَانَ مَعَهُ مَآءٌ وَلٰكِنْ يَخَافُ عَلٰى نَفْسِهِ اَوْ دَابَّتِهِ الْعَطْشَ يَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ وَالْمَحْبُوْسِ فِى السِّجْنِ اِذَا مُنِعَ عَنِ الطَّهَارَةِ بِالْمَآءِ يُصَلِّىْ بِالتَّيَمُّمِ وَيُعِيْدُ مَا صَلّٰى عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ لاَ يُعِيْدُ وَالْاَسِيْرُ فِىْ دَارِ الْحَرْبِ اِذَا مُنِعَ عَنِ الْوُضُوْءِ وَالصَّلٰوةِ يَتَيَمَّمُ وَيُصَلِّىْ بِالْاِيْمَآءِ ثُمَّ يُعِيْدُ مَا صَلّٰى وَالْمُسَافِرُ اِذَا خَافَ اللُّصُوصَ اَوْ قُطَّاعَ الطَّرِيْقِ وَلاَ يَنْتَظِرُ رَفِيْقُهُ جَازَلَهُ تَاْخِيْرُ الصَّلٰوةِ وَلَوْ صَلّٰى بِهٰذَا الْعُذْرَ بِالْاِيْمَاءِ جَازَ.

**ژباړه:** که چېري د چا سره اوبه وي او هغه د خپل يا د خپل د حيوان د تږي کېدو څخه بېرېږي او په جيل کي بند قيدي که چېري د اوبو په ذريعه د پاکي حاصلولو څخه منعه کړي، نو په تيمم سره دي لمونځ وکړي او د طرفينو په نز دي د کړي لمونځو بيا وروسته اعاده وکړي، د امام يوسف رحمه الله په نز دي اعاده نه کوي.

د دار حرب (کفرستان) قيدي چي کله د اودس او لمانځه څخه منع کړل سوی وي نو تيمم دي ووهي او په اشاره دي لمونځ وکړي د خلاصيدو وروسته دي د دې

لمونځو اعاده وکړي او مسافر چي کله د غلو او ډاکوانو څخه ییریږي او نور ملګري د ده لپاره انتظار نه وکړي نو لمونځ موخر کول جائز دی او که د دغه عذر په وجه په اشارې سره لمونځ وکړي نو هم جائز دی .

**تشریح**: که چېري دومره اوبه موجودي وي چي د اودس او غسل لپاره کافي وي مګر د استعمال څخه تر مخه هغه د خپل ځان یا د چارپایه د تیږي کیدو په وجه د مړینه څخه ییریږي که څه هم دا حیوان سپی وي نو په دې حالت کي تیمم جائز دی، دغه ډول که چېري یو قیدي په جیل کي د طهارت حاصلولو او د لمانځه کولو څخه منع کړل سي نو دي په تیمم سره بالاشاره لمونځ وکړي او وروسته دي یې قضائي راوړي، مګر امام یوسف رحمه الله دا په هغه سړي قیاس کړی دی چي د خوف په وجه داسي وکړي نو په هغه اعاده نسته، د دې لپاره په دې قید سوي سړي هم اعاده نسته .

وَاَجْمَعُوْا عَلَى اَنَّ الْمَاشِيَ لَايُصَلِّيْ بِالْاِيْمَآءِ وَهُوَ يَمْشِيْ وَكَذَا السَّابِحُ لَايُصَلِّيْ وَهُوَ يَسْبَحُ بِخِلَافِ الْمُنْهَزِمِ وَهُوَ يُصَلِّيْ رَاكِبًا بِالْاِيْمَآءِ وَاقِفًا اَوْ تَسِيْرُ دَآبَّتُهُ اَوْ تَعْدُوْ وَلَوْ صَلّٰى بِالْاِيْمَآءِ لِخَوْفِ عَدُوٍّ اَوْ سَبُعٍ اَوْ مَرَضٍ اَوْ طِيْنٍ لَايُعِيْدُ بِالْاِجْمَاعِ وَالْمُقَيَّدُ اِذَا صَلّٰى قَاعِدًا يُعِيْدُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَعِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ لَايُعِيْدُ.

**ژباړه**: په دې اجماع ده چي په پیاده تګ سره اشارتاً دي لمونځ نه کوي ، دغه ډول وربازي کولو والا دي د وربازۍ په وخت کي دي نه کوي، د منډي والا په خپل سوارۍ اشارةً لمونځ کولای سي که څه هم سوارۍ ولاړه وي یا په ارامه سره روانه وي یا تیزه منډه وهي، که چېري دښمن یا درنده، مرض یا د کیچړ په وجه سره اشارتاً لمونځ وکړي نو بالاتفاق د لمانځه اعاده نسته، په زنځیرو کي تړلی سړی چي کله په

ناسته لمونځ وکړي نو د طرفينو په نز اعاده ضروري ده ، د امام يوسف رحمه الله په نز بيا د دې لمانځه اعاده نسته .

**تشريح**: په لمانځه کي تل راتلل، وربازي او قتل مقاتله کول عمل کثير دی، چي د هغه په موجودګی لمونځ نه کيږي، مصنف رحمه الله د اجمعوا په لفظ سره د اجماع آئمه وو طرف ته اشار کړي ده، د امام يوسف رحمه الله په نز په حالت کي د خوف د تلو په وخت کي لمونځ جائز دی ، دغه د نورو آئمه ثلاثهؤ يعني امام شافعي رحمه الله، امام مالک رحمه الله، او احمد بن حنبل رحمه الله هم قول دی .

که چيري څوک په خپل سوارۍ د منډي په حالت کي اشارتاً لمونځ وکړي نو جائز دی که څه هم سوارۍ ولاړه وي يا په ارام يا په تيزۍ سره را وان وي او دغه ډول که چيري د يو دښمن يا درنده د خوف يا د بيمارۍ په وجه د خپل سواري څخه لاندي نه سي کښته کېدی يا د کيچړ په وجه رکوع او سجده نسي کېدی، اشارتاً لمونځ وکړي نو جائز دی او بالاتفاق د دې لمانه اعاده نسته ولي چي دا سماعي آفات دي، د چا په اختيار کي د دې مدافعت نسته .

دغه ډول که چيري څوک په زنځيرانو کي داسي تړلی وي چي نه سي پورته کېدی او د ناستي په حالت کي لمونځ وکړي نو د امام ابو حنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نز د دې لمانځه اعاده ضروري ده ولي چي دا آفات سماوي نه دی، د امام يوسف رحمه الله په نز ولاړه چي کله معتذره سي نو په ناستي سره لمونځ کيږي او اعاده يي نسته .

وَيَجُوْزُ التَّيَمُّمُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ بِكُلِّ مَاكَانَ مِنْ جِنْسِ الْاَرْضِ كَالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ وَالْحَجَرِ وَالْمَدَرِ وَالزَّرْنِيْخِ وَالْكُحْلِ وَالْمُرَادَرْ سَنْجِ وَالنَّوْرَعِ وَالْمَغْفِرَةِ وَمَا اَشْبَهَهَا وَلَايَجُوْزُ عِنْدَنَا بِمَا لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الْاَرْضِ كَالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْحَدِيْدِ

وَالرِّصَاصِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَسَآئِرِ الْحُبُوْبِ وَالْأَطْعِمَةِ وَاِنْ كَانَ عَلٰى هٰذِهِ الْاَشْيَآءِ الْمَذْكُوْرَةِ غُبَارٌ يَجُوْزُ بِغُبَارِهَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَفِيْ اِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ مُحَمَّدٍ وَفِيْ رِوَايَةٍ لاَيَجُوْزُ.

**ژباړه**: د حضرت امام ابوحنيفه و محمد په نز په هر هغه شي سره تيمم جائز دی چي د جنس څخه د مځکي وي لکه خاوره، ريګ، ډبره، لوټه، ارتال، رانجه، مردارسنګ، چينه، ګاجر خاوره، او د دې مشابه زموږ په نز چي د مځکي د جنس څخه نه وي په هغوی تيمم نه دی جائز لکه سونا، سپين زر، اوسپنه، قلعي، غنم، جو او تمامي غلې، په دغوشيانو که ګرز پروت وي نو د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په نز تيمم جائز دی او په يوه روايت کي د محمد څخه جواز او په بل روايت کي بيا عدم جواز منقول دی .

**تشريح**: مصنف رحمه الله تعالى په دې عبارت کي د هغو شيانو ذکر کوي په کومو سره چي تيمم جائز دی، د دې په باره کي د فقهاؤ کرامو اختلاف دی د طرفينو په نز په هر هغي شي سره تيمم جائز دی کوم چي د مځکي د جنس څخه شمارل کيږي لکه ريګ، ډبره يا داسي بل شی.

د مځکي د جنس څخه دکيدو نښانې دادي چي کوم شی اور نه اخلي او نه ايره کيږي او کوم شی چي اور واخلي او ايره سي لکه سونا نو هغه د مځکي په جنس کي نه شمارل کيږي، مګر کله په دغو شيانو ګرز پروت وي نو په دې ګرز باندي تيمم جائز دی ، د امام محمد رحمه الله په يو مشهور روايت کي د ګرز باجود هم په دغو شيانو تيمم نه دی جائز او د امام يوسف رحمه الله په نز په وخت د ضرورت د دغه شيانو په ګرز باندي تيمم جائز دی، چونکي ګرز باريکه باريکه نرمه خاوره يي نو ځکه په دې سره تيمم جائز دی .

ثُمَّ عِنْدَهُمَا الشَّرْطُ مُجَرَّدُ الْمَسِّ عَلَى الْاَرْضِ اَوْ عَلٰى جِنْسِ الْاَرْضِ حَتّٰى اَنَّهُ لَوْ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى صَخْرَةٍ لَاغُبَارَ عَلَيْهَا اَوْ عَلٰى اَرْضٍ نَدِيَّةٍ وَلَمْ يَتَعَلَّقْ بِيَدِهٖ شَئٌ جَازَ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَفِىْ اِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ مُحَمَّدٍ اَمَّا الْفَرْقُ بَيْنَ الصَّخْرَةِ وَبَيْنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَهُمَا خُلِقَا فِى الْاَرْضِ اَنَّ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ يَذُوْبَانِ فِى النَّارِ بِخِلَافِ الصَّخْرَةِ فَاِنَّهَا لَاتَذُوْبُ فِيْهَا فَكَانَتْ كَالتُّرَابِ وَاَمَّا التَّيَمُّمُ بِالْاٰجُرِ فَعِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ يَجُوْزُ مُطْلَقًا وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ بِهٖ اِنْ كَانَ مَدْقُوْقًا اَوْكَانَ عَلَيْهِ غُبَارٌ وَلَوْ تَيَمَّمَ بِغُبَارِ ثَوْبِهٖ اَوْ غَيْرِهٖ مِنَ الْاَغْبَارِ الطَّاهِرَةِ اَوْ هَبَّتِ الرِّيْحُ فَاَصَابَ الْغُبَارُ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ فَمَسَحَهُ بِنِيَّةِ التَّيَمُّمِ جَازَ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ سَوَآءٌ وَجَدَ تُرَابًا اٰخَرَ اَوْلَمْ يَجِدْ وَعِنْدَ اَبِىْ يُوْسُفَ لَايَجُوْزُ اِذَا وَجَدَ تُرَابًا اٰخَرَ.

**ژباړه:** بيا د طرفينو په نز صرف مځکه يا د جنس د مځکي په هغه شي باندي چي د مځکي د جنس څخه شمارل کيږي صرف لاس وهل شرط دي حتی چي په داسي ډبره باندي چي په هغه ګرز نه وي او په نيم الوده لندې مځکي باندي لاس کښيږدي او د لاس سره هيڅ ګرز نه ولګيږي نو د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز او د امام محمد رحمه الله څخه په يوه روايت کي جائز دی .

د ډبري او سونا په مابينځ کي فرق باوجود دی چي دواړه د مځکي څخه پيدا کيږي، دادی چي سونا او سپين زر په اور کي ويلي کيږي او ډبره نه ويلي کيږي نو د خاوري په مثل سوه ، په پخه خښتي سره د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز تيمم مطلقا جائز دی د امام محمد رحمه الله په نز کله چي پخه خښته ماته کړل سي او ښه نرم کړل سي نو بيا تيمم جائز دی يا کله چي په هغه باندي ګرز پروت وي که چېري د کپړي يا

د بل شي په ګرز سره تیمم ووهي یا د هوا د رفتار سره د انسان په مخ او په لاس باندي ګرز ولګیږي او په دې ګرز سره په نیت د تیمم مخ لاس مسح کړي نو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نز جائز دی که څه هم د دې بغیره خاوره موجوده وي او د امام یوسف رحمه الله په نز که چېري د دې څخه علاوه خاوره موجوده وي نو نه دی جائز.

**تشریح**: د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نز صرف په مځکي یا په جنسْ د مځکي لاس ایښول ضروري دي او دا ضروري نه ده چي ګرز هم د دوی سره ومښلي، د دې لپاره که چېري څوک په بالکل صافه ډبره باندي د تیمم لپاره لاس کښیږدي نو تیمم جائز دی، د امام ابو یوسف رحمه الله په نز صرف په خاوره او ریګ سره تیمم جائز دی د دې بغیر په یو شي هم نه دی جائز مګر په ذهن کي دا پوښتنه کله کله پیدا کیږي چي سونا، سپین زر وغیره دا ټوله شیان خو د مځکي څخه پیدا کیږي د دوی څخه یو شی هم د آسمان څخه نه ووري نو ځیني شیان ولي د مځکي د جنس څخه شمارل کیږي؟

مصنف رحمه الله د دې په وضاحت کولو سره وایي چي د مځکي اصلي خاوره ده نو کوم شی چي د خاوري سره داسي مشابه وي چي د خاوري په ډول په اور کي نه ویلي او نه أیره سي نو هغه به په منزله د مځکي د جنس څخه شمارل کیږي، د دې لپاره وایي چي ډبره د سونا او سپین زر په مثل د مځکي پیداوار دی او په اور کي نه ویلي کیږي نو د دې لپاره په ډبري تیمم جائز دی او د سونا سپین زر او د دوی مانند په نورو شیانو باندي تیمم نه دی جائز.

فقهاؤ کرامو تصریح کړی ده که چېري څوک قسم واخلي چي زه به په مځکه نه کښینم او په ډبري کښینستی نو حانث دی او که په سونا سپین زر باندي کښیني نو حانث نه دی، که چېري په یو کپړه یا جای نماز باندي دومره ګرز جمع سوی وي چي هغه ته لاس ورسره کړي نو پورته کیږي، نو که چېري ګرز پورته کیږي نو په هغه

باندي د دې ګرز په وجه تيمم جائز دی.

دغه ډول که چېري دوره راسي د چا پر مخ يا لاس ګرز ولوېږي نو دا په نيت د تيمم په خپل مخ او لاس باندي يې ومږي نو تيمم وسو مګر امام يوسف رحمه الله وايي چي ګرز ته په مکمل طور خاوره نه سي ويل کېدی نو د دې لپاره صرف په وخت د ضرورت دا ډول تيمم وهل جائز دی چي د دې علاوه نوره خاوره نه وي موجوده.

وَلَوْتَيَمَّمَ بِالْمِلْحِ اِنْ كَانَ مَائِيًّا لَايَجُوْزُ وَاِنْ كَانَ جَبَلِيًّا يَجُوْزُ بِهٖ وَقَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ السَّرْخَسِيُّ الصَّحِيْحُ عِنْدِيْ اَنَّهٗ لَايَجُوْزُ سَوَآءٌ كَانَ مَائِيًّا اَوْ جَبَلِيًّا كَذَا ذَكَرَهٗ فِي الْمُحِيْطِ وَالسَّبْخَةُ بِمَنْزِلَةِ الْمِلْحِ وَذَكَرَ الْاِسْبِيْجَابِيُّ فِيْ شَرْحِهٖ يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ بِالسَّبْخَةِ مُسَافِرٌ اَصَابَهٗ مَطَرٌ فَابْتَلَّ ثَوْبُهٗ وَسَرْجُهٗ وَلَمْ يَجِدْ تُرَابًا وَلَا حَجَرًا وَلَامَآءً فَاِنَّهٗ يُلَطِّخُ ثَوْبَهٗ بِالطِّيْنِ وَيُجَفِّفُهٗ وَيُفَرِّكُ وَتَيَمَّمُ.

**ژباړه:** که چېري څوک په مالګه باندي تيمم ووهي نو که دا مالګه د اوبو والا وي نو تيمم نه دی جائز او که د غره وي نو جائز دی، شمس الائمه سرخسي رحمه الله وايي چي زما په نز صحيح داده چي په مالګي سره تيمم نه دی جائز که څه هم د اوبو والا وي يا د غره، دغه ډول په محيط کي ذکر دی چي شره هم د مالګي ډول ده او اسبيجابي په خپله شرحه کي ذکر کړی دی په شرې باندي تيمم جائز دی، که يو مسافر کېږې او سواری زين په باران باندي لانده سي او هغه ته خاوره، ډبره يا اوبه نه سي پيدا نو هغه دي خپلي کپړي وچي کړي او په هغه سره دي تيمم ووهي.

**تشريح:** په مالګي تيمم وهلو باندي د علماؤ اختلاف دی ولي چي د مالګي دوه قسمونه دي يو قسم دادی چي د سمندري اوبو زګ وچ سي او مالګه ځيني جوړېږي، دوهم قسم په غرو کي پيدا کيږي يعني معدني وي نو غر د جنس څخه د مځکي په

شمارلو سره فقهاؤ کرامو په دې د تیمم د جواز فتوی کړیده .
مګر ځیني فقهاء وایي چي د غره او د اوبو د مالګي يو حکم دی په دواړو تیمم نه دی جائز ولي چي په اوبو کي حل کیږي، امام قاضي خان هم د علماؤ اختلاف په ذکر کولو سره د غره په مالګي باندي د جواز فتوی کړیده .
دغه ډول د شړې والا په مځکه باندي چي کومه شره ښکاره کیږي نو په هغې باندي د تیمم په باره کي د مالګي په مثل اختلاف دی، دغه ډول که چیري يو سړی په باران کي روان وي او د هغه کپړې وغیره ګرده لندې سي ، نه د اودس لپاره اوبه او نه د تیمم لپاره څه خاوره پیداسي نو د طهارت حاصلولو لپاره مصنف دا تجویز ورکوي چي مسافر دي په يوې کپړې وغیره باندي کیچړ ولګوي او وروسته دې وچي کړي بیادي سره وموږي په دې وچي خاوري باندي دي په تیمم سره طهارت حاصل کړي .

قَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ الْحَلْوَانِيُّ لَايَتَيَمَّمُ بِالطِّيْنِ وَاِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ وَكَذٰلِكَ يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ بِالْحُصٰى وَالْكِيْزَانِ وَالْحُبَابِ وَالْغُضَارَةِ وَالْحِيْطَانِ مِنَ الْمَدَرِ وَاللَّبَنِ سَوَاءٌ كَانَ عَلَيْهِ غُبَارٌ اَوْ لَمْ يَكُنْ وَلَا يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ بِالْغُضَارَةِ الْمُطْلّٰى بِالْاٰنُكِ ثُمَّ بَطْنُ الْغُضَارَةِ وَظَهْرُهَا عَلَى السَّوَآءِ اِلَّا اِذَا كَانَ عَلَيْهَا غُبَارٌ وَلَوْ تَيَمَّمَ بِالْخَزَفِ فَاِنْ كَانَ مُتَّخَذًا مِنَ التُّرَابِ الْخَالِصِ وَلَمْ يَجْعَلْ فِيْهِ شَيْءٌ مِنَ الْاَدْوِيَةِ جَازَ بِهِ التَّيَمُّمُ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ عَلَيْهِ غُبَارٌ وَاِنْ تَيَمَّمَ بِالرِّمَادِ لَايَجُوْزُ وَاِنْ اِخْتَلَطَ الرِّمَادُ بِالتُّرَابِ اِنْ كَانَ التُّرَابُ غَالِبًا يَجُوْزُ وَاِنْ كَانَ الرِّمَادُ غَالِبًا لَايَجُوْزُ.

**ژباړه:** شمس الائمه حلواني وایي چي په لنده خاوره سره تیمم وهل نه دي پکار او

که چېري يې ووهي نو جائز دی، دغه ډول په باجري، کوزې، منګيانو، پيالو، ديوالو، که څه هم کچه يا پاخه وي لانده نه وي په دې شيانو باندي تيمم جائز دی، په داسي پيالو باندي تيمم نه دی جائز په کومو باندي چي قلعي لګول سوي وي، د پيالو دننی او د باندنۍ حصه برابره ده مګر دا چي په هغه کي ګرز پروت وي، که چا په يو توکري باندي تيمم ووهی که هغه صرف د خاوري څخه جوړ وي د نورو شيانو اختلاط نه وي نو په دې تيمم جائز دی که څه هم ګرز الود نه وي، که چا په ايرو باندي تيمم ووهی نو نه دی جائز او که چېري ايره د خاوري سره خلط سي او خاوره غالبه سي نو تيمم جائز دی او که ايره غالبه وي نو نه دی جائز .

**تشريح**: په ځينو نسخو کي دلته د" لايجوز التيمم بالطين "عبارت ليکل سوی دی کوم چي په وروسته عبارت باندي د نظر کولو څخه درست نه معلوميږي .

شمس الائمه حلواني رحمه الله وايي چي په لنده خاوره سره تيمم وهل مناسب نه دی که په وخت د ضرورت يې ووهي نو جائز دی، که چېري د لمانځه د قضاء کيدو بيره نه وي نو لږ انتظار دي وکړي او که د وخت د ختمېدو خطره وي نو په دغه سره دي تيمم ووهي، څه ډول چي په ډبره او خاوره باندي تيمم وهل جائز دی دغه ډول خاوري لوښي چي د خاوري په ډول سخت وي په هغوی باندي هم تيمم جائز دی مګر شرط دادی چي د خالص خاوري څخه جوړ وي د بل شي بالکل اختلاف نه وي ، نه د جوړيدلو وروسته په هغوی باندي د ښائست لپاره د قلعي نقش ونګار جوړ سوي وي ولي چي قلعه د مځکي د جنس څخه نه ده نو په دې صورت کي تيمم د مځکي د جنس څخه بغير په بل شي باندي واقع کيږي چي هغه نه دی جائز ، که چېري خاوره او ايره په خپل منځ کي سره ګډه سي نو د عنصر غالب لحاظ به کيږي که چېري ايره غالبه وي نو نه دی جائز، او که خاوره غالبه وي نو جائز دی .

وَاِنْ اَصَابَتِ الْاَرْضَ نِجَاسَةٌ فَجَفَّتْ وَذَهَبَ اَثَرُهَا جَازَتِ الصَّلٰوةُ عَلَيْهَا وَلَايَجُوْزُ التَّيَمُّمُ مِنْهَا فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ وَرُوِيَ عَنْ اَصْحَابِنَا اَنَّهُ يَجُوْزُ اَيْضًا وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ وَاِذَا تَيَمَّمَ الرَّجُلُ مِنْ مَوْضِعٍ فَتَيَمَّمَ الْاٰخَرُ مِنْ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ اَيْضًا جَازَ وَالتَّيَمُّمُ فِي الْجَنَابَةِ وَالْحَدَثِ سَوَآءٌ وَلَوْصَلّٰى بِالتَّيَمُّمِ ثُمَّ وَجَدَ الْمَآءَ فِي الْوَقْتِ لَايُعِيْدُ وَالصَّحِيْحُ فِي الْمِصْرِ يَتَيَمَّمُ لِصَلٰوةِ الْجَنَازَةِ اِذَا خَافَ الْفَوْتَ اِلاَّ الْوَلِيُّ وَالْاِمَامُ وَكَذَا اِذَا اَحْدَثَ الْمُتَوَضِّئُ فِيْ صَلٰوةِ الْعِيْدِ تَيَمَّمَ وَبَنٰى فِيْ قَوْلِ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا لَايَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ وَكَذَا اِذَا خَافَ خُرُوْجَ الْوَقْتِ تَيَمَّمَ وَبَنٰى بِلَا خِلَافٍ وَلَوْ خَافَ خُرُوْجَ الْوَقْتِ فِيْ سَآئِرِ الصَّلٰوتِ لَايَتَيَمَّمُ بَلْ يَتَوَضَّأُ وَيَقْضِيْ مَا فَاتَهُ وَكَذَا لَوْ خَافَ فَوْتَ الْجُمُعَةِ لَايَتَيَمَّمُ بَلْ يَتَوَضَّأُ وَيُصَلِّي الظُّهْرَ وَلَوْ تَيَمَّمَ لِمَسِّ الْمُصْحَفِ اَوْلِدُخُوْلِهِ الْمَسْجِدِ عِنْدَ وُجُوْدِ الْمَآءِ وَالْقُدْرَةِ عَلَيْهِ فَذٰلِكَ لَيْسَ بِشَيْءٍ اَلْمُسَافِرُ يَطَأُ جَارِيَتَهُ وَاِنْ عَلِمَ بِعَدَمِ الْمَآءِ يَجُوْزُ لَهُ التَّيَمُّمُ.

**ژباړه:** که مځکه د نجس کېدو وروسته وچه سي او د نجاست اثر ورک سي نو په هغې باندي لمونځ جائز دی او تیمم نه دی جائز، د ظاهر روایت په مطابق، زموږ آئمه احنافو دا روایت هم کړېدی چي تیمم هم جائز دی او اول روایت زیات صحیح دی او کله چي یو سړی په یو ځای باندي تیمم ووهي او دوهم واربیا پر هغه ځای باندي تیمم ووهي نو جائز دی.

د حالت جنابت او بې اودسۍ تیمم یو ډول دی، که په تیمم سره لمونځ وکړي او په دغه وخت کي اوبه پیداسي نو د لمانځه اعاده نسته صحیح داده چي په ښار کي کله

د جنازې د فوتېدو خوف وي نو تيمم دي ووهي مګر ولي او امام نه، دغه ډول چي د اودس والا سړی د اختر په لمانځه کي بې اودسه سي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز تيمم دي ووهي او بنادي وکړي ، صاحبين وايي چي تيمم نه دی جائز دغه ډول که چېري د وخت د ختمېدو خوف وي نو تيمم دي ووهي او بنا دي کړي په دې کي اختلاف نسته .

که چير په جمله فرض لمونځو کي د وخت فوتيدو خطره وي نو تيمم دي نه وهي بلکي اودس دي وکړي او د فوت سوي لمونځو قضا دي راوړي، دغه ډول که چېري د جمعې لمانځه د فوتېدو خطره وي نو تيمم دي نه وهي بلکي اودس دي وکړي او لمونځ دي وکړ، که چېري قرآن پاک ته د لاس وروړلو لپاره يا مسجد ته د داخليدو لپاره اوبه او قدرت د استعمالو سره تيمم ووهي نو دا بې معنٰی خبره ده، او که مسافر د خپلي مينځي سره مجامعت وکړي او هغه ته اوبه نه سي پيدا نو يا د هغه لپاره تيمم روادی.

**تشريح**: که مځکه د نجس کېدو وروسته وچه سي د نجاست رنګ او بوی ورک سي نو په هغې باندي لمونځ جائز دی او تيمم نه دی جائز ، لکه څنګه روايت سوی دی (جفوف الارض طهورها) يعني مځکه چي وچه سي نو د هغه وروسته پر هغه مځکه باندي تيمم جائز نه دی، ولي په دغو رواياتو سره په کومو کي په وچيدو سره يي مځکه پاک ګڼلي ده دا صرف مستنبط کيږي چي هغه خپله صفا سوي ده نه دا چي د نورو صفا کونکی ده يعني صرف صفت د طهارت دی د طهوريت صفت په دې کي د مځکه په وچيدو سره نه راځي او د تيمم لپاره د مځکي د طهوريت صفت ضروري دی چي په هغه سره په ذريعه د تيمم پاکي حاصلولای سي، که چېري يو سړی د مځکي په يوه حصه باندي تيمم ووهي نو د دوهم وار پر دا ځای باندي تيمم کول جائز دی ولي چي دا ځای مستعمل نه سو او په اوبو باندي د دې قياسېدل درست نه دی ولي

د استعمال په وخت چې د انسان د اعضاؤ څخه کومي اوبه لوېږي هغه مستعملي دي او په‌تیمم کي د انسان د اندامو څخه هیڅ شی نه جلا کیږي.
د جنب انسان او بې اودسه لپاره د تیمم یوه طریقه ده لکه څنګه چې د عمار بن یاسر رضي الله عنه په روایت کي دي چې نبی کریم ﷺ دی یو مهم ته واستوی نو دی جنب راغلی او بیا دی په خاورو کي ښه ورغړیدی، د دې وروسته چې یې کله د علیه السلام په حضور خپل د دې عمل ذکر وکړ نو علیه السلام چې کوم هدایت هغه ته وکړ د هغه خلاصه داده چې ستا لپاره د اودس والا تیمم جائز وو او په دې باندې اجماع د امت منعقده ده.
که یو چا د اوبو په نیستی کي په تیمم سره لمونځ وکړ نو د اوبو په‌پیدا کیدو باندي په هغه د لمانځه راګرځول نسته لکه څنګه چې یو فقیر د روژې سره کفاره ادا کړي کله چې امیر سي نو وروسته د مالي کفاري بغیر هغه اوله کفاره صحیح ده او کوم سړی چې د جنازې په لمانځه کي حاضر وي مګر که هغه اودس وکړي نو د لمانځه څخه د پاته کېدو خوف وي نو دا سړی دي په تیمم سره لمونځ وکړي که څه هم اوبه موجودي وي د استعمال قدرت هم لري، لکه څنګه چې په دار قطني کي روایت دی چې حضرت عمر رضي الله عنه په یوه جنازه کي شریک سو نو د بې اودسۍ په وجه یي په تیمم سره لمونځ وکړ، چونکي د ولي او د سلطان په باره کي دا خوف نه سي کیدی چې د هغه بغیر دي لمونځ وکړل سي نو د خوف فوت په ناموجدګۍ کي د دواړو لپاره تیمم کول نه دی جائز ولي چې هغوی ته حق د تقدم حاصل دی.
دغه ډول که چېري څوک په اوداسه سره د اختر په لمانځ کي شریک سي مګر د لمانځه په وخت کي بې اودسه سي نو تیمم دي ووهي او پاته لمونځ دي په دغه سره بنا کړي، ولي چې د اختر لمونځ واجب دی او د پاته کیدو په صورت کي د ده قضا په انفرادي طور نه سي کیدی، صاحبین رحمهم الله وایي چې اودس دي وکړي او

باقي لمونځ دي بنا کړي که چېري د جماعت د لمانځه ځخه پاته سو نو هيڅ قباحت نسته د دې لپاره چي لاحق هم د حکم امام شاته دی نو د ده لمونځ هم په حالت اقتدا کي شمارل کېږي نه په انفرادي طور، التبه که چېري د وخت ختمیدو خوف وي نو بالاتفاق دي په تیمم سره وکړي ولي چي د وخت ختمیدو وروسته لمونځ باطل دی .د جنازې د لمانځه او د اخترو بغیر په نورو لمونځو کي که په اودس باندي د مشغولیت په وجه د لمانځه د وخت ختمېدو خوف وي نو تیمم نه دی جائز بلکه اودس دي وکړي او قضا دي راوړي .

د امام زفر رحمه الله په نز په وختي لمونځو کي هم د فوتیدو په وجه تیمم جائز دی، ولي چي هغه وايي تیمم د دې لپاره جائز سوی دی چي لمونځ که په اوبو سره د پاکۍ حاصلولو لپاره موخر کړل سي نو به قضا سي نو دا صورت په دې کي داخل دی که يو څوک پریوزي نو کله چي راکښیني نو دومره وخت باقي وي که چیر ي په اودس باندي مشغوله سي نو د لمانځه وخت به تیر سي نو د امام زفر رحمه الله په قول که دا سړی په تیمم سره لمونځ وکړي نو جائز دی، مګر د جمهورو علماؤ په نز نه دی جائز ولي چي دا نقصان خپله د لمونځ کونکي د طرفه ځخه دی په دې باندي د تیمم د جواز حکم نه سي کېدی مګر بهتره صورت دادی چي په اوبو سره طهارت حاصل کړي، خو هغسي لمونځ قضا کېږي نو چي کله وخت مختصر وي نو دي اول تیمم ووهي او لمونځ دي وکړي او وروسته دي اودس وکړي د دغه لمانځه اعاده دي هم وکړي نو د جمهورو فقهاء او د امام زفر رحمه الله په ټولو اقوالو به عمل وسي .

د جمعې په لمانځه کي د امام سره د شرکت لپاره تیمم نه دی جائز بلکي د امام د پاته کیدو په صورت کي که چېري بل ځای کي د امام سره شریکېدی سي نو هلته دي ولاړ سي او که بالکل يو ځای هم د جمعي د رسیدو امکان نه وي نو د ماپښين لمونځ دي وکړي .

د اوبو او د قدرت استعمال په موجودګۍ کي د قرآن پاک د را اخستلو لپاره، دخول مسجد لپاره تیمم وهل لکه څنګه چي د ځینو جاهلانو عادت دی دا شرعاً نه دی معتبر بلکي دا احمقانه فعل دی، یو مسافر ته که چېري دا معلومه وي چي غسل لپاره دلته اوبه نسته بیا هم د خپل کوروالا یا د مینځي سره مجامعت کولای سي لکه څنګه چي دا ښه معلومه وي چي دلته اوبه نسته مګر بیاهم د قضائي حاجت وغیره په زور دباول (نیول) پر هغه ضروري نه دي، دغه ډول جماع هم یو طبعي ضرورت دی او په دې صورت کي هم بغیر د څه قباحته تیمم جائز دی.

وَيَنْقِضُ التَّيَمُّمُ كُلُّ شَيْءٍ يُنْقِضُ الْوُضُوْءَ وَيُنْقِضُهُ اَيْضًا رُؤْيَةُ الْمَاءِ اِنْ قَدَرَ عَلٰى اِسْتِعْمَالِهٖ وَاِنْ رَاٰى الْمَآءَ فِيْ خِلَالِ الصَّلٰوةِ فَسَدَتْ وَاِنْ رَاٰى سُؤْرَ الْحِمَارِ اَوْ نَبِيْذَ التَّمْرِ وَقَدَرَ عَلٰى اِسْتِعْمَالِهٖ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاِنْ رَاٰى سَرَابًا فَظَنَّ اَنَّهُ مَآءٌ فَمَشٰى نَحْوَهُ فَاِذَا هُوَ سَرَابٌ فَسَدَتْ صلٰوتُهُ وَاِنْ شَكَّ اَنَّهُ مَآءٌ اَوْ سَرَابٌ فَاسْتَوَى الظَّنَّانِ فَاِنَّهُ يَمْضِيْ عَلٰى صَلٰوتِهٖ فَاِذَا فَرَغَ مِنْهَا نَظَرَ اِنْ كَانَ مَآءً يَتَوَضَّأُ بِهٖ وَيَسْتَقْبِلُ الصَّلٰوةَ وَاِلَّا فَلَا اَلْمُسَافِرُ اِذَا مَرَّ بِمَآءٍ مَوْضُوْعٍ فِي الْجُبِّ لَايَنْتَقِضُ تَيَمُّمُهُ اِلَّا اِذَا كَانَ الْمَآءُ كَثِيْرًا فَيُسْتَدَلُّ بِكَثْرَتِهٖ عَلٰى اَنَّهُ وُضِعَ لِلْوُضُوْءِ وَالشُّرْبِ وَلَوْ اَنَّ الْمُتَيَمِّمَ مَرَّ بِالْمَاءِ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِهٖ اَوْكَانَ نَائِمًا حَالَ الْمُرُوْرِ لَايَنْتَقِضُ تَيَمُّمُهُ وَكَذَا لَوْ عَلِمَ بِهٖ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى النُّزُوْلِ وَلَا عَلَى الْوُضُوْءِ اِمَّا لِخَوْفِ عَدُوٍّ اَوْ سُبُعٍ اَوْ مَرَضٍ.

**ژباړه:** تیمم هر هغه شی ماته وي کوم چي اودس ماته وي دغه ډول د اوبو لیدل که په استعمال یي هم قادر وي نو تیمم ماته وي، که د لمانځه په مابینځ کي یې اوبه ولیدي نو لمونځ یې فاسدیږي، که د خره پسخورده یا نبیذ التمر ویني او په

استعمال يي هم قادر وي نو د حضرت امام ابو حنيفهرحمه الله په نز لمونځ يي فاسدیږي، او كه يې بولي وليدي د ده دا گمان وو چي اوبه دي او د هغه و طرف ته ولاړى او هغه بولي وي نو لمونځ يي فاسد سو، كه چېري يي شک وي چي اوبه دي كه بولي نو دواړه گمانونه برابر وه نو خپل د لمانځه د پوره كيدو وروسته دي وگوري، كه چېري اوبه وي نو دي اودس وكړي او دوباره دي لمونځ وكړي او كه اوبه نه وي نو دي كوي .

كه يو مسافر په منگي د اينبوولو اوبو سره تير سي نو د هغه تيمم نه فاسديږي مگر دا چي اوبه زياتي وي د اوبو د كثرت په ليدلو باندي دا ويلاى سي چي دا د اودس او د څښلو لپاره ايښودل سوي دي، كه متيمم په اوبو باندي تيرسي او هغه ته نه وي معلومي يا د تيرېدلو په وخت بيده وي نو تيمم يې نه ماتيږي دغه ډول كه چېري ورته معلومي وي او په كښته كېدو يا په اودس باندي قادر نه وي د دښمن يا درنده يا د مرض په خوف سره نو هم يې تيمم نه ماتيږي.

**تشريح**: په دې عبارت كي مصنفرحمه الله د نواقضو د تيمم د بيان كولو سره يوه قاعده كليه بيانوي چي په كومو شيانو سره چي اودس ماتيږي هغه د تيمم ماتونكي هم دي، ولي چي اودس اصل دى او تيمم نائب، نو كوم شى چي د اصل باطل كونكى دى هغه نائب بطريقي اولى باطله وي، مگر په نواقض تيمم كي دا هم دي چي متيمم كله د طهارت لپاره اوبه وويني او قدرت د اسعتمال هم ولري نو د هغه تيمم باطليږي او كه چېري د لمانځه په وخت كي يې اوبه وليدي نو لمونځ يي فاسديږي .

كه يو چا په صحرا كي د لمانځه په دوران كي نظر وكړ نو بولي يي اوبه په خيال كي ورغلي او د هغه و طرف ته ولاړى مگر وروسته معلومه سوه چي دا خو اوبه نه دي بلكي بولي دي نو د هغه لمونځ فاسد سو، كه چېري د اوبو او بولو په كيدو كي

شک وي او يو طرف ته هم غالب ګمان نه وي نو لمونځ قطع کول نه دي جائز بلکې لمونځ کولو وروسته به يې ګوري که چېرې اوبه وي نو د شروع څخه دې لمونځ وکړي او که چېرې بولې وي نو د لمانځه اعاده نسته ولې چې يقين په شک سره نه زائليږي .

که يو مسافر په منګي کې اوبه ويني نو د هغه تيمم د دې لپاره نه باطليږي چې عموماً په منګيانو کې اوبه د څښلو لپاره ايښودل کيږي، البته که چېرې په کثير مقدار منګيان ايښي وي په کوم سره چې دا خيال کولای شي چې په دومره کثير مقدار کې اوبه فقط د څښولو لپاره نه وي نو په دې سره تيمم باطليږي، په دې اوبو سره اودس کول ضروري دی .

که يو متيمم سړی د ابو څخه په داسې حالت کې تير شي چې هغه ته دا نه وي معلومه چې زه په اوبو تيريږم که څه هم د ويښتيا په حالت کې يا د خوب په حالت کې وي نو د هغه تيمم نه باطليږي، د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله څخه يو روايت داهم دی چې د خوب په حالت کې د ده تيمم باطليږي ولې چې دا سستي خپله د انسان د طرفه ده، د صاحب هدايې قول هم دغه دی، دغه ډول که چېرې چاته دا معلومه وي چې دلته اوبه شته مګر هغه د دښمن يا د درنده د خوفه څخه يا د نورو عذرو په بنا بانديې د اوبو طرف ته نشواى راتلاى نو د هغه تيمم نه باطليږي .

جُنُبٌ اِغْتَسَلَ وَبَقِيَتْ عَلٰى بَدَنِهٖ لُمْعَةٌ وَلَيْسَ مَعَهٗ مَآءٌ يَتَيَمَّمُ لِلُّمْعَةِ وَاِنْ وَجَدَ مَآءً بُعْدَ مَا تَيَمَّمَ وَبَعْدَ مَا اَحْدَثَ يَغْسِلُ اللُّمْعَةَ وَتَيَمَّمَ لِلْحَدَثِ اِذَا كَانَ الْمَآءُ يَكْفِيْ لِلُّمْعَةِ وَلَايَكْفِيْ لِلْوَضُوْءِ وَاِنْ كَانَ يَكْفِيْ لِلْوَضُوْءِ وَلَايَكْفِيْ لِلُّمْعَةِ يَتَوَضَّأُ بِهٖ وَلَا يَنْتَقِضُ تَيَمُّمُ الْجِنَابَةِ وَاِنْ كَانَ يَكْفِيْ لِاَحَدِهِمَا عَلَى الْاِنْفِرَادِ فَاِنَّهٗ يَغْسِلُ اللُّمْعَةَ

وَتَيَمَّمَ لِلْحَدَثِ وَعَلَيْهِ اَنْ يَّبْدَءَ بِغَسْلِ اللُّمْعَةِ ثُمَّ يَتَيَمَّمُ وَلَوْ كَانَ مَعَهُ ثَوْبٌ نَجِسٌ يَغْسِلُ الثَّوْبَ وَيَتَيَمَّمُ لِلُّمْعَةِ مُتَيَمِّمٌ اَمَّ قَوْمًا مُتَوَضِّئِيْنَ يُجُوْزُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِّمُحَمَّدٍ وَكَذَا الْقَاعِدُ اَمَّ قَوْمًا قَآئِمِيْنَ وَاَمَّا الْمَاسِحِ عَلَى الْخُفِّ اَوْ عَلَى الْجَبِيْرَةِ فَاِنَّهُ يَؤُمُّ الْغَاسِلِيْنَ بِالْاِتِّفَاقِ وَذُكِرَ فِي الْحَضْرِ وَشَرْحِ الْاِسْبِيْجَابِيْ لَاتَصِحُّ اِمَامَةُ صَاحِبِ الْجَرْحِ السَّآئِلِ لِاَصِحَّآءِ وَكَذَا اِمَامَةُ الْاُمِّيِّ لِلْقَارِئِ وَلَوْ اَمَّا مَنْ هُوَ بِمِثْلِ حَالِهِمَا جَازَ.

**ژباړه:** یو جنب سړي غسل وکړ او د هغه د بدن یوه حصه د پرېوللو څخه پاته سوه د هغه د پرېوللو لپاره اوبه نه وي نو د دې لپاره دي تیمم ووهي که چېري د تیمم کولو وروسته یا د بې اودسه کیدو وروسته هغه ته اوبه پیدا سوي نو هغه حصه دي پرېولي او د حدث لپاره دي تیمم ووهي که اوبه د هغه حصې لپاره کافي وي او د اودس لپاره نه وي کافي.

که د اودس لپاره کافي وي او دهغه حصې لپاره نه وي کافي نو اودس دي وکړي او د جنابت لپاره کړل سوی تیمم نه ماتیږي، که چېري فقط د یوه لپاره کافي وي نو هغه حصه دي پرېولي او د حدث لپاره دي تیمم ووهي او لازم دی چي اوله حصه پرېولي او وروسته تیمم ووهي، اؤ که د هغه سره پلیته کپړه وي نو دا کپړه دي پرېولي او د هغه حصې لپاره دي تیمم ووهي.

یو تیمم کونکی سړی که چېري د با اودسه خلکو لپاره امامت وکړي نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله او ابویوسف رحمهم الله په نز جائز دی خلافا لمحمد رحمه الله، دغه ډول ناست سړی د ولاړو خلکو لپاره، په موزو او په خاورو مسح کولو والا سړی بالاتفاق د هغه خلکو امامت کولای سي چا چي پرېولل کړي وي او په حضر شرحه

اسیبجابي کي ذکر دي چي د جاري زخم والا د تندرستو لپاره امامت نه دی صحیح دغه ډول د لاعلمه امامت د صاحب علم لپاره صحیح نه دی، که د دواړو امامت د خپلو ډولو خلګو لپاره وکړي نو صحیح دی.

**تشریح**: که د اوبو د مقدار کم سي او د ټوله بدن لپاره د غسل اوبه کافي نه وي څه حصه وچه پاته سي نو د دې سړي د جنابت لپاره تیمم ضروري دی ولي چي تراوسه حالته پوري جنابت باقي دی که وروسته اوبه پیداسي مګر دا سړی د جنابت سره بې اودسه هم سو یعني حدث اصغر ورته لاحق سو نو اوبه دي وکتل سي که د دا حصې لپاره کافي وي چي د غسل په دوران کي پاته سوي وه هغه دي پرېولي او که د اودس لپاره کافي وي نو دي اودس وکړي.

که چېري فقط د یوه لپاره کافي کیږي نو د هغه حصې پرېولل ضروري دي ولي چي دا حدث اکبر دی چي د هغه دفعه کول د حدث اصغر څخه مقدم دی او د هغه حصې د پرېوللو وروسته حدث اصغر یعني د اودس په ځای دي تیمم ووهي.

که یو څوک خپله هم بې اودسه وي او د هغه کپړي هم نجسي وي او اوبه د یوه لپاره کافي کیدلای سي نو په دې اوبو سره دي خپله نجسه کپړه پرېولي ولي چي د اودس قائم مقام اودس کیدی سي او دا هم طهارت دی نو د یوه پر ځای دوه طهارتونه حاصلیږي.

که تیمم کونکی سړی د اودس کونکو امامت وکړي نو د شیخینو رحمهم الله تعالی په نز جائز دی ولي چي تیمم د دوی په نز طهارت مطلقه دی او د امام محمد رحمه الله په نز بیا تیمم طهارت ضروري دی، د دې لپاره دا اقتداء قوي خلف الضعیف دی نو جائز نه ده، دغه ډول د ناست سړي امامت د قیام والاوو لپاره په دې کي هم دغه اختلاف دی، د شیخینو په نز جائز دی او د امام محمد په نز نه دی جائز

په موزو یا په پټۍ مسح کول طهارت ضروري نه دی بلکي د ټولو په نز طهارت

مطلقه دی، بالکل دغه ډول دی لکه څنګه پرهولل نو بلا اختلاف د ده امامت صحیح دی،که چېري یو ناسُور (یو ډول ناروغي ده) داسي خراب سي چي د هغه څخه اکثره وخت ژړي اوبه نَوُونه بهیږي نو د تندرست خلګو لپاره د داسي سړي امامت صحیح نه دی دغه ډول که د یو چا دومره قرآن هم یاد نه وي په کوم سره چي د فرض قرآئت مقدار پوره کیږي نو د دې سړی لپاره د داسي خلګو امامت نه دی جائز چي هغه په فرض مقدار کي تلاوت کولای سي.

والله اعلم بالصواب

## فصل في المياه

(دافصل په‌بيان کي د اوبو دی)

وَيَجُوْزُ الطَّهَارَةُ بِمَآءٍ مُطْلَقٍ طَاهِرٍ كَمَآءِ السَّمَآءِ وَالْاَوْدِيَةِ وَالْعُيُوْنِ وَالْاٰبَارِ وَالْبِحَارِ وَتَزُوْلُ بِهَا النِّجَاسَةُ حُكْمِيَّةً كَانَتْ اَوْ حَقِيْقِيَّةً وَلاَ تَجُوْزُ اِزَالَةُ النِّجَاسَةِ الْحُكْمِيَّةِ بِالْمَآءِ الْمُقَيَّدِ كَمَآءِ الْاَشْجَارِ وَالثِّمَارِ وَالْبَطِيْخِ وَالْبَاقِلَآءِ وَالْمِرَقِ وَالزَّرْدَجِ وَمَآءِ الزَّعْفُرَانِ وَكَذَا لاَ تَجُوْزُ بِمَآءِ الْوَرَدِ وَالْخِلِّ وَالْعَصِيْرِ وَنَحْوِ ذٰلِكَ وَتَجُوْزُ اِزَالَةُ النِّجَاسَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ عَنِ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ بِالْمَآءِ الْمُقَيَّدِ وَبِكُلِّ مَائِعٍ طَاهِرٍ يُمْكِنُ اِزَالَتُهَا بِهِ كَاللَّبَنِ وَالْخِلِّ وَالْعَصِيْرِ وَبِمَا ذَكَرْنَا اٰنِفًا مِنَ الْمَآءِ الْمُقَيَّدِ وَاِنْ غَسَلَ النِّجَاسة بِالْعَسَلِ اَوْ بِالسَّمَنِ اَوْ بِالدُّهْنِ لاَيَزِيْلُهَا لِاَنَّهَا لاَيَنْعَصِرُ بِالْعَصْرِ.

**ژباړه**: جائز ده پاکي حاصلول په خالصو پاکو اوبو سره لکه د باران، ښَلو، چينو، څاګانو، او د درياب اوبه، په دغه‌اوبو سره حکمي او حقيقي دواړه نجاستونه ليري کيږي، د حکمي نجاست ليري کول په مقيدو اوبو (غيرخالص) سره نه دی جائز لکه د درختو، ميوو، ايندوانې،لوبيا، ښوروا، زردکي او د زعفران په اوبو سره، دغه ډول د عرق ګلاب، سُرکه، او د انګورو په‌راس، او په دې قسم نورو اوبو سره نه دی جائز نجاست حقيقي د خپلو کالو او بدن څخه ليري کول په مقيدو اوبو (غير خالص) سره او د بهېدونکي شي چي په‌هغه‌سره ازاله ممکنه وي لکه څنګه چي تېرسوه يعني سُرکه، عصير يا حبس او په‌مقيدو اوبو سره‌لکه‌بيان چي اوس تير سو په‌دا شانو سره

د نجاست حقیقي ازاله جائز ده، که چېري نجاست په شاتو، غوړو یا په تیلو سره پرېولی نو نه زائلیږي ولي چي دا لیري کوونکي نه دي.

**تشریح**: د تیمم د بیان د فراغته وروسته مصنف رحمه الله د اوبو احکام بیانوي، ولي چي اودس او غسل د اوبو په ذریعه سره ممکن دی، نو چونکي په هرو اوبو سره اودس وغسل صحیح نه دی د دې لپاره دا پېژندل ضروري دي چي په کومو اوبو باندي طهارت حاصلېدی سي.

چونکي طهارت یا خو د نجاست حکمي څخه حالیږي یا د نجاست حقیقي څخه نو مصنف رحمه الله د دې جلا جلا احکام بیان کړه.

مصنف رحمه الله وایي چي طهارت حکمي صرف په خالصو او پاکو اوبو سره حالیدی سي چي د هغه اوبو مثالونه مصنف رحمه الله په متن کي یاد کړه، لکه باران او د چینو وغیره اوبه، نجاست حکمي دادی چي یو سړی د کار په وخت کي زخمي سي نو د کوم ځای څخه چي وینې توی سي صرف په هغه ځای نجاست معلومیږي مګر د وینې په وتلو سره مکمل اودس فرض دی که څه هم د اودس په اندامو باندي وینې نه وي موښتي نو اعضاء د اوداسه حکمًا نجس سوه او د نجاست حکمي څخه چي کوم طهارت حاصلیږي هغه ته طهارت حکمي ویل کیږي.

نجاست حقیقي دادی چي واقعي یو نجاست مثلاً وینه، متیازي وغیره په یو ځای باندي ولګیږي، که په نظر راسي او که نه لکه څنګه چي متیازي د لګېدو وروسته وچي سي نو دا نجاست حقیقي دی او د ده څخه چي کوم طهارت حاصلیږي هغه ته طهارت حقیقي ویل کیږي، د نجاست حقیقي ازاله په هغه شي سره جائز ده چي بهېدونکی پاک وي مثلاً د سرکې او زعفران وغیره ګډي سوي اوبه نیستېږل کیږي ولي چي په نیستېږلو سره د نجاست تمام اجزا غالباً بهیږي، نو د دې لپاره دا ضروري ده چي په داسي مائع پاک شي سره پرېولل سي چي په هغه باندي غوړګي نه وي

ولي چي په روغني شيانو سره نجاست نور غوړيږي او نه سي صفا کيدی، د دې لحاظ څخه د مصنف رحمه الله قول لپاره د طهارت په پاکو مائعو شيانو کي صحيح نه معلوميږي ولي چي په هغو کي هم غوړيزګي وي او په ښه ډول نسي نيستېږل کېدی چي په هغه سره د نجاست جمله اجزا ختم سي.

وَتَجُوْزُ الطَّهَارَةُ بِمَآءٍ خَالَطَهُ شَيْءٌ طَاهِرٌ فَغَيَّرَ اَحَدَ اَوْصَافِهِ كَمَآءِ الْمَدِّ وَالْمَآءِ الَّذِيْ اخْتَلَطَ بِهِ الزَّعْفَرَانُ اَوِ الصَّابُوْنُ اَوِ الْاَشْنَانُ بِشَرْطِ اَنْ تَكُوْنَ الْغَلَبَةُ لِلْمَآءِ مِنْ حَيْثُ الْاَجْزَآءِ اِذَا لَمْ يَزَلْ عَنْهُ اِسْمُ الْمَآءِ وَاَنْ يَّكُوْنَ رَقِيْقًا بَعْدُ فَحُكْمُهُ حُكْمُ الْمَآءِ الْمُطْلَقِ يَجُوْزُ بِهِ الْوُضُوْءُ وَاِلَّا فَلَا وَذُكِرَ فِيْ اَجْنَاسِ النَّاطِفِيِّ اَلتَّوَضُّؤُ بِمَآءِ السَّيْلِ اِذَا لَمْ تَكُنْ رِقَّةُ الْمَآءِ غَالِبَةً لَايَجُوْزُ وَذُكِرَ فِي الْمُلْتَقَطِ اِذَا اُلْقِيَ الزَّاجُ فِي الْمَآءِ حَتّٰى اِسْوَدَّ الْمَآءُ وَلٰكِنْ لَّمْ تَذْهَبْ رِقَّتُهُ جَازَ الْوُضُوْءُ بِهِ وَكَذَا الْعَفْصُ اِذَا طُرِحَ فِي الْمَآءِ وَكَذَا الْحِمَّصُ وَالْبَاقِلَآءُ اِذَا اُنْقِعَ فِي الْمَآءِ وَلَمْ تَزَلْ رِقَّتُهُ وَاِنْ تَغَيَّرَ لَوْنُهُ اَوْ طَعْمُهُ اَوْ رِيْحُهُ وَذُكِرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ لَوْ طُبِخَ الْحِمَّصُ اَوِ الْبَاقِلَآءُ اِنْ كَانَ الْمَآءُ بِحَالٍ لَوْ بَرَدَ لَايَثْخُنُ وَلَاتَزُوْلُ عَنْهُ رِقَّةُ الْمَآءِ جَازَ الْوُضُوْءُ بِهِ وَاِلَّا فَلَا وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ لَوْ تَوَضَّاَ بِمَآءٍ اُغْلِيَ بِاَشْنَانٍ اَوْ بِاٰسٍ اَوْ بِشَيْءٍ مِّمَّا يَتَعَالَجُ بِهِ النَّاسُ جَازَ الْوُضُوْءُ بِهِ مَالَمْ يَغْلِبْ عَلَيْهِ وَكَذَا لَوْ بَلَّ الْخُبْزَ فِي الْمَآءِ اِنْ بَقِيَتْ رِقَّتُهُ جَازَ وَاِنْ صَارَ الْمَآءُ ثَخِيْنًا لَايَجُوْزُ وَفِيْ شَرْحِ الْقُدُوْرِيِّ اِذَا اخْتَلَطَ الطَّاهِرُ بِالْمَآءِ وَلَمْ يَزَلْ اِسْمُ الْمَآءِ عَنْهُ فَهُوَ طَاهِرٌ وَطَهُوْرٌ سَوَآءٌ تَغَيَّرَ لَوْنُهُ اَوْلَمْ يَتَغَيَّرْ وَلَمْ يَذْكُرْ خِلَافَ

وَعَلٰى هٰذَا اِذَا تَغَيَّرَ لَوْنُ الْمَآءِ اَوْ رِيْحُهُ اَوْ طَعْمُهُ بِطُوْلِ الْمُكْثِ اَوْ بِوُقُوْعِ الْاَوْرَاقِ فِيْهِ يَجُوْزُ الْوُضُوْءُ بِهِ اِلاَّ اِغْلَبَ عَلَيْهِ لَوْنُ الْاَوْرَاقِ فَيَصِيْرُ مُقَيَّدًا.

**ژباړه:** طهارت په هغه اوبو سره جائز دی چې په هغو کې يو پاک شی ګډ سي او د اوبو د اوصافو څخه يو متغير کړي لکه د سيلاب اوبه، زعفران، صابون، او اشنان ګډي اوبه په دې شرط سره چې د اجزا په اعتبار اوبه غالبې وي، تر هغه وخت پوري چې د هغه څخه د اوبو نوم نه وي زائل او د هغه وروسته هم نرمي پاته سوی وي نو هغه حکم د خالصو اوبو دی او په دوی سره اودس جائز دی، که چېري دا ډول نه وي نو نه دی جائز.

په اجناس ناطقي کې ذکر دي چې د سيلاب اوبه چې کله نرمي نه وي نو په هغو سره اودس نه دی جائز او په ملتقط کې دي چې کله اوبو ته پتکری (يو ډول شی دی) واچول سي او د اوبو رنګ تور سي مګر نرمي پاته وي نو په دې سره اودس جائز دی، د غه ډول ګل مازو، نخود، او لوبيا چې کله اوبو ته واچول سي مګر نرمي باقي ويکه څه هم يې رنګ خوند او بوی بدل سي.

په جامع الصغير کې مذکور دي چې کله په اوبو کې نخود يا لوبيا پخه سي نو که چېري اوبه وروسته تر سړېدو ګاټه نه وي.او نرمي يې هم نه وه ختمه سوي نو په دوی سره اودس جائز دی که چېري داسي نه وي نو نه دی جائز. په محيط کې ذکر دي که چېري څوک په داسي اوبو سره اودس وکړي چې په هغو سره اشنان يا آس يا داسي شي کوم چې د علاج لپاره استعماليږي، جوشه ولی وي نو په دې سره اودس جائز دی تر هغه وخته پوري چې په دوی يې غلبه نه وي کړي، دغه ډول که چېري ډوډی په اوبو کې کښيښوول سي او د اوبو رقت باقي وي نو جائز دی که ګاټه وي نو نه دی جائز، کله چې يو پاک شی په اوبو کې ګډ سي مګر په ده سره د اوبو نوم نه سي

زائل نو دا پاکي دي او پاکونکي دي، که يې رنګ متغير وي او که نه وي، په دې کي هيڅ اختلاف نه دی مذکور، دغه ډول که د اوبو رنګ، بوی او خوند د دربېدو په وجه يا د پاڼو لوېدو په وجه متغير سي نو اودس جائز دی تر هغه پوري چي د پاڼو رنګ نه وي غالب سوی ولي چي بيا دا اوبه مقيدي کيږي.

**تشريح**: د اوبو سره که چېري يو شي ګډ سي او د اوبو رنګ، خوند او د بوی څخه يو متغير سي لکه د سيلاب اوبه د مختلفو رلو شلو اوبه چي د هغو اوبو رنګ خړ وي نو په دې صورت کي که څه هم د اوبو يو وصف يعني رنګ بدل سو مګر په دې طهارت حاصلول جائز دی.

دغه ډول که چېري د اوبو سره اشنان، زعفران يا صابون ګډ سي نو د هغوی په ګډېدو سره اودس او غسل يا نور طهارت حاصليدی سي، اشنان يو بوټی دی چي په اوبو کي خيشتيږي او د خيرو صفا کولو کار ځيني اخستل کيږي، په تيرو زمانو کي چي به کله صابون د هر چاسره نه وو نو د اشنان څخه د صابون کار اخيستل کيدی. مګر که چېري د دې شيانو په ګډېدو سره د اوبو رقت ختم سي او بهېدل کوم چي د اوبو خاصه ده داهم ختم سي او يو لېدونکی دا نه سي ويلای چي دا اوبه دي، مثلاً د صابون په ګډېدو سره زګ زيات سي او اوبه ګاټه سي نو په دې اوبو سره اودس غسل يا نوره پاکي حاصلول نه دي جائز ولي سيلان کوم چي د اوبو طبعيت دی هغه ختم سو نو دا اوبه نه سوي پاته نو په دې سره پاکي څنګه حاصليدی سي.

د فقهاء احناف رحمهم الله تعالي په متفقه طور فيصله ده که چېري يو پاک شی په دومره غالب مقدار کي نه وي چي د اوبو نوم بدل سي مثلاً د نبيذ يا په بل نوم د شربت وغيره سره ياد کړل سي نو په دې سره اودس او غسل جائز دی، که چېري مستعملي اوبه کومي چي خپله پاکي دي مګر پاکونکي نه دي د خالصو اوبو سره ګډي سوي نو په دې اوبو سره هغه وخت پاکي حاصلبدی سي کله چي خالصي اوبه

باندي زياتي وي يعني که دوه سيره خالصي اوبه وي او يو سير مستعملي اوبه گډي سي نو په دې سره اودس وغيره جائز دی که بالعکس وي نو نه دی جائز، او که برابري وي نو احتياط په دې کي دی چي د نورو اوبو په موجودگی کي په دې سره دي اودس نه کوي که نوري اوبه نسوي پيدا نو احتياطاً د دې اودس سره تيمم دي هم ووهي، د آس څخه مراد د ببري يا د عز درخته ده.

وَكَذَا اِذَا تَيَقَّنَ بِطُهُوْرِيَّتِهٖ اَوْ غَلَبَ عَلٰى ظَنِّهٖ جَازَتْ بِهِ الطَّهَارَةُ حَتّٰى لَوْ وَجَدَ مَآءً قَلِيْلاً وَلَمْ يَتَيَقَّنْ بِوُقُوْعِ النَّجَاسَةِ فِيْهِ يَتَوَضَّأُ بِهٖ وَيَغْتَسِلُ وَلَا يَتَيَمَّمُ وَكَذَا اِذَا دَخَلَ الْحَمَّامَ وَفِيْ حَوْضِ الْحَمَّامِ مَآءٌ قَلِيْلٌ وَلَمْ يَتَيَقَّنْ بِوُقُوْعِ النَّجَاسَةِ فِيْهِ فَاِنَّهٗ يَتَوَضَّأُ بِهٖ وَيَغْتَسِلُ وَلَا يَنْتَظِرُ الْمَآءَ الْجَارِيَ وَاِذَا اُلْقِيَ فِي الْمَآءِ الْجَارِيْ شَيْءٌ نَجِسٌ كَالْجِيْفَةِ وَالْخَمْرِ لَا يَتَنَجَّسُ مَالَمْ يَتَغَيَّرْ لَوْنُهٗ اَوْ رِيْحُهٗ اَوْ طَعْمُهٗ وَعَنْ مُحَمَّدٍ اِذَا صُبَّ جُبٌّ مِنَ الْخَمْرِ فِي الْفُرَاتِ وَرَجُلٌ اَسْفَلُ مِنْهُ يَتَوَضَّأُ جَازَ اِذَا لَمْ يَتَغَيَّرْ اَحَدُ اَوْصَافِهٖ وَاِذَا جَلَسَ النَّاسُ صُفُوْفًا عَلٰى شَطِّ نَهْرٍ جَارٍ يَتَوَضَّئُوْنَ جَازَ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَذَكَرَ النَّاطِفِيُّ سَاقِيَةٌ صَغِيْرَةٌ فِيْهَا كَلْبٌ مَيِّتٌ قَدْ سَدَّ عَرْضَهَا فَجَرَى الْمَآءُ عَلَيْهِ لَا بَأْسَ بِالْوُضُوْءِ اَسْفَلَ مِنْهُ اِذَا لَمْ يَتَغَيَّرْ اَحَدُ اَوْصَافِهٖ وَهُوَ مَرْوِيٌّ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ وَعِنْدَهُمَا لَا يَجُوْزُ وَعَنِ الْفَقِيْهِ اَبِيْ جَعْفَرٍ اِذَا كَانَ الْمَآءُ فَوْقَ الْجِيْفَةِ مِقْدَارَ ذِرَاعٍ جَازَ وَذَكَرَ فِي النَّوَازِلِ اِذَا كَانَ الْمَآءُ الَّذِيْ يُلَاقِي الْجِيْفَةَ دُوْنَ الَّذِيْ لَا يُلَاقِي الْجِيْفَةَ يَعْنِيْ اِذَا كَانَ الْغَلَبَةُ لِلْمَآءِ الَّذِيْ لَا يُلَاقِي الْجِيْفَةَ جَازَ وَاِلَّا فَلَا وَعَلٰى هٰذَا مَآءُ الْمَطَرِ اِذَا جَرٰى فِيْ

مِيْزَابِ السَّطْحِ وَكَانَ عَلَى السَّطْحِ عَذِرَاتٌ فَالْمَآءُ طَاهِرٌ اَمَّا اِذَا كَانَتِ الْعَذِرَةُ عِنْدَ الْمِيْزَابِ اَوْكَانَ الْمَآءُ كُلُّهُ اَوْ نِصْفُهُ اَوْ اَكْثَرُهُ يُلَاقِي الْعَذِرَةَ فَهُوَ نَجَسٌ وِاِلاَّ فَهُوَ طَاهِرٌ وَاِنْ سَالَ الْمَطَرُ مِنَ السَّقْفِ اَوْ مِنَ الثُّقُبِ اِنْكَانَ الْمَطَرُ دَآئِمًا اَىْ مُسْتَمِرًّا لَمْ يَنْقَطِعْ بَعْدُ فَهُوَ طَاهِرٌ وَاِنْ اِنْقَطَعَ الْمَطَرُ ثُمَّ سَالَ الْمَآءُ مِنَ السُّقُبِ اِنْكَانَتْ عَلَى جَمِيْعِ السَّطْحِ اَوْعَلٰى اَكْثَرِهٖ نِجَاسَةٌ فَهُوَ نَجَسٌ.

**ژباړه:** دغه ډول که چېري د اوبو د پاکېدو يقين يا ګمان غالب وي نو طهارت کول جائز دی تر دې پوري چي کله لږ اوبه پيداسي او په هغو کي نجاست د نه واقع کيدو يقين وي نو په دې اوبو سره دي اودس او غسل وکړي او تيمم دي نه وهي، دغه ډول چي کله حمام ته داخل سي او د حمام په تالاب کي په لږ مقدار کي اوبه وي او د نجاست ليدو يقين يي نه وي نو په دې سره دي اودس او غسل وکړي د جاري اوبو انتظا دي نه کوي که چېري په جاري اوبو کي يو نجس شي واچول سي لکه وروست مردارشی يا شراب نو اوبه نه نجسي کيږي تر هغه وخته چي رنګ، بوی او خوند يي متغير نه وي، د امام محمد رحمه الله څخه روايت دی که چېري د شرابو غټ منګی د فرات په نهر کي توی کړل سي او يو انسان لاندي د جريان په طرف کي اودس وکړي نو جائز دی تر هغه وخته پوري چي يو وصف متغير نه وي.

که ډېر خلک د نهر پر کناره اودس وکړي نو جائز دی او دغه صحيح ده، ناطقي ذکر کړی دی که چېري په کوچني نهر کي مړ سپی د هغه پراخي بنده کړي او اوبه پر هغه سربيره تيرېږي نو دلاندي طرف خلکو ته په اودس کولو کي هيڅ مضائقه نسته تر هغه وخته پوري چي يو وصف يي متغير نه وي، دا د امام يوسف رحمه الله څخه روايت دی او د طرفينو په نز نه دی جائز، د فقيه ابو جعفر څخه روايت دی که

چېرې اوبه په مرده لاش يو ګز پورته تيرېږي او په نوازل کې مذکور دي چې اوبه د يو مردار شي سره لګيږي د هغه اوبو څخه لږ داسې اوبه وي چې نه ورسره لګيږي وروسته دا اوبه بيا د هغه اوبو سره لګيږي چې هغه د مردار شي سره لګيږي نو که د دانورو اوبو سره لګېدلي بيا جائز نه دی که نه ورسره لګېدلي نو جائز دی ، په دغه بناء که چېرې د باران اوبه د چت د ناوې توی سي او په چت ګندګي پرته وي نو اوبه پاکي دي که چېرې ګندګي و ناوې ته نژدې پرته وي يا اوبه ټوله يا نيمي اکثره د ګندګۍ سره يوځای تواېږي نو نجسي دي که چېرې داسې نه وي نو پاکي دي، که د باران اوبه د چت د سرې يا د يو سرې څخه توی سي نو که چېرې باران جاري وي نو پاکي دي او د باران د درېدلو وروسته که چېرې د سورې څخه اوبه توی سي او په پوره چت يا په اکثره نجاست پروت وي نو نجسي دي .

**تشريح**: د شريعت مطهره يوه قاعده داهم ده چې يقين په شک سره نه زائليږي تر څه وخته پورې چې د يقين په مقابله کې يقين نه وي نو د دې قاعدې په نظر کې ساتلو سره که چېرې د اوبو په باره کې يقين وي يا ګمان غالب وي کوم چې په منزله د يقين دی چې دا اوبه پاکي دي نو په دې سره اودس او غسل جائز دی په دې صورت کې تيمم نه دی جائز نو پر دې بنا که چېرې لږ اوبه پيدا سي چې هغه د اودس يا غسل لپاره کافي وي نو د هغو په استعمال کې را وړل ضروري دي ولې چې تيمم په دې صورت کې نه دی جائز او دا ضروري نه ده چې د چا څخه پوښتنه وکړي چې دا اوبه پاکي دي که ناپاکي .

که چېرې په جاري اوبو کې يو ګندګي لکه د يو ساه داره وروست جسد واچول سي نو ترڅه وخته پورې چې د اوبو رنګ، يا خوند يا په بوی کې د هغه نجاست اثر نه سي ظاهر تر هغه وخته پورې دا اوبه پاکي دي ولې چې د دې نجاست اجزا په اوبو نه دي غالب سوي نو ضرور به د نجاست بدبويي په رنګ يا په خوند کې د اوبو

محسوسېدی، مګر کله چي نه محسوسیږي نو دا د دې دلیل دی چي نجاست په اوبو نه دی غالب سوی .

په دې باندي په تفریح کولو سره مصنف رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول نقل کولو سره وایي که چېري د فرات په نهر کي په کثیر مقدار کي شراب توی کړل سی او په دې اوبو کي د شراب څه رنګ، بوی او خوند نسي محسوس نو په دې سره اودس کول جائز دي، دغه ډول که چېري د نهر په غاړه ډېر خلګ کښېني په یوه وخت کي اودس وکړي نو د صحیح قول مطابق دا جائز دی ولي چي د اوبو پاکیدل یقیني دي او په فقط دا احتمال دی چي یوه به د بل مستعملي اوبه استعمال کړي وي نو فقط د دې احتمال پر بنا دي اوبو ته مستعملي اوبه ویل نه دي جائز بلکي په دې اوبو سره طهارت کول جائز دی .

دغه ډول په یوه کوچني نهر کي که یو مردار لاش دا ډول پروت وي چي اوبه د هغه پر سر تیرېږي مګر د اوبو رنګ، بوی او خوند کي څه قسم تغیر نه وي نو په دې سره اودس جائز دی مګر بعضو فقهاؤ کرامو دا تفصیل کړی دی چي که چېري تیرېدونکي اوبه زیاتي په دې نجاست سره تیرېږي نو نه دی جائز که چېري تیرېدونکي اوبه کمي وي نو په دې سره اودس جائز دی په دې قیاس کولو سره فقهاء کرام وایي که چېري په چت نجاست پروت وي او د باران اوبه اکثره د نجاست څخه تیرېږي نو دا هم نجسي دي، که چېري په نیم چت باندي نجاست پروت وي نو احتیاطاً د نجس کېدلو حکم یي کیږي .

وَاِذَاكَانَ الْمَآءُ الْجَارِیْ یَجْرِیْ ضَعِیْفًا یَنْبَغِیْ اَنْ یَتَوَضَّاَ عَلَی الْوِقَارِ حَتّٰی یَمُرَّ عَنْهُ الْمَآءُ الْمُسْتَعْمَلُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ یَجْعَلُ یَمِیْنَهٗ اِلٰی اَعْلَی الْمَآءِ یَعْنِیْ مَوْرِدَ الْمَآءِ وَاِذْ سُدَّ الْمَآءُ الْجَارِیْ مِنْ فَوْقٍ وَبَقِیَ جَرْیُهٗ كَانَ جَارِیًا یَجُوْزُ التَّوَضُّؤُ بِهٖ اَمَّا الْحَدْ ذِ

جِرْيَانِ الْمَآءِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ ذَهَبَ بِهِ تِبْنٌ اَوْوَرَقٌ فَهُوَ جَارٍ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ كَانَ اِنْ رُفِعَ يَنْحَسِرُ مَا تَحْتَهُ وَيَنْقَطِعُ الْجِرْيَانُ فَلَيْسَ بِجَارٍ وَاِنْ كَانَ بِخِلاَفِهِ فَهُوَ جَارٍ وَفِي الْمُنْتَقٰى اِذَا كَانَ بَعْضُ بَطْنِ النَّهْرِ نَجِسًا وَجَرَى الْمَآءُ عَلَيْهِ اِنْكَانَ بِخِلاَفِهِ فَهُوَ جَارٍ وَفِي الْمُنْتَقٰى اِذَا كَانَ بَعْضُ بَطْنُ النَّهْرِ نَجِسًا وَجَرَى الْمَآءُ عَلَيْهِ اِنْكَانَ الْمَآءُ كَثِيْرًا بِحَيْثُ لاَيُرٰى مَاتَحْتَهُ لاَيَتَنَجَّسُ وَاِنْكَانَ جَمِيْعُ بَطْنِ النَّهْرِ نَجِسًا وَلَوْكَانَ فِي النَّهْرِ مَآءٌ رَاكِدٌ فَتَنَجَّسَ وَنَزَلَ مِنْ اَعْلاَهُ مَآءٌ طَاهِرٌ وَاَجْرٰهُ وَسَيَّلَهُ فَاِنَّهُ يَطْهُرُ وَلَوْ تَوَضَّاَ مِنْهُ جَازَ اِذَا لَمْ يُرٰى لَهَا اَثَرٌ.

**ژباړه:** کله چي اوبه کمزوري کراري بهيږي نو مناسبه ده چي اودس په آرامه سره وکړي د دې لپاره چي مستعملي اوبه تيري سي او ځينو ويلي دي خپل راسته لاس د کوم طرف څخه چي اوبه راځي و هغه طرف ته دي کړي او کله چي اوبه د پورته طرف څخه راتلل بند سي مګر جريان نافي وي نو جاري دي، په دې سره اودس جائز دی د جاري کېدو انداز د ځينو په نزد دادی که خاشه او پاڼه وړی سي نو جاري دي او ځيني وايي که چېري اوبه پورته کړل سي او لاندي سطحه ظهره سي او جريان بند سي نو نه دي جاري، که د دې خلاف وي نو جاري دي، په منتقي کي راغلي دي که چېري د نهر بعض اندروني حصه نجسه سي او په هغه باندي اوبه جاري سي نو که چېري اوبه زياتي وي او لاندي يوڅه نه معلوميږي نو نه نجسي کيږي که څه هم د نهر اندروني حصه نجسه وي، او که په نهر کي اوبه ولاړي وي بيا نجسي سي او د پورته څخه پاکي اوبه جاري سي او د ځان څخه يوسي نو پاکيږي که چېري په دې اوبو سره اودس وکړل سي، نو جائز دي تر هغه وخته چي د نجاست اثر

نه سي ښکاره .

**تشريح**: کله چي اوبه آهسته آهسته رواني وي نو اودس کونکي ته پکار دی چي په آرامه سره اودس وکړي د دې لپاره چي لاندي توی سوي مستعملي اوبه تېري سي او بهتره داده چي د اوبو اخيستلو په وخت کي پورته يعني د کوم طرف څخه چي اوبه جاري وي هغه اخلي د دې لپاره چي د مستعملو اوبو د استعمال احتمال هم نه سي پاته، په اوبو هغه وخت د جاري حکم کيږي چي کله خاشه يا د دې په مثال څه بل معمولي شي د وړلو قابلي وي که چېري دومره هم نه وي نو د جاري په حکم کي نه دي، په دې سره اودس يا نور طهارت حاصلول نه دي جائز دغه قول زيات مشهور دی .

که نهر وچ سو او اندروني حصه يې نجسه سوه او وروسته بيا اوبه جاري سي نو د دې نهر اندروني حصه د اوبو په جاري کېدلو سره په خپله پاکيږي او د نهر ولاړي نجسي اوبه چي کله د دې جاري اوبو سره رواني سي نو هغه هم پاکيږي ولي چي په هغو د پاکو اوبو غلبه وسوه مګر د دې اوبو په زيات مقدار کيدل ضروري دي، اوس د مقدار په باره کي ځيني علماء وايي چي کم از کم دومره وي چي د نهر اندروني حصه نه ښکاره کيږي مګر کله کله د اوبو د خړيدو په وجه اګرچي اوبه کمي وي مګر لاندنۍ حصه نه ښکاره کيږي نو د دې په باره کي صحيح داده چي د اوبو مقدار دومره وي چي کتونکی خپله دا د نجاست په مقابله کي زياتي تصور کړي .

## فصل في الحياض

(دا فصل د تالابو داوبو په بيان کي دی)

اَلْحَوْضُ اِذَا كَانَ عِشْرًا فِيْ عَشْرٍ بِذِرَاعِ الْكِرْبَاسِ فَهُوَ كَبِيْرٌ لَايَتَنَجَّسُ بِوُقُوْعِ النَّجَاسَةِ اِذَا لَمْ يُرَلَهَا اَثَرٌ سَوَآءٌ كَانَتِ النَّجَاسَةُ مَرْئِيَّةً اَوْ لَمْ تَكُنْ مَرْئِيَّةٍ وَبَعْضُهُمْ قَالُوْا يَتَنَجَّسُ مَا حَوْلَ النَّجَاسَةِ مِقْدَارُ حَوْضٍ صَغِيْرَةٍ وَبَعْضُ مَشَائِخِ بُخَارِيْ جَعَلُوْهُ كَالْمَآءِ الْجَارِيْ وَتَوَسَّعُوْا فِيْهِ لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰى وَيَبْتَنِيْ عَلٰى هٰذَا مَسَائِلُ مِنْهَا اِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ فِيْ حَوْضٍ كَبِيْرٍ فَسَقَطَ مِنْ غُسَالَتِهٖ فِي الْمَآءِ فَرَفَعَ الْمَآءَ ثَانِيًا مِّنْ مَوْضِعِ الْوُقُوْعِ قَبْلَ التَّحْرِيْكِ قَالُوْا عَلٰى قَوْلِ اَبِيْ يُوْسُفَ لَايَجُوْزُ لِاَنَّ عِنْدَهٗ التَّحْرِيْكَ شَرْطٌ وَمَشَائِخِ بُخَارٰى قَالُوْا يَجُوْزُ لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰى وَعَلٰى هٰذَا الْقِيَاسِ مَا اِذَا كَانَ الرِّجَالُ صُفُوْفًا يَتَوَضَّئُوْنَ مِنْ حَوْضٍ كَبِيْرٍ جَازَ وَفِيْ اَجْنَاسِ النَّاطِفِيْ اَنَّ مَنِ اغْتَسَلَ مِنْ حَوْضٍ كَبِيْرٍ فَلِلْاٰخَرِ اَنْ يَّتَوَضَّاَ فِيْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ وَلَيْسَ لِلرَّجُلِ اَنْ يَّتَوَضَّاَ اَوْ يَغْتَسِلَ فِي الْحَوْضِ الْكَبِيْرِ بِنَاحِيَةِ الْجِيْفَةِ وَالْاَصَحُّ فِيْهِ مَا تَقَدَّمَ وَاِذَا لَمْ تَكُنِ النَّجَاسَةُ مَرْئِيَّةً يَجُوْزُ مُطْلَقًا.

**ژباړه:** تالاب چي کله لس په لس گزه کي وي نو دا لوی دی او دا د نجاست په لوېدو نه مرداريږي تر هغه وخته پوري چي د هغه اثر نه سي ښکاره. که نجاست په نظر راځي او که نه، ځيني علماوو وايي چي د نجاست څخه شاوخوا د کوچني تالاب په اندازه نجس کيږي او ځينو دبخارا علماوو دا حوض کبير د جاري په حکم کي

شمارلی دی عموماً د بلوی په وجه په دې کي يې وسعت اختيار کړی دی او په دغه باندي مسائلي مبنی وي دا که چېري په لوی تالاب کي مخ پرېولي او مستعملي اوبه په دغه ځای توی سي او د دغه ځای څخه بيا اوبه واخلي ترمخه د دې چي اوبه متحرکي سي نو وايي چي د امام يوسفرحمه الله په قول نه دي جائز ولي چي د هغه په نز حرکت شرط دی او د بخارا علماء وايي د عموم بلوی په وجه جائز دی په دې باندي قياس کولو سره که چېري ډېر خلک په قطار در قطار کښيني او د لوی تالاب څخه اودس وکړي نو جائز دی او په اجناس ناطقي کي دي که چېري څوک په لوی تالاب کي غسل وکړي نو د دوهم وار لپاره په دغه ځای کي اودس کول جائز دی او د يوه سړي لپاره دا نه ده جائز چي په لوی تالاب کي نجاست ته نژدې غسل يا اودس وکړي او قاعده هغه ده چي ماقبل مذکوره سوي ده او که نجاست په نظر نه راځي نو مطلقا جائز دی.

**تشريح**: د اوبو د احکامو په بيان کولو سره مصنفرحمه الله په دې باب کي په خصوصي توګه د تالاب د اوبو په باره کي د احکامو آګاهي وايي، د عوامو د سهولت په خاطر متاخرين علماء په حنفي مسلک کي دا قول اختيار کړی دی چي کله تالاب لس په لس کي وي نو دا د جاري اوبو په حکم کي دی تر هغه وخته چي په دې اوبو کي د نجاست اثر نه وي په نظر راغلی نو دا اوبه پاکي دي.

په اصل کي په حنفي مسلک کي د آئمه احنافو څخه د تالاب په باره کي لس په لس کي هيڅ قول نه دی منقول، بلکي حضرت امام ابو حنيفهرحمه الله دا مسئله په رايه مبتلی باندي پرې ايښيده او د آئمه احنافو په نز د قليل او کثير هيڅ مقدار نسته، البته صرف د امام يوسفرحمه الله څخه دا قول نقل دی چي کله د اوبو و يوه طرفته حرکت ورکړل سي نو دوهم طرف نه وي متحرک نو اوبه د ډېرو په حکم کي دي او د وقوع نجاست څخه څه اثر ښکاره کيدو بغيره نجسي نه دي، د متاخرينو علماء

احنافو په نز چي کوم لس په لس کي قول مشهور دی د هغه حقيقت صرف دومره دی چي يو وخت ابوسليمان جوزجاني د خپل استاذ امام محمد څخه پوښتنه وکړه چي څومره اوبه ډېري شمارل کيږي نو په دې باندي امام محمد رحمه الله وويل چي "كَمَسْجِدِي هٰذَا" ابو سليمان جوزجاني وروسته بيا هغه ناپ کی نو دننه اته په اته کي وو، او د باندي لس په لس کي وو نو احتياطاً يې لس په لس کي اختيار کړ .

اوس په اصل مذهب کي د احنافو کثيري اوبه هغه دي چي کتونکی يې خپله زياتي تصوري کړي نو دا د جاري اوبو په حکم کي سوې، که چېري د دې تالاب په غاړه ډېر خلګ کښيني اودس وکړي نو جائز دی لکه څه ډول چي د نهر پر غاړه ډېر خلګ په يوه ځای اودس کولای سي، البته دومره احتياط کول پکار دي چي په کوم ځای نجاست واقع سوی وي د هغه ځای څخه بالکل اوبه نه واخلي بلکي په لږ فاصله باندي اودس کول پکار دي .

زراع کرباس د موجوده حساب په مطابق ۱۸ اينچه يعني يونيم فُټ دی نو په دې حساب سره که چېري تالاب د مربع په شکل کي هرطرف ته پنځلس فُټه وي چي د هغه ټوله رقبه (سطح ۲۲۵) فُټه جوړه سوي وي نو د متاخرينو د اختيار کرده قول مطابق دا تالاب د جاري اوبو په حکم کي سو او د نجاست په لوېدو نه نجس کيږي، ترڅه وخت پوري چي د نجاست څه اثر نه وي ښکاره سوی، که چېري په مربع شکل کي نه وي نو د هر لحاظ څخه چي د اوبو سطح ۲۲۵ فُټه پوره سي نو دا حوض کبير دی او د جاري اوبو حکم لري .

وَعَنِ الْفَقِيْهِ اَبِيْ جَعْفَرٍ لَوْ تَوَضَّاَ فِيْ اَجَمَةِ الْقَصَبِ فَاِنْ كَانَ الْمَآءُ بِحَالٍ لَايَخْلِصُ بَعْضُهُ اِلٰى بَعْضٍ لَمْ يَجُزْ وُضُوْءُهُ وَاِنْ خَلَصَ جَازَ وَاِتِّصَالُ الْقَصَبِ بِالْقَصَبِ لَايَمْنَعُ اِتِّصَالَ الْمَآءِ وَكَذَا لَوْ تَوَضَّاَ فِيْ مَآءٍ فِيْهِ زَرْعٌ وَكَذَا لَوْ تَوَضَّاَ مِنْ غَدِيْرٍ وَعَلٰى جَمِيْعِ

وَجْهِ الْمَآءِ جُغْزُ وَارَةٌ فَقَدْ قِيْلَ اِنْكَانَ ذٰلِكَ بِحَالٍ يَتَحَرَّكُ بِتَحْرِيْكِ الْمَآءِ يَجُوْزُ الْوُضُوْءُ بِهِ وَاِنْكَانَ لَايَتَحَرَّكُ فَلَايَجُوْزُ.

**ژباړه**: د فقيه ابو جعفر څخه روايت دی چي که چېري يو څوک د لرګيوپه يوه پلنه اودس وکړي نو که اوبه دا ډول وي چي په حرکت سره په خپل منځ کي نه جلا کيږي نو اودس نه دی جائز او که جلا کيږي نو جائز دی او يوه ښاخله د بلي سره متصلي نه وي او نه د اوبو د اتصال لپاره مانع وي، دغه ډول که چېري څوک په داسي اوبو سره اودس وکړي په کومو کي چي فصل راشين سوی وي يا څوک د داسي منګي څخه اودس وکړي چي د هغه په سطحه باندي د چنګابښ ګندګي وي نو ويل سوي دي که دا د اوبو په حرکت سره متحرک کيږي نو هغه اودس جائز دی اوکه نه متحرک کيږي نو نه دی جائز.

**تشريح**: که چېري په اوبو کي د خاشو ګنه ګوڼه وي او د هغو سرونه په خپلو کي سره ګډ وي او د اوبو د ګډ ېدو لپاره مانع وي نو په دې اوبو سره اودس نه دی جائز ولي چي په دې صورت کي د مستعملي اوبو دوباره استعمال کيږي او مستعملي اوبه طاهري دي مطهري نه دي، که په يوه ميدان کي فصل راشين کړل سي او په فصل کي اوبه ودرېږي نو به کتل کيږي که چېري د فصل د کثرت د وجي څخه د اوبو حرکت نه وي او د دې ځای څخه بل ځای ته نه جلا کيږي نو اودس نه دی جائز، په عبارت کي مذکور جغزوارة د فارسي لفظ دی، د چنګابښانو او د نورو آبي حيواناتو ګندګي چي هغه د اوبو په سطحه باندي په تيز زرغون رنګ کي وي هغه ته ويل کيږي، په عربي کي دې ته المخلب ويل کيږي.

وَكَذَا لَوْ تَوَضَّأَ مِنْ حَوْضٍ قَدْ اِنْجَمَدَ مَآءُهُ وَالْجَمَدُ رَقِيْقٌ يَنْكَسِرُ بِالتَّحْرِيْكِ

يَجُوْزُ اَمَّا اِذَا كَانَ الْحَمْدُ كَثِيْرًا قِطَعًا قِطَعًا لَايَتَحَرَّكُ بِتَحْرِيْكِ الْمَآءِ لَايَجُوْزُ وَاِنْ كَانَ قَلِيْلاً يَتَحَرَّكُ بِتَحْرِيْكِ الْمَآءِ يَجُوْزُ وَالْحَوْضُ اِذَا انْجَمَدَ مَآءُهُ فَنُقِبَ فِيْ مَوْضِعٍ مِنْهُ فَوَقَعَتْ فِيْهِ نِجَاسَةٌ اَوْ وَلَغَ فِيْهِ الْكَلْبُ وَتَوَضَّأَ بِهِ اِنْسَانٌ قَالَ نَصِيْرُ بْنُ يَحْيٰى وَاَبُوْبَكْرِ الْاَسْكَافُ يَتَنَجَّسُ الْمَآءُ وَقَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الْمُبَارَكِ وَاَبُوْ حَفْصِ الْكَبِيْرُ الْبُخَارِيُّ لَايَتَنَجَّسُ اِذَا كَانَ الْمَآءُ تَحْتَ الْجَمَدِ عَشْرًا فِيْ عَشْرٍ وَاِنْكَانَ الْمَآءُ مُتَّصِلاً بِالْجَمَدِ وَالْفَتْوٰى عَلٰى قَوْلِ نَصِيْرٍ وَاَبِيْ بَكْرٍ وَاَمَّا اِذَا كَانَ الْمَآءُ مُنْفَصِلاً عَنِ الْجَمَدِ فَيَجُوْزُ بِلاَ خِلاَفٍ وَهُوَ كَالْحَوْضِ الْمُسَقَّفِ وَاِنْ ثُقِبَ الْجَمَدُ فَعَلاَ الْمَآءُ مِنْ ثُقْبٍ فَوَلَغَ الْكَلْبُ يَتَنَجَّسُ عِنْدَ عَامَّةِ الْعُلَمَآءِ فَلَمْ تَزَلْ نِجَاسَةٌ مَالَمْ يَخْرُجْ مَافِي الثُّقْبِ مِنَ الْمَآءِ وَلَوْ تَوَضَّأَ مِنْ ثُقْبِ الْجَمَدِ وَلَمْ تَقَعْ غُسَالَتُهُ فِي الْمَآءِ جَازَ عَلٰى كُلِّ حَالٍ وَلَوْ وَقَعَ فِي الثُّقْبِ شَاةٌ اَوْ غَيْرُهَا فَمَاتَتْ اِنْ كَانَ الْمَآءُ تَحْتَ الْجَمَدِ عَشْرًا فِيْ عَشْرٍ لَايَتَنَجَّسُ وَكَذَا اِنْكَانَ اَقَلَّ مِنْ عَشْرٍ فِيْ عَشْرٍ تَنَجَّسَ جَمِيْعُ الْمَآءِ وَلَوْ مَآءُ الْحَوْضِ كَانَ عَشْرًا فِيْ عَشْرٍ فَتَسَفَّلَ فَصَارَ سَبْعًا فِيْ سَبْعٍ فَوَقَعَتِ النِّجَاسَةُ فِيْهِ تَنَجَّسَ فَاِنِ امْتَلِئَ بَعْدَ ذٰلِكَ صَارَ نَجَسًا اَيْضًا وَقِيْلَ لَايَصِيْرُ نَجَسًا.

**ژباړه:** دغه ډول که چېري يو څوک د داسي تالاب څخه اودس وکړي چي د هغه اوبه يخي سوي وي مګر د نرمېدو په وجه په حرکت ورکولو سره ماتيږي نو اودس جائز دی او که چېري په کثير مقدار کي ټکړې ټکړې سي او اوبو ته په حرکت ورکولو سره هم حرکت نه وکړي نو نه دی جائز، که چېري کم وي او د اوبو د حرکت

سره حرکت وکړي نو جائز دی .

که د تالاب اوبه يخې سوي وي او په هغه کي سوری وي نو په دې سري کي ګنډکي وولېږي يا سپي اوبه څښلي وي او چا په دې اوبو سره اودس وکړ نو نصير ابن يحيٰی او ابوبکر اسکاف رحمهما الله وايي چي اوبه نجسي سوې، عبدالله ابن مبارک او ابوحفص الکبير البخاري وايي چي نه دي نجسي که چېري د دې يخي لاندي اوبه ۱۰+۱۰وي که څه هم اوبه د دې يخي سره متصلي وي او فتوی د نصير او ابوبکر په قول ده .

که اوبه د يخي څخه جلا وي نو بلا خوفه جائز دی او د چت دار تالاب په مثل دی که چېري په جوړ سوي يخي کي سری جوړ سي او اوبه د دې سري څخه را پورته سي او په دې سره يي سپی وڅښي نو د عامو علماؤ په نز نجسي کېږي او تر هغه وخته پوري چي د دې سري ټوله اوبه نه را ويستل سي نجاست يې نه ختمېږي .

دغه ډول که چېري څوک د جمد د سري څخه اودس وکړي او مستعملي اوبه په ده کي دننه نه ولېږي نو په هرحال کي جائز دی، که په دې سري کي يو پسه ولوېږي مړ سي نو که چېري اوبه د جمد لاندي لس په لس کي وي نو نه مردارېږي او که چېري کمي وي نو ټولي اوبه مردارېږي، که د تالاب اوبه لس په لس کي وي او وروسته د لاندي تلو په وجه اووه په اووه کي پاته سي او يو نجاست ورته ولېږي نو نجسي کېږي وروسته که چېري تالاب دوباره ډک سي نو دغه ډول مردار دی او ځينو ويلي دي چي نه دی نجس .

**تشريح:** اوبه که چېري د يخ دوجي څخه يخی سي نو به کتل کېږي که نرمي وي او په حرکت سره ماتېدلي نو په دې سره اودس نه دی جائز مګر که چېري دومره سختي وي چي د اوبو په حرکت سره متحرکي نه سي نو د ډبري په منزله دی او د اوبو د اتصال څخه مانع دی او په ده سره اودس نه دی جائز.

که په یوه تالاب کي وروسته د یخي کیدو په اوبو کي د سربیره څخه یو سوری وي نو په دې کي یو نجاست وولیږي یا یي سپی وڅښي نو د امام نصیر ابن یحیٰی او ابوبکر الاسکاف د قول مطابق دا ټولي اوبه نجسي سوي ولي چي دا اوبه د یخي سره متصلي دي او لاندي د ولاړو اوبو سره نه دي متصلي، خپله د سوري اوبه کمي دي نو د نجاست په لوېدو سره نجسي کیږي، عبدالله ابن مبارک او ابو حفص الکبیر البخاري رحمهما الله تعالي وایي چي په دې سوري سره اوبه نه دي نجسي که څه هم لاندي د اوبو په ځای د یخي سره متصل وي ولي چي د دې یخي اصل هم اوبه دي او لاندي لس په لس کي اوبه موجودي دي، مګر صاحب د کتاب فتوٰی د نصیر ابن یحیٰی او ابو بکر الاسکاف په قول نقل کړي ده یعني د مفتی به قول مطابق نجسي دي.

دغه ډول که چیري اوبه د یخي د سطحې څخه پورته را ووزي او زیاتي وي نو په دې کي نجاست ولوېږي نو دا ډول دي لکه د لوښي اوبه چي په نجاست لوېدو سره ناپاکي کیږي البته که چیري څوک په داسي احتیاط سره اودس کوي چي مستعملي اوبه دوهم وار دې سوري ته نه ولویږي نو اودس جائز دی که څه هم اوبه کمي وي.

حَوْضٌ کَبِیْرٌ فِیْهِ نَجَاسَاتٌ فَامْتُلِئَ وَلَمْ یَخْرُجْ مِنْهُ شَیْءٌ قِیْلَ هُوَ نَجَسٌ وَقِیْلَ لَیْسَ بِنَجَسٍ وَبِهٖ اَخَذَ مَشَائِخُ بُخَارٰی وَذَکَرَهٗ فِی الذَّخِیْرَةِ فَاِنْ دَخَلَ الْمَآءُ مِنْ جَانِبِ حَوْضٍ صَغِیْرٍ قَدْ تَنَجَّسَ مَآؤُهٗ وَخَرَجَ مِنْ جَانِبٍ اٰخَرَ قَالَ اَبُوْ بَکْرٍ الْاَعْمَشُ لَایَطْهَرُ مَالَمْ یَخْرُجْ مِثْلُ مَاکَانَ فِیْهِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ کَالْقَصْعَةِ وَقَالَ غَیْرُهٗ لَایَطْهَرُ مَالَمْ یَخْرُجْ مِثْلُ مَافِیْهِ مِنَ الْمَآءِ مَرَّةً وَّاحِدَةً وَقَالَ اَبُوْ جَعْفَرٍ یُطْهَرُ وَاِنْ لَّمْ یَخْرُجْ مِثْلُ مَافِی الْحَوْضِ وَهُوَ اِخْتِیَارُ الصَّدْرُ الشَّهِیْدُ حَوْضٌ صَغِیْرٌ یَدْخُلُ الْمَآءُ فِیْهِ مِنْ

جَانِبٍ وَيَخْرُجُ مِنْ جَانِبٍ وَتَوَضَّأَ فِيْهِ اِنْسَانٌ فَوَقَعَتْ غُسَالَتُهُ فِيْهِ اِنْ كَانَ الْحَوْضُ
اَرْبَعًا فِيْ اَرْبَعٍ فَمَا دُوْنَهُ يَجُوْزُ لِاَنَّ الظَّاهِرَ اَنَّ الْمَآءَ الْمُسْتَعْمَلَ لَا يَسْتَقِرُّ فِيْ مِثْلِهِ بَلْ
يَدُوْرُ حَوْلَهُ ثُمَّ يَخْرُجُ فَيَكُوْنُ كَالْمَآءِ الْجَارِيْ وَاِنْ كَانَ الْحَوْضُ اَكْبَرُ مِنْ ذٰلِكَ
لَا يَجُوْزُ لِاَنَّ الْمَآءَ الْمُسْتَعْمَلَ يَسْتَقِرُّ فِيْهِ فَلَا يَكُوْنُ كَالْمَآءِ الْجَارِيْ فَلَا يَجُوْزُ اَنْ
يَّتَوَضَّأَ فِيْهِ اِلَّا فِيْ مَوْضِعِ الدُّخُوْلِ اَوِ الْخُرُوْجِ وَكَذَا عَيْنُ الْمَآءِ اِذَا كَانَ خَمْسًا فِيْ
خَمْسٍ وَكَانَ الْمَآءُ يَخْرُجُ مِنْهَا اِنْ كَانَ يَتَحَرَّكُ الْمَآءُ حَرَكَةً مِنْ جَانِبِهِ وَهُوَ
يَسْتَعِيْنُ بِالْحَرَكَةِ يَجُوْزُ الْوُضُوْءُ فِيْهَا وَقَالَ الْقَاضِيْ الْاِمَامُ فَخْرُ الدِّيْنِ اِنَّ هٰذَا
التَّقْدِيْرُ غَيْرُ لَازِمٍ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اِنْ خَرَجَ الْمَآءُ الْمُسْتَعْمَلُ مِنْ سَاعَةٍ لِكَثْرَتِهِ
وَقُوَّتِهِ يَجُوْزُ وَاِلَّا فَلَا.

**ژباړه:** یو غټ تالاب دی چي په هغه کي ګندګی پرته وه نو بیا په اوبو سره ډک سو او هیڅ ګندګي په دې اوبو سره نه ووتل نو وایي چي نجس دی او دا یې هم ویلي دي چي نجس نه دی، د مشائخو بخارا عمل په دغه دی او دا یې په ذخیره کي ذکر کړي دي.

که اوبه د یو کوچني تالاب په یو طرف کي داخلي سي په دې حال کي چي د دې کوچني تالاب اوبه نجسي سوي وي او دوهم طرف ته ووزي، ابوبکر اعمش رضي الله عنه په دې په باره کي ویلي دي چي د تال په ډول ترهغه وخته پوري چي د هغه مقدار څخه درې واره اوبه نه ووزي نه پاکیږي کله چي د تالاب په مقدار اوبه نه ووزي او دغه قول صدور الشهید هم اختیار کړی دی.

یو کوچنی تالاب دی چي د یوه طرف څخه اوبه داخلیږي او د بل طرفه څخه وزي

نو يوڅا په دې کي اودس وکړ او مستعملي اوبه په دې کي ولوېږي که چېري تالاب څلور په څلور يا د دې څخه کم وي نو جائز دی ولي چي دغه ظاهره ده چي مستعملي اوبه په خپل مثل کي نه درېږي بلکي د چکر وهلو وروسته وزي نو دا د جاري اوبو په ډول سوې، که چېري تالاب د دې څخه لوی وي نو نه دی جائز ولي چي مستعملي اوبه په دې کي درېږي نو دا د جاري اوبو په ډول نه دي لهٰذا اودس د دې څخه نه دی جائز مګر دا د دننه راتلو او د وتلو په ځای کي يې وکړي.

دغه ډول د چيني اوبه که چېري پنځه په پنځه کي وي او اوبه وزي که اوبه د يوه طرفه څخه حرکت وکړي نو هغه مدد اخلي پر حرکت باندي نو په دې کي اودس جائز دی، قاضي امام فخرالدين رحمه الله ويلي دي چي دا انداز د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز لازم دی که چېري اوبه د کثرت او د قوت د وجي څخه هغه وخت وزي نو جائز دی که ي نو نه دی جائز.

تشريح: په لحاظ سره غټ تالاب وي مګر وچ سوی وي او په هغه کي ګندګي وي نو کله چي دا تالاب د اوبو څخه ډک سي د ځينو علماؤ په نز د اوبو اتصال د نجاست سره کيدو په وجه ټوله تالاب نجس سو او په دې سره اودس نه دی جائز او مشائخو د بخارا په ذخيره کي د عدم نجاست فتوٰی کړي ده مګر د دې په باره کي ځيني علماء مثلاً د قاضي خان وغيره څخه دا قول صحيح معلومېږي که چېري اوبه د هغه طرف څخه تالاب ته داخلي سي په کوم طرف کي چي ګندګي پرته وي نو دا اوبه د کثرت څخه تر مخه د اتصال سره پخپله نجسي سوې اوس چي دا څومره کثرت اختياره وي مرداري دي مګر که چېري اوبه د هغه طرف څخه داخلي سي په کوم طرف چي نجاست نه وي او قبل از اتصال نجاست اوبه لس په لس کي ورسېږي نو نجسي نه دي، که د يو کوچني تالاب اوبه نجسي سي نو د دې د طهارت په باره کي د فقهاؤ په مابينځ کي اختلاف دی.

ابوبکر بن سعید الاعمش رحمه الله کوچنی تالاب په لوښي قیاس کولو سره ویلي دي لکه څنګه چي د یوه لوښي د طهارت په حاصلولو لپاره درې واره یې پرېولل ضروري دی، ځینو د موجودو نجسو اوبو په مقدار د یو وار ایستلو حکم کړی دی او ابو جعفر هندواني ویلي دي چي کله اوبه د یوه طرفه څخه داخلي او بل طرف ته ووزي نو پاکیږي مګر د ابوبکر سعید الاعمش رحمه الله په قول کي د زیات احتیاط په وجه په دغه باندي عمل کول پکار دي، د کوچني تالاب په احکامو کي په کورو کي د موجوده دورپه ټینکیانو هم قیاس کولی سي ولي چي د دوی څخه موجودي نجسي اوبه را وباسي درې واري یې پرېولي نو پاکیږي.

التَّوَضُّؤُ بِالثَّلْجِ إِذَا كَانَ ذَائِبًا بِحَيْثُ يَتَقَاطَرُ عَلَى الْعُضْوِ يَجُوزُ وَلَا يَتَيَمَّمُ وَإِلَّا يَتَيَمَّمُ حَوْضٌ صَغِيرٌ كَرَى رَجُلٌ مِّنْهُ نَهْرًا وَأَجْرَى الْمَاءَ فِيهِ فَتَوَضَّأَ مِنْ ذٰلِكَ النَّهْرِ جَازَ وُضُوْءُهُ وَإِنِ اجْتَمَعَ ذٰلِكَ الْمَاءُ فِي مَوْضِعٍ اٰخَرَ وَكَرَى رَجُلٌ مِّنْهُ نَهْرًا فَأَجْرَى الْمَاءَ فِيهِ فَتَوَضَّأَ مِنَ النَّهْرِ جَازَ وُضُوْءُ الْكُلِّ إِذَا كَانَ بَيْنَ الْمَكَانَيْنِ مَسَافَةٌ وَإِنْ قَلَّتْ ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيطِ.

**ژباړه:** په یخي سره اودس هغه وخت جائز دی چي کله نرم او ویلي سي په اندام قطره قطره توی سي نو په دې حالت کي دي تیمم نه وهي که چېري داسي نه وي نو دي تیمم ووهي.

د یو کوچني تالاب څخه که یوچا واله ویسته او په هغه کي یې اوبه جاري کړي نو د دې والې څخه یې اودس وکړ اودس یې جائز دی که چېري دا اوبه په بل ځای کي جمعه سي او د دوی سره یوه واله جوړه کړي او په دې کي اوبه جاري کړي نو د ټولو اودس جائز دی په دې شرط چي د دواړو په مابینځ کي لږ فاصله وي که څه هم کمه

وي، دا په محیط کي مذکور دي.

**تشریح:** که چېري په یخي کي دومره نرمي وي چي اودِس په اندامو باندي قطره قطره توايږي یا په اندام سره مښلو سره اوبه سي نو په دې سره اودس جائز دی ولي چي دا خالص اوبه دي، که د یخ د وجي د دې یخو اوبو څخه د مرض د زیاتېدو یا د هلاکیدو خطره نه وي او په استعمال یي قدرت وي نو د دې نرمی یخی په موجودګي کي تیمم نه دی جائز البته که چېري دېر زیات سخت وي نه د قطرې په شان بهیږي او نه په اندام باندي په مښلو سره د اوبو په مثل اندام لنده وي نو په دې صورت کي دي تیمم ووهي.

که د کوچني تالاب څخه یوچا واله ویسته د تالاب اوبه یي په دې نهر کي جاري کړي نو اودس د اوبو د جاري په حکم کي سوی دی په دوی سره اودس جائز دی، دغه طرح که چېري د دې نهر څخه بل نهر یو چا ویستی نو په هغه باندي اودس جائز دی ولي د اول تالاب څخه اوبه چي کله د جاري په حکم کي دي نو ناپاکي نه دي نو د دې اوبو دوهم وار بل ځای درېدل د پاکو اوبو درېدل دي.

وَفِي نَوَادِرِ اَبِي الْمُعَلّٰى عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ مَآءُ الْحَمَامِ بِمَنْزِلَةِ الْمَآءِ الْجَارِىْ حَتّٰى اِذَا اَدْخَلَ رَجُلٌ يَدَهٗ فِيْهِ وَفِيْ يَدِهٖ قِذْرٌ لَمْ يَتَنَجَّسْ وَاخْتَلَفَ الْمُتَاَخِّرُوْنَ فِيْ بَيَانِ هٰذَ الْقَوْلِ قَالَ بَعْضُهُمْ مُرَادُهٗ حَالَةٌ مَخْصُوْصَةٌ وَهُوَ مَا اِذَا كَانَ الْمَآءُ يَجْرِىْ مِنَ الْاَنْبُوْبِ اِلٰى حَوْضِ الْحَمَّامِ وَالنَّاسُ يَغْتَرِفُوْنَ مِنْهُ غُرْفًا مُتَدَارِكًا وَمِنْهُمْ مَّنْ قَالَ هُوَ عِنْدَهٗ بِمَنْزِلَةِ الْمَآءِ الْجَارِىْ عَلٰى كُلِّ حَالٍ لِاَجْلِ الضَّرُوْرَةِ اَلَا يَرٰى اَنَّ الْحَوْضَ الْكَبِيْرَ الْحَقِّ بِالْمَآءِ الْجَارِىْ عَلٰى كُلِّ حَالٍ لِاَجْلِ الضَّرُوْرَةِ وَلَوْ اَدْخَلَ الْجُنُبُ يَدَهٗ فِيْ

حَوْضِ الْحَمَامِ لِطَلَبِ الْقَصْعَةِ وَلَيْسَ عَلٰى يَدِهٖ نِجَاسَةٌ حَقِيْقَةٌ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ يَتَنَجَّسُ مَآءُ الْحَوْضِ وَعِنْدَهُمَا الْمَآءُ طَاهِرٌ وَمُطَهِّرٌ وَهُوَ الْاَصَحُّ وَلَوْ اَدْخَلَ الْكُفَّارُ اَوِ الصِّبْيَانُ اَيْدِيَهِمْ فِى الْاِنَآءِ لَايَتَنَجَّسُ اِذَا لَمْ عَلٰى اَيْدِيْهِمْ نَجَاسَةٌ حَقِيْقِيَّةٌ وَلَوْ اَدْخَلَ الصَّبِيُّ يَدَهٗ فِى الْاِنَآءِ لَايَتَوَضَّأُ بِهٖ اِسْتِحْسَانًا وَلَوْ تَوَضَّأَ بِهٖ جَازَ حَوْضُ الْحَمَامِ اِذَا تَنَجَّسَ يَطْهُرُ اِذَا خَرَجَ مِثْلُ مَاكَانَ فِيْهِ مَرَّةً وَلَوْ اَدْخَلَ الْمُتَوَضِّأُ رَاْسَهٗ فِى الْاِنَآءِ بِنِيَّةِ الْمَسْحِ اَوْ خُفِّيْهِ يَجُوْزُ بِالْاِتِّفَاقِ وَلَايَصِيْرُ الْمَآءُ مُسْتَعْمَلاً عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَاَبِىْ يُوْسُفَ خِلاَفًا لِّمُحَمَّدٍ.

**ژباړه:** په نوادر ابو معلی کي د ابویوسفرحمه الله څخه روایت دی چي د حمام اوبه د جاري اوبو په حکم کي دي تر دې پوري که چېري یو څوک په دې اوبو کي لاس داخل کړي او په لاس کي یې کندګي وي نو نه مرداریږي د دې قول په وضاحت کي د متاخرینو علماؤ اختلاف واقع سوی دی، ځینو ویلي دي چي د دې څخه مراد خالص حالت دی او هغه دا چي کله اوبه د نهرو څخه د حمام په تالاب کي ولوېږي او خلګ د دې څخه چلې ډکه وي، نو د دوی څخه ځینو ویلي دي چي دا اوبه د ضروت په بنا باندي په هر حال کي د جاري اوبو په ډول دي ولي دوی نه ویني چي لوی تالاب په حکم کي د جاري سره لاحق دی د ضرورت په بنا باندي په هر حال کي.

که جنب انسان د جنابت په حالت کي خپل لاس د حمام په تالاب کي د لوښي پیدا کولو لپاره داخل کړي او د هغه په لاس باندي څه نجاست نه وي نو د حضرت امام ابو حنیفهرحمه الله په نز د تالاب ټولي اوبه نجسي دي او د صاحبینو په نز پاکي دي او پاکونکي دي او دا زیاته صحیح ده.

که کفار او کوچنیان خپل لاس د اوبو په لوښي کي داخل کړي نو نجسي نه دي تر هغه وخته چي د دوی په لاس باندي حقیقي نجاست نه وي، که یو کوچني خپل لاس په لوښي کي داخل کړ نو استحساناً دي په دې اودس نه کوي که چېري اودس باندي وکړي نو جائز دی .

که د حمام تالاب نجس سي نو چي په هغه کي د موجودو اوبو په مقدار دا اوبه یو وار وباسل سي نو پاکیږي ،که چېري اودس کونکی د سر د مسحي یا د موزو د مسحي په نیت خپل لاس لوښي ته داخل کړ نو بالاتفاق جائز دی، د حضرت ابو حنیفهؒ او د ابو یوسفؒ په نز نه مستعملیږي، خلافا لمحمدؒ .

**تشریح**: نن صبا د موجوده دور په بازارونو کي د حجامو په دوکانو کي د حمام انتظام وي مگر په تېرو زمانو کي د حمامونو انتظام دا ډول به وو چي د ښار د لروبر څخه به یې یو لوی نهر (واله) ایستله او د هغې لپاره به یي کوچني کوچني تالابونه جوړول چي هغه به یې د دې ولې په ذریعه سره د نهر څخه ډکوله او دا تالابونه به لس په لس کي کم وه.

اوس د دې حمامو د کوچني تالابو په باره کي د امام یوسفؒ څخه دا قول منقول دی چي دا د جاري اوبو په حکم کي دي تر دې پوري که چېري یوڅوک په دې کي په نجاست لړلی لاس داخل کړي او په دې اوبو کي د نجاست اثر نه سي ښکاره تر هغه وخته پوري دا اوبه پاکي دي .

د امام یوسفؒ د دې قول په وضاحت کي د متاخرینو علماؤ اختلاف واقع سوی دی، ځینو علماؤ د دې قول اطلاق صرف په دې صورت کي کړی دی چي کله د حمام په نهرو کي اوبه جاري وي او د دې څخه خلک پرله پسې په ډکو چلو سره اوبه اخلي نو په دې دوران کي د یوچا لاس گنده وي نو د حمام طرف ته رواني دا اوبه نه نجسي کیږي مگر د دې برخلاف ځیني فقهاء کرام وایي چي د امام

یوسف رحمه الله دا قول بغیر د څه خاص صورت څخه عام دی او دا قول ده د ضرورت په بنا کړی دی، که چېري یو سړي د لوښي پیداکولو لپاره د حمام په تالاب کي لاس داخل کړي نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نز د دې روایت په بنا باندي چي مستعملي اوبه نجسي دي د تالاب ټوله اوبه نجسي سوې، د صاحبینو په نز دا اوبه په خپل حالت باندي پاکي دي او پاکونکي دي ،دغه قول زیات صحیح دی او د مستعملو اوبو تفصلي بیان به انشاء الله العزیز د نجاست په بیان کي راسي .

که یوکوچنی په اوبو کي لاس واچوي او دا خبره یقیني وي چي د هغه لاس پاک وو نو په هغو باندي بلا تردد اودس کول جائزدی که چېري د لاس مرداریدل یقیني وي نو اودس کول نه دی جائز البته که چېري د شک په صورت کي وي او د دې بغیره هم اوبه موجودي وي نو د شک د دفعي کولو لپاره استحساناً یعني احتیاطاً دي په دې اوبو سره اودس نه کوي او که یي وکړي نو جائز دی، فقط د شک په بنا باندي اوبه نه نجسي کیږي .

# فصل في المسح علي الخفين

(دا فصل د موزو د مسحي په بيان كي دى)

اَلْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مُوْجِبٍ لِلْوُضُوْءِ اِذَا لَبِسَهُمَا عَلٰى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ وَقْتَ الْحَدَثِ فَاِنْ كَانَ مُقِيْمًا يَمْسَحُ يَوْمًا وَّلَيْلَةً وَاِنْ كَانَ مُسَافِرًا يَمْسَحُ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّلَيَالِيْهَا وَابْتِدَاۤؤُهَا عَقِيْبُ الْحَدَثِ وَلَايُعْتَبَرُ وَقْتُ الطَّهَارَةِ وَلَا وَقْتُ اللُّبْسِ وَلَوْ غَسَلَ رِجْلَيْهِ وَلَبِسَ خُفَّيْهِ ثُمَّ اَكْمَلَ الطَّهَارَةَ قَبْلَ اَنْ يَّحْدِثَ جَازَ الْمَسْحُ عَلَيْهِمَا عِنْدَ نَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ لِاَنَّ عِنْدَنَا يَكْفِيْهِ اَنْ يَّكُوْنَ الْخُفُّ مَلْبُوْسًا عَلٰى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ عِنْدَ اَوَّلِ الْحَدَثِ وَالطَّهَارَةُ النَّاقِصَةُ هِيَ طَهَارَةُ صَاحِبِ الْعُذْرِ حَتّٰى اَنَّ الْمُسْتَحَاضَةَ وَمَنْ فِيْ مَعْنَاهَا اِذَا تَوَضَّاَتْ وَلَبِسَتْ خُفَّيْهِ قَبْلَ اَنْ يَّظْهَرَ مِنْهَا شَيْءٌ كَالْاَصِحَّاۤءِ وَلَوْ لَبِسَتْ بِطَهَارَةِ الْعُذْرِ تَمْسَحُ فِي الْوَقْتِ فَقَطْ عِنْدَنَا وَعِنْدَ زُفَرَ تَمْسَحُ تَمَامَ الْمُدَّةِ.

**ژباړه:** د بې اودسۍ څخه په موزو باندي مسح جائز ده د هر هغه بې اودسۍ څخه چي د اودس واجب كونكى وي چي په وخت د طهارت كامله په پښوسي، كه مقيم سړى وي نو يوه ورځ او يوه شپه به مسح كوي او كه مسافر وي نو درې ورځي او درې شپې به مسح كوي، د مسح ابتداء د بې اودسۍ وروسته ده نه د وخت څخه د طهارت او نه د په پښو كولو وخت معتبر دى.

كه پښې پرېولي او موزې واغوندي د هغه وروسته طهارت كامل كړي او د هغه څخه د مخه بې اودسه سي نو جائز دى په خلاف د امام شافعي رحمه الله ولي چي زموږ

په نز دا کافي دی چې موزې د اول حدث په وخت د طهارت کامله په وخت
پښوسي او طهارت ناقصه خو د صاحب عذر دی يعني که چېرې مستحاضه يا
هغې په مثل بل معذو کله چې اودس وکړي او موزې واغوندي تر دې ترمخه چې
هغه څخه يو شی ظاهر سي نو د تندرسته په ډول دي مسح وکړي او که چېرې
طهارت د عذر سره يې په پښو کړي وي نو زموږ په نز صرف په هغه وخت کي دې
مسح وکړي او د امام زفر رحمه الله په نز د کاملِ مدت مسح دي وکړي.

**تشريح:** مصنف رحمه الله د اوبو د احکاماتو د فراغت څخه وروسته په موزو د مسح
کولو بيان کوي په موزو باندي مسح د معتبرو حديثونه څخه ثابته ده، امام حسن
بصري رحمه الله به ويل چې اويا صحابه کرامو رضي الله عنهم ماته بيان کړی دی چې عليه السلام
په موزو مسح کوله، امام کرخي رحمه الله وايي چې څوک په موزو باندي مسحي ته جائز
نه وايي ماته د هغه د کافر کېدلو ويره او خوف دی.

امام احمد بن حنبل رحمه الله وايي چې په موزو باندي د مسح په جواز کي ماته هيڅ
شک نسته ولي چې د عليه السلام څخه په دې باره کي څلويښت حديثونه مروي
دي، د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله څخه چا د اهل السنت والجماعت د مذهب په
باره کي پوښتنه وکړه نو ده ورته وويل چې فضيلت د شيخينو يعني د ابوبکر او عمر
رضي الله تعالی عنهما فضيلت پر ټولو صحابهٔ باندي او د زومانو يعني د حضرت
عثمان وعلي رضی الله تعالی عنهما محبت په زړه کي ساتل، او دا چې ته دي په
موزو باندي د مسحي قائل يي ولي ستا تعلق د اهل سنت والجماعت سره دی
چونکي په موزو باندي د مسحي ثبوت د حديثو څخه دی، د دې لپاره مصنف رحمه الله
ويلي دي جائز بالسنة او په موزو باندي مسح په داسي حدث کي کېدی سي په کوم
حدث سره چې اودس واجب کيږي نه لکه غسل، احتلام، حيض، ونفاس وغيره او
داهم ضروري نه ده چې د موزو اغوستلو په وخت کي طهارت کامله وي مثلاً چا د

اودس کولو په وخت کي تر ټولو اول پښي پريولې او د يخ د وجي څخه د کامل اودس کولو ترمخه يې موزې واغوستي او وروسته يې اودس مکمل کړ نو د حدث لاحق کېدو سره په دې موزو مسح کول جائز ده .

د مقيم لپاره د مسحي مده څلورويشت (۲۴) ساعته ده، او د مسافر لپاره دوو اويا (۷۲) ساعته ده، مګر دا مده د بې اودسه کېدو څخه شمارل کيږي يعني که چېري چا د سهار د لمانځه لپاره اودس وکړ او دغه اودس يې وي او ماپښين لمونځ يي هم په دغه اودس سره وکړ وروسته يې موزې واغوستي او د ماځيګر په وخت کي حدث ورته لاحق سو نو که چېري مقيم وي نو د را روان ماځيګره پوري مسح کولای سي او که چېري مسافر وي نو تردرو ورځو او د درو شپو پوري مسح کولی سي، په مسح کي د انسان د اخري وخت اعتبار دی مثلاً چا په خپل وطن کي موزې واغوستي مسح يې شروع کړه مګر د مدې مسح يوه ورځ او شپه ختمېدل ترمخه مسافر سو نو د درو ورځو پوري مسح کولای سي .

که مسافر په حالت کي د سفر مسح شروع کړه او وروسته بيا مقيم سو نو که چېري يې يوه ورځ او شپه مسح کړي وي نو په را روان اودس کي دي موزې وکاږي پښې دي پريولي او که څلورويشت ساعته نه وه پوره نو پوره کوی يې سي .

وَلَايَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ وَالرَّجُلُ وَالْمَرْاَةُ فِيْهِ سَوَآءٌ وَالْمَسْحُ عَلٰى ظَاهِرِهِمَا دُوْنَ بَاطِنِهِمَا وَيَسْتَحِبُّ اَنْ يَّكُوْنَ الْمَسْحُ خُطُوْطًا بِالْاَصَابِعِ وَاَنْ يَّبْدَءَ مِنْ قِبَلِ الْاَصَابِعِ وَيَمُدُّ اِلَى السَّاقِ اِعْتِبَارًا بِالْغُسْلِ وَفَرْضُ ذٰلِكَ مِقْدَارُ ثَلٰثَةِ اَصَابِعِ الْيَدِيْنِ وَلَوْ وَضَعَ يَدَيْهِ مِنْ قِبَلِ السَّاقِ وَمُدَّهُمَا اِلٰى رُءُوْسِ الْاَصَابِعِ جَازَ وَلَوْ مَسَحَ بِثَلٰثَةِ اَصَابِعَ مَوْضُوْعَةً غَيْرَ مَمْدُوْدَةٍ يَجُوْزُ وَلَوْ مَسَحَ عَلَيْهِمَا عَرْضًا

جَازَ وَلٰكِنْ يَكُوْنُ مُخَالِفًا لِلسُّنَّةِ فِيْ جَمِيْعِ ذَالِكَ.

**ژباړه**: د هغه سړي لپاره په موزو مسح نه ده جائز پر چا چي غسل واجب وي، سړی او ښځه په دي مسح على الخفين كي سره برابر دي ، مسح د موزو د لاندني حصي څخه علاوه په ظاهر يعني پورته حصه باندي ده او مستحب دی چي مسح د ګوتو خطوط چي درې دي او دا چي د ګوتو د طرفه څخه يې شروع کړي د پنډيو طرف ته يې کش کړي د پرېوللو په اعتبار کولو سره .

فرض مقدار د لاس په ګوتو کي درې ګوتي دي که چېري د پنډيو له طرفه څخه لاس د ګوتو وخوا ته کش کړي نو جائز دی که صرف درې ګوتي بغير د کشولو کښېږدي نو جائز دی، او که په پراخوالي يي مسح وکړه نو هم جائز ده مګر دا ټوله صورتونه د سنت خلاف دي.

**تشريح**: په موزو مسح صرف هغه وخت جائز ده چي كله څه داسي حدث نه وي لاحق په کوم سره چي غسل واجبيږي لکه څنګه چي د صفوان بن غسال رضی الله تعالى عنه څخه روايت دی چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم موږ ته ويلي وه چي كله موږ په سفر کي يو نو درې ورځي او شپې موزي مه کاږئ مګر دا چي تاسي په حالت کي د جنابت ياست .

نارينه او ښځي د مسحي په حکم کي سره برابر دي يعني څه ډول چي د نارينهوو لپاره په موزو باندي مسح کول جائز ده بالکل دغه ډول ښځه هم کولای سي ولي چي دا حکم عام دی د نارينهوو سره د دې هيڅ تخصيص نسته، مسح د موزو په پورتنی حصه کيږي لکه څنګه چي حضرت علی رضی الله عنه په ويل که چېري د دين احکام صرف د عقل تابع وای نو عقلاً د موزو په لاندنی حصې باندي مسح کول بهتر دي مګر ما رسول الله ﷺ ليدلی وو چي د موزو د لاندنی حصې پر ځای به يې په پورته حصه

باندي مسح کوله .

په موزو باندي د مسحي فرض مقدار د لاس درې ګوتي دي که چېري صرف درې ګوتي کښېږدي او د اېښوولو سره د پنډيو طرف ته يې کش کړي يا د ورغوو سره پوره يي کښېږدي نو په دې کي هيڅ مضائقه نسته ، د ځينو علماؤ دا خيال دی چي ګوتي د ايښوولو وروسته ممسوح کيږي اوس د کشولو سره هيڅ فائده نه کيږي، بهر حال په مکمل طور باندي د درو ګوتو ايښوولو سره د مسحي فرض مقدار ادا کېږي البته که چېري څوک د پنډۍ د طرفه څخه مسح شروع کړي يا عرضاً يعني د قدم په پراخواله باندي درې ګوتي کښېږدي نو د فرض مقدار پوره کېدلو په وجه مسح کيږي مګر د عليه السلام څخه داسي هيڅ روايت نه کېدو په وجه په دې کي د سنت مخالفت دی لکه څنګه چي د اودس شروع د پښو له طرفه څخه وکړي .

وَكَيْفِيَّةُ الْمَسْحِ اَنْ يَّضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى مُقَدَّمِ خُفَّيْهِ وَيُجَافِيْ بَطْنَ كَفَّيْهِ وَيَمُدُّهُمَا اِلَى السَّاقِ اَوْ يَضَعَ كَفَّيْهِ مَعَ الْاَصَابِعِ وَيَمُدُّهُمَا اِلَى السَّاقِ جُمْلَةً وَلَوْ مَسَحَ بِرُءُسِ الْاَصَابِعِ وَجَافٰى اُصُوْلَ الْاَصَابِعِ وَالْكَفَّ لَايَجُوْزُ اِلاَّ اَنْ يَّكُوْنَ الْمَآءَ مُتَقَاطِرًا وَالْمُسْتَحَبُّ اَنْ يَّمْسَحَ بِبَاطِنِ كَفَّيْهِ وَلَوْ مَسَحَ بِظَاهِرِ كَفَّيْهِ يَجُوْزُ وَلَوْ مَسَحَ بِرُءُوْسِ الْاَصَابِعِ عَلٰى بَطْنِ خُفَّيْهِ اَوْ مِنْ قِبَلِ الْعَقِبَيْنِ اَوْ مِنْ جَوَانِبِهِمَا لَايَجُوْزُ.

**ژباړه:** د مسحي طريقه داده چي د موزو په اولني طرف به لاس کښېږدي او ورغوی د موزو څخه پورته کښېږدي او د پنډيو وطرف ته به يې کش کړي يا دواړه لاسونه دي د ګوتو د سرو سره کښېږي د پنډيو طرفه ته دي کش کړي ، که چېري صرف د ګوتو په سرو سره بغير پوره ګوتو د ورغوو مسح يي وکړه نو جائز ده مګر دا چي اوبه به يي د ګوتو د سرو سره مسلسلي څاڅکی څاڅکی بهيږي .

مستحب داده چي د لاسو د لاندني حصې څخه مسح وکړل سي او که چېري د پورته طرف سره وکړي نو جائز ده که د ګوتو په سروسره يې د موزو د لاندني حصې وطرف ته يا د پونډيو و طرف ته په کنارو مسح وکړه نو جائز نه ده .

**تشريح**: په موزو د مسح کولو مسنونه طريقه داده چي د راسته لاس ګوتي په راسته موزو کښيږدي دغه ډول د چپه لاس ګوتي په چپه موزي کښيږدي مسح يې کړي، د مصنف رحمه الله په متن کي د يَدَين څخه مراد د لاس ګوتي دي، که فقط د ګوتو سرونه په موزو باندي کښيښودل سي نو مسح صرف په هغه صورت کي جائز ده چي ګوتي دومره لندې وي چي مسلسلي اوبه څيني بهيږي ولي په دې صورت که څه هم اول وار په ګوتو ايښوولو سره مستعمل کيږي مګر دوهمه قطره غير مستعمل کيږي نو فقط د ګوتو د سرونو په کشولو سره د درو ګوتو مقدار فرض مسح پوره کيږي مګر که چېري د اوبو د قطرو تسلسل نه وي نو د ګوتو سرونه کشول بې معنی دی، که په موزو باندي د پورته پر ځای د لاندي طرفه څخه يا د پښو د دواړو کنارو له طرفه څخه مسح وکړل سي نو نه ده جائز، ولي چي دا د احاديثو مشهوره وو څخه نه ده ثابته .

وَذَكَرَ فِي الْمُحِيْطِ لَوْ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ خُفَّيْهِ بِبَلَّةٍ بَقِيَتْ عَلٰى كَفَّيْهِ بَعْدَ الْغُسْلِ يَجُوْزُ وَلَوْ مَسَحَ رَأْسَهُ ثُمَّ خُفَّيْهِ بِبَلَّةٍ بَقِيَتْ عَلٰى كَفَّيْهِ بَعْدَ الْمَسْحِ لَايَجُوْزُ وَلَوْ لَمْ يَمْسَحْ عَلٰى خُفَّيْهِ وَخَاضَ فِي الْمَآءِ لَابِنِيَّةِ الْمَسْحِ اَوْمَشٰى فِي الْحَشِيْشِ الْمُبْتَلِّ بِالْمَآءِ اَوْ بِالْمَطَرِ يَجْزِيْهِ وَكَذَا اِذَا اَصَابَهُ الْمَطَرُ يَنُوْبُ عَنِ الْمَسْحِ وَلَايَحْتَاجُ اِلَى النِّيَّةِ فِيْ مَسْحِ الْخُفِّ خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ وَفِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ لَايَجْزِيْهِ لِاَنَّهُ خَلَفٌ كَالتَّيَمُّمِ .

**ژباړه**: په محيط کي ذکرسوي دي که يو سړی اودس وکړي او په موزو باندي په

هغه لندوالي سره مسح وکړي کوم چي د پرېوللو وروسته په لاسو باندي باقي وي نو مسح يې جائز ده، که چېري د سر د مسح کولو وروسته په باقي لندوالي باندي يې د موزو مسح وکړه يا يې د موزو د مسحي د نيت بغير په اوبو کي غوټه ووهله، په ونو کي چي په اوبو يا په باران لانده وي روان سو او په هغه باران ؤسو نو دا د مسحي قائم مقام دي ،او د موزو په مسح کي د نيت ضرورت نسته، خلافا للشافعي رحمه الله او په ځينو رواياتو کي راغلي دي چي کافي نه ده ولي چي مسح د تيمم په ډول نائبه ده .

**تشريح:** مصنف رحمه الله دلته د محيط کتاب په حواله ورکولو سره دا مسئله ښه يي چي د اودس کولو وروسته په لاس موجودي اوبه د موزو د مسحي لپاره کافي دي د نوو اوبه اخيستل ضروري نه دي ولي چي دا اوبه غيري مستعملي دي او په دې سره طهارت حاصلول جائز دي البته که چېري د مسحي وروسته په لاسو باندي نيمي اوبه موجودي وي او په دې سره د موزو مسح وکړي نو جائز نه ده د دې لپاره چي اوس دا نيمي مستعملي سوي دي ، په دې سره دوهم وار طهارت نه حاصل کيږي، د احنافو او شوافع رحمهم الله تعالی په مابينځ کي دا مسئله مختلف فيه ده چي د موزو په نيت کي د مسحي نيت کول ضروري دي .

چونکي د امام شافعي رحمه الله حافظ محمد بن ادريس رحمه الله په نز د اودس لپاره هم نيت فرض دی نو د موزو مسح د اودس يو جز دی د دې لپاره په دې کي هم نيت ضروري دی بنا پر دغه باندي، که چېري څوک بغير د نيت څخه په لندو وښو روان سي يا په موزو باندي باران وسي نو د دوهم وار مسح کولو ضرورت نسته، زموږ په نز د موزو بغير د نيته لندېدل د مسحي په ځای کافي دي، په ځينو شاذ او نادر رواياتو کي د احنافو علماؤ څخه د غير جواز قول نقل دی چي هغه قابل د التفات نه دي .

وَمَنْ اِبْتِدَاءِ الْمَسْحِ وَهُوَ مُقِيْمٌ فَسَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ مَسَحَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّلَيَالِيْهَا وَمَنِ ابْتَدَءَ الْمَسْحَ وَهُوَ مُسَافِرٌ ثُمَّ اَقَامَ اِنْ كَانَ مَسَحَ يَوْمًا وَّلَيْلَةً اَوْ اَكْثَرَ يَلْزِمُهُ نَزْعُهُمَا وَغَسْلُ رِجْلَيْهِ وَاِنْكَانَ مَسَحَ اَقَلَّ مِنْ يَّوْمٍ وَّلَيْلَةٍ اَتَمَّ مَسْحَ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ وَمَنْ لَبِسَ الْجَرْمُوْقَ فَوْقَ الْخُفِّ قَبْلَ اَنْ يَّمْسَحَ عَلَى الْخُفَّيْنِ مَسَحَ عَلَيْهِ فَاِنْ اَحْدَثَ ثُمَّ لَبِسَ الْجَرْمُوْقَيْنِ لَايَمْسَحُ عَلَى الْجَرْمُوْقَيْنِ وَلَوْنَزَعَ اَحَدَ الْجَرْمُوْقَيْنِ فَلَهُ اَنْ يَّنْزِعَ الْاٰخَرَ وَيَمْسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ.

**ژباړه:** يو چا د مقيم والي په حالت کي مسح شروع کړه، بيا د يوې ورځي او شپې تېرولو څخه ترمخه مسافر سو نو دى دي درې ورځي او شپې مسح وکړي، او چا شروع وکړه په داسي حالت کي چي هغه مسافر وو بيا وروسته مقيم سوکه چېري يوه ورځ او شپه يا زيات يي مسح کړي وي نو په هغه باندي د موزو ايستل او د پښو پرېولل لازم دي که چېري د يوې ورځي او شپې څخه کم يې مسح کړې وي نو دي يوه ورځ او شپه پوره کړي، يوچا په موزو باندي د مسح کولو څخه ترمخه جرموقين واغوستلي نو په دې جرموقينو باندي مسح کولاى سي که چېري د بې اودسه کېدلو وروسته يي جرموقين په پښو کړي نو په جرموقينو باندي مسح نسي کولاى، او که يو جرموق يي ويستی نو هغه ته ښکار ده چي دوهم هم وباسي او پر موزو باندي مسح وکړي.

**تشريح:** هر څوک چي په حالت کي د اقامت په موزو باندي مسحه وکړي نو چونکي د مقيم لپاره د مسحي مده يوه ورځ اوشپه يعني ۲۴ ساعته ده، که د دې مدې د ختمېدو ترمخه مسافر سي نو د حالتِ سفر مده تر درو ورځو او شپو پوري دی په موز باندي مسح کولای سي، احناف رحهم الله تعالی وايي چي کوم احکام د

وخت سره متعلق وي په هغوی کي د اٰخري وخت اعتبار کيږي لکه څنګه چي څوک د لمانځه په اٰخري وخت کي مسافر وي او په اول وخت کي مقيم وي نو د اٰخري وخت په اعتبار کولو سره به په لمانځه کي قصر کوي مګر که چيري يو مسافر راسي مقيم سي نو دي وکتل سي که چيري يوه ورځ او شپه يي مسحه کړي وي نو اوس د موزو ايستل او د پښو پرېولل فرض دي که يوه ورځ او شپه نه وي پوره نو مده پوره کولای سي.

که چا پر موزو سربېره جرموقين واغوستلي جرموق په موزو سربېره د حفاظت لپاره اغوستل کيږي نو په دې جرموق باندي زموږ په نز مسح کول درسته ده او د امام مالک او شافعي رحمهم الله تعالی په نز نه ده درسته، البته که چيري د موزو اغوستلو څخه ترمخه څوک بې اودسه سي نو اوس په جرموق زموږ په نز مسحه نه ده درسته، دغه ډول که يو جرموق يې خپله ويستی يا بلا اختياره ووتی نو صرف د يوه مسحه نه ده درسته بلکي دواړه دي وباسي او په موزو دي مسحه وکړي.

وَلَايَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَرْمُوْقَيْنِ الْمُنْخَرِقَيْنِ وَاِنْ كَانَ خُفَّاهُ غَيْرَ مُنْخَرِقَيْنِ وَكَذَا لَايَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلٰى خُفٍّ فِيْهِ خِرْقٌ كَبِيْرٌ مَاتَبَيَّنَ مِنْهُ مِقْدَارُ ثَلٰثِ اَصَابِعِ الرِّجْلِ فَاِنْ كَانَ اَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ جَازَ وَاِنْ كَانَ الْخِرْقُ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ قَدْرَ اِصْبَعَيْنِ فِيْ مَوْضِعٍ اَوْفِيْ مَوْضِعَيْنِ وَفِي الْاٰخَرِ قَدْرَ اِصْبَعٍ وَاحِدٍ جَازَالْمَسْحُ وَاِنْ كَانَ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ يُجْمَعُ فَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ وَيَشْتَرِطُ ظُهُوْرُ الْاَصَابِعِ بِكَمَالِهَا وَلَوْ ظَهَرَ الْاِبْهَامُ وَهِيَ مِقْدَارُ ثَلٰثِ اَصَابِعَ مِنْ غَيْرِهَا جَازَ وَلَوْ كَانَ طُوْلُ الْخِرْقِ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ ثَلٰثِ اَصَابِعَ وَانْفِتَاحُهُ اَقَلُّ مِنْ ذٰلِكَ لَايَمْنَعُ جَوَازَ الْمَسْحِ وَكَذَا لَوِانْفَتَقَ خِرْزُهُ اِلَّا اَنَّهُ لَايُرٰى

شَيْءٌ مِنْ قَدَمِهِ يَجُوْزُ وَلَوْ كَانَ يَبْدُوْ حَالَةَ الْمَشْيِ وَلاَيَبْدُوْ حَالَةَ الْوَضْعِ يَمْنَعُ كَ ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَاِنْ كَانَ عَلَى الْعَكْسِ لاَيَمْنَعُ الْمَسْحَ وَالْخِرْقُ اِذَا كَانَ فَوْقَ الْكَعْ لاَيَمْنَعُ.

**ژباړه**: په څيري سوو جرموقينو باندي مسحه نه ده جائز که څه هم موزې جوړې وي دغه ډول په هغو موزو باندي مسحه نه ده جائز چي دومره زياتي څيري وي چي د پښو د درو ګوتو په مقدار وي، اوکه د دې څخه کم وي نو جائز ده، که څيروالی په يوه موزه کي يو ځای يا دوه ځايه وي د دوو ګوتو په مقدار او په بلي کي د يوې ګوتي په مقدار وي نو مسح جائز ده که په يوه موزه کي دومره څيروالی وي نو مسحه نه ده جائز، د ګوتو په مکمل طور ښکاره کېدل په عدم جواز کي شرط دی که چېري صرف يوه ګوته ښکاره سي چي د دې علاوه د درو ګوتو برابر وي نو بيا هم مسحه جائز ده .

که د څيروالي اوږدوالی د درو ګوتو د مقدار څخه زيات وي او پراخوالی يې د دې څخه کم وي نو د مسحې په جواز کي مانع دی، دغه ډول که د موزو سپينې ووزي مګر دننه د قدم هيڅ حصه هم په نظر نه راځي نو مسحه جائز ده، که د تګ په وخت کي ښکاره کيږي او د ايښوولو په حالت کي نه ښکاره کيږي نو مسحه جائز ده دغه ډول په محيط کي ذکر دي، که چېري برعکس وي نو مسحه جائز نه ده او څيروالی که چېري د پوندو له طرفه څخه وي نو مسح جائز ده .

**تشريح**: که د موزو څخه علاوه صرف جرموقين څيري وي نو بيا هم مسحه نه ده جائز ولي چي دا حکمًا داسي دی لکه موزې چي څيري وي دغه ډول که چېري موزې په داسي مقدار کي څيري وي چي کم از کم د پښي د کوچنۍ ګوتي سره درې ګوتي ښکاره سي نو مسحه نه ده جائز، مګر که چېري د دې درو ګوتو مقدار په دواړو

موزو کي په مختلو ځايو کي پوره کيږي نو مسحه جائز ده البته که چېري په يوه موزه کي په مختلف ځايو باندي وي نو نه ده جائز .
دغه ډول که چېري موزې د بجلکو پورته څيري وي نو بيا هم مسحه جائز ده ولي چي د پښو پرېولل تربجلکو پوري دي دغه ډول مسح هم ده، نو د بجلکو څخه پورته که چېري بالکل موزې نه وي نو بيا هم مسح کول جائز دي .

وَإِنْ اَرَادَ اَنْ يَّخْلَعَ خُفَّيْهِ فَنَزَعَ الْقَدَمَ مِنَ الْخُفِّ غَيْرَ اَنَّ الْقَدَمَ فِي السَّاقِ بَعْدُ اِنْتَقَضَ مَسْحَهُ وَاِنْ نَزَعَ الْقَدَمَ عَنْ مَكَانِهِ رُوِيَ عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اِذَا خَرَجَ اَكْثَرَ الْعَقِبِ عَنْ عَقِبِ الْخُفِّ اِنْتَقَضَ الْمَسْحُ وَفِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ اِذَا صَارَ بِحَالٍ تَعَذَّرَ الْمَشْيُ الْمُعْتَادُ مَعَهُ اِنْتَقَضَ وَفِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ اَيْضًا اَلْمُعْتَبَرَانِ بَقِيَ فِيْ مَوْضِعِ قَرَارِ الْقَدَمِ مِقْدَارُ ثَلٰثِ اَصَابِعَ لَايَنْتَقِضُ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ وَبِهِ اَخَذَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ.

**ژباړه**: که يې اراده وکړه چي موزې وکاږي نو پښه يې ځيني ويستله مګر موزې په بجلکو کي وي نو مسحه يې ماته سوه او که د پښې يوڅه حصه يې د خپل ځای څخه ويستله نو د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت سوی دی چي کله اکثره پونده د موزې د پوندي څخه وباسي نو مسحه ماته سوه او په ځينو رواياتو کي دي چي کله داسي وسي چي د عادت مطابق تګ مشکل سي نو اودس مات سو او په ځينو رواياتو کي دي چي کله قدم په مواضع قرار کي د درو ګوتو په مقدار وي نو مسحه نه ماتيږي دا د امام محمد رحمه الله روايت دی او په دغه باندي ځينو علماؤ فتوٰی هم کړي ده .

**تشريح**: کله چي ماسح د خپل قدم څخه د موزو ايستلو نيت وکړي او خپل قدم ته

د ايستلو په غرض حرکت ورکړي مګر په مکمل طور د ايستلو څخه ترمخه يې اراده بدله سوه نو صرف د قدم په لږ حصې ايستلو سره مسحه ماته سوه که نه؟

په دې باره کي د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله د شاګردانو څخه مختلف روايات نقل سوي دي شيخ الاسلام علامه سرخسي رحمه الله ويلي دي چي کله زياته پونده د موزې د پوندي وطرف ته راسي نو مسحه ختم سوه، او حسن ابن زياد رحمه الله روايت کړی دی چي کله اکثره قدم د موزې د پوندي و طرف ته راسي نو مسح ماته سوه.

صاحب د هدايې دغه قول ته صحيح ويلي دي ولي چي اکثره د کل حکم لري او امام محمد رحمة الله تعالى عليه وايي چي کله قدم د درو ګوتو په مقدار په موزو کي پاته سي نو مسحه باقي ده ولي چي د موزو په مسحه کي د فرض مقدار د درو ګوتو برابر دی نو کله چي فرض مقدار په موزه کي باقي دی نو مسحه هم باقي ده او اکثرو علماؤ دا قول اختيار کړی دی.

وَفِيْ كِتَابِ الصَّلٰوةِ لِاَبِيْ عَبْدِ اللهِ الزَّعْفَرَانِيْ رَجُلٌ مَسَحَ عَلٰى خُفَّيْهِ ثُمَّ دَخَلَ الْمَاءَ فِيْ خُفِّهِ اِنِ ابْتَلَّ جَمِيْعُ اِحْدَى الْقَدَمَيْنِ يَنْتَقِضُ مَسْحُهُ رَجُلٌ اَخْرَجَ عَقِبَهُ مِنْ عَقِبِ الْخُفِّ اِلَّا اَنَّ مُقَدَّمَ قَدَمِهِ فِي الْخُفِّ مَوْضِعَ الْمَسْحِ لَهُ اَنْ يَّمْسَحَ مَا لَمْ يَخْرُجْ صُدُوْرَ قَدَمَيْهِ عَنِ الْخُفِّ اِلَى السَّاقِ وَذَكَرَ فِيْ بَعْضِ الْمَوَاضِعِ اِنْ كَانَ صُدُوْرَ الْقَدَمِ فِيْ مَوْضِعِهِ وَالْعَقِبُ يَخْرُجُ وَيَدْخُلُ لَا يَنْتَقِضُ مَسْحُهُ وَلَوْ كَانَ الْخُفُّ وَاسِعًا اِذَا رَفَعَ الْقَدَمَ يَرْفَعُ الْعَقِبُ حَتّٰى يَخْرُجُ الْعَقِبُ وَاِذَا وَضَعَ الْقَدَمَ عَلَى الْاَرْضِ عَادَ الْعَقِبُ اِلٰى مَوْضِعِهَا لَا يَنْتَقِضُ الْمَسْحُ وَعَنْ مُحَمَّدٍ خُفٌّ فِيْهِ فَتْقٌ وَبِطَانَةُ الْخُفِّ مِنْ خِرْقَةٍ اَوْ مِنْ غَيْرِهَا غَيْرُ مُنْفَتِقٍ مَخْرُوْزًا فِي الْخُفِّ جَازَ الْمَسْحُ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الذَّخِيْرَةِ.

**ژباړه:** د ابوعبدالله الزعفراني رحمه الله په کتاب الصلوٰة کي دي چي یو سړي په موزو باندي مسحه وکړه د دې وروسته بیا په دې موزو کي اوبه داخلي سوې نو که په دوو قدمو کي یو قدم پوره لوند سو نو مسحه ختمه سوه، که یو سړي خپله پونده د موزې د پوندي څخه ویسته مګر د قدم اولني حصه د مسحي په ځای کي وه نو د ده لپاره مسح جائز ده تر څو پوري چي د قدمونو سینې د موزو د پوندو له طرف څخه نه وي وتلي، او په ځینو ځایو کي مذکور دي چي که چېري د قدمو سینې په خپل ځای وي او پونده ځي راځي نو مسحه نه ماتیږي او که موزه لویه وي چي د قدم پورته کولو په وخت کي پونده پورته کیږي حتّی چي د موزو پونده ووزي او چي کله قدم کښیږدي بیرته خپل ځای ته راځي نو په دې سره مسحه نه ماتیږي .

د امام محمد رحمة الله تعالی علیه څخه روایت دی که چېري په موزو کي خلاص سوری وي او د موزې کانچي د استر کپړې وي یا د یو بل شي وي کوم چي نه څیرېږي او په موزه کي ګنډل سوی وي نو مسحه جائز ده، دغه ډول په ذخیره کي ذکر سوي دي .

**تشریح:** که چېري د دواړو قدمونو څخه د یوه قدم پوره یا اکثره حصه لنده سي نو دوهم قدم به هم پرېولي ولي چي د غسل او مسحي اجتماع ممنوع ده نو کله چي یو قدم لوند سو نو هغه مغسول سو او دوهم قدم ممسوح پاتیږي نو د دې لپاره نه دي جائز بلکي موزه دي وکاږي او دوهم قدم دي هم پرېولي او کله چي د اولني قدم حصه په موزه کي د درو ګوتو په مقدار باقي يي او په تنګ راتګ کي د وسعت په وجه ځي راځي نو په مسحي باندي هیڅ فرق نه راځي ولي چي فرض مقدار اوس هم په موزه کي باقي دی لکه څنګه چي تېر سوي دي، دغه ډول که په موزه کي سوری جوړ سي مګر د درو ګوتو مقدار نه سي ښکاره نو مسحه جائز ده .

وَلَايَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْعِمَامَةِ وَالْقَلَنْسُوَةِ وَالْبُرْقَعِ وَالْقُفَازَيْنِ وَيَجُوْزُ الْمَسْحُ عَ
الْجَبَآئِرِ وَنَحْوِهَا وَاِنْ شَدَّهَا غَيْرِ وُضُوْءٍ فَاِنْ سَقَطَتْ عَنْ غَيْرِ بُرْءٍ لَمْ يَبْطُلِ الْمَسْ
وَاِنْ سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ بَطَلَ الْمَسْحُ حَتّٰى لَوْكَانَ فِي الصَّلٰوةِ اِسْتَقْبَلَ الصَّلٰوةَ.

**ژباړه:** په لنګوټه، خولۍ، نقاب او په دستکلو (دستانو) باندي مسحه نه ده جائز
په پټۍ یا د دې په مثل سره پرنورو جائز ده که څه هم یې بغیر اودس تړلي وي، ک
بغیر د جوړتیا څخه دا پټۍ ولوېږي نو مسحه نه ده باطله او که د جوړتیا د وجې څخ
ولوېږي نو مسحه باطله ده که په لمانځه کي وو نو لمونځ دې د سره څخه شروع کړي.

**تشریح:** د سر پرځای په لنګوټه باندي مسحه یا د پړپوللو پر ځای باندي په نقاب
مسحه دغه ډول د لاسو پر ځای په دستکلو باندي مسحه نه ده جائز ولي چي په قرآن
پاک کي د مخ او د لاسو پرپوللو حکم دی نو از خود د هغه بدل پیدا کول نه دي
جائز، البته د پښو د پرپوللو سره سره په مسح علی الخفین باندي احادیث مشهوره
او متواتر موجود دي چي په هغه سره کتاب الله مقید کیږي، د زخم په پټیانو باندي
هم د شرعي حرج لپاره مسحه جائز ده چي د هغه تفصیلي احکام په را روان عبارت کي
راځي.

وَالْمَسْحُ عَلَى الْجَبِيْرَةِ عَلٰى وُجُوْهٍ اِنْكَانَ لَا يَضُرُّهُ غَسْلُ مَا تَحْتَهُ يَلْزَمُهُ الْغَسْلُ
بِالْاِجْمَاعِ وَاِنْكَانَ يَضُرُّهُ الْغَسْلُ بِالْمَآءِ الْبَارِدِ وَلَايَضُرُّهُ بِالْمَآءِ الْحَارِّ يَلْزَمُهُ
الْغَسْلُ بِالْمَآءِ الْحَارِّ وَاِنْكَانَ يَضُرُّهُ الْغَسْلُ وَلَايَضُرُّهُ الْمَسْحُ مَاتَحْتَ الْجَبِيْرَةِ
يَمْسَحُ مَاتَحْتَ الْجَبِيْرَةِ وَلَايَمْسَحُ فَوْقَ الْجَبِيْرَةِ هٰذَا لَفْظُ قَاضِيْخَانَ وَالْمَسْحُ عَلَى
الْجَبَائِرِ اِنَّمَا يَجُوْزُ اِذَا لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْمَسْحِ عَلَى الْقُرْحَةِ بِاَنْ كَانَ يَضُرُّهَا الْمَآءُ وَاَمَّا

إِذَا كَانَ يَقْدِرُ عَلَى الْمَسْحِ عَلَى الْقُرْحَةِ فَلَا يَجُوزُ لَهُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَبِيْرَةِ قَالَ بُرْهَانُ الدِّيْنِ يَنْبَغِيْ اَنْ يُحْفَظَ هٰذِهِ الْمَسْئَلَةُ فَاِنَّ النَّاسَ عَنْهَا غَافِلُوْنَ وَاِنْ تَرَكَ الْمَسْحَ عَلَى الْجَبِيْرَةِ وَالْمَسْحُ لَا يَضُرُّهُ جَازَ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ خِلَافًا لَّهُمَا وَاَمَّا الْاِسْتِيْعَابُ فَشَرْطٌ عِنْدَ الْبَعْضِ وَبَعْضُهُمْ قَالُوْا اِذَا مَسَحَ عَلٰى اَكْثَرِهَا جَازَ وَاِنْ مَسَحَ عَلَى النِّصْفِ اَوْ دُوْنَهُ لَا يَجُوْزُ وَيَكْتَفِيْ بِالْمَسْحِ مَرَّةً وَاحِدَةً هُوَ الصَّحِيْحُ وَلَوْ كَانَتِ الْجَرَاحَةُ فِيْ مَوْضِعِ الْغَسْلِ وَلَيْسَ تَحْتَ جَمِيْعِ الْجَبِيْرَةِ جَرَاحَةٌ جَازَ لَهُ الْمَسْحُ عَلٰى كُلِّ الْجَبِيْرَةِ تَبْعًا لِّمَوْضِعِ الْجَرَاحَةِ.

**ژباړه:** د پټۍ مسحه په يوڅو اقسامو مشتمله ده که د پټۍ لاندي زخم ته پرېولل ضرر نه رسوي نو بالاتفاق يې پرېولل فرض دي که د يخو اوبو څخه تکليف او د ګرمو اوبو څخه نه وي نو په ګرمو اوبو سره پرېولل ضروري دي که د پرېوللو څخه ضرر وي مګر د پټۍ لاندي زخم په مسحي کولو سره ضرر نه وي نو د پټۍ لاندي دي مسحه وکړي، د پټۍ سربېره دي مسحه نه کوي دا د قاضي خان الفاظ دي په پټيانو باندي هغه وخت مسحه جائز ده چي کله دی په مسحه کولو د دې زخم قدرت نه ري يعني هغه ته اوبه ضرر رسوي چي کله په زخم باندي مسحه کولای سي نو په پټۍ باندي مسحه نه ده جائز .

برهاالدين رحمه الله ويلي دي مناسب دی چي دا مسئلې يادي سي ولې چي بېشکه انسان د دې څخه ناخبره دی، که په پټۍ باندي مسحه پرېښودل سي او هغه ته مسحه ضرر نه رسوي نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نز جائز دی بخلاف د صاحبينو. پوره احاطه کول د ځينو په نز شرط دی او ځيني وايي چي کله په اکثره

مسح وکړي نو جائز دی که په نیم یا د دې څخه هم په کم باندي مسح وکړي نو جائز نه دی، د صحیح قول مطابق مسحه یو وار کافي ده، که زخم د پرېوللو په ځای کې وي او د ټولي پټۍ لاندي زخم نه وي نو د زخم په تابع کېدو سره د ټولي پټۍ مسح جائز ده .

**تشریح**: مصنف رحمه الله وایي چي په پټۍ باندي هغه وخت مسحه جائز ده کله چي زخم پرېوللو یا په زخم مسحي کولو سره ضرر لاحق کیږي که په زخم باندي د مسحي کولو سره څه تکلیف نه رسیږي نو په زخم باندي مسحه کول ضروري ده، د دې لپاره صاحب محیط امام برهان الدین رحمة الله تعالی علیه وویل چي دا مسئله ښه ایزده کول ضروري ده ولي چي اکثره خلګ په دې غلطۍ کي دي چي کله د زخم په پرېوللو سره ضرر رسیږي نو فوراً پر پټۍ سربېره مسحه کوي، حالانکي داسي نه دي کول پکار بلکي ودي کتل سي چي په زخم باندي فقط په مسحي کولو سره څه تکلیف نه رسیږي نو پر زخم باندي مسحه کول پکار دي او په پټۍ باندي مسح نه ده جائز، او د مسحي کولو په وخت کي په ټولي پټۍ باندي لاس تېرول د ځینو علماؤ په نز فرض دي او د ځینو په نز د للاکثر حکم الکل د قاعدی موافق دي. که چېري په اکثره د پټۍ مسحه وکړل سي نو کافي ده، د هدایې د صاحب میلان هم دغه طرفته دی ولي چي د استیعاب د شرط څخه حرج لازمیږي، د نورو مسحو په مثل د پټۍ مسحه هم صرف یو وار ده چونکي اکثره داسي کیږي، د پټۍ د تړلو په وخت کي د زخم شاوخوا جوړ ځای هم پټیږي نو د زخم په متابعت سره هغه ځای هم په مسحي سره پاکیږي، د پټۍ مسحه د پرېوللو په حکم کي ده د دې لپاره که چېري یوه پښه په پټۍ تړلو سره مسحه کړل سي نو د دوهمي جوړي پښې پرېولل ضروري دي او د دې حکم د موزو د مسحي په ډول نه دی چي په دواړو باندي مسحه وکړي یا دي پرېولل سي

وَلَوْكَانَ مَقْطُوْعَ اِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مِنَ الْكَعْبِ اَوْ دُوْنَهَا فَاِنْ غَسَلَ مَوْضِعَ الْقَطْ

نزهۃ فَلَوْ غَسَلَ مَوْضِعَ الْقَطْعِ وَلَبِسَ خُفَّيْهِ يَنْظُرُ اِنْ كَانَ بَقِيَ مِنْ ظَهْرِ الْقَدَمِ مِقْدَارُ ثَلٰثِ اَصَابِعَ اَوْ اَكْثَرَ مِنْهُ يَمْسَحُ وَاِلَّا يَغْسِلُهُمَا لِاَنَّهُ وَجَبَ غَسْلُ الْمَقْطُوْعِ وَاِنْ كَانَ مَقْطُوْعُ الْاَصَابِعِ وَبَعْضُ خُفِّهِ خَالٍ عَنِ الْقَدَمِ فَاِنْ وَقَعَ الْمَسْحُ عَلَى الْمَغْسُوْلِ مِقْدَارِ ثَلٰثِ اَصَابِعَ جَازَ الْمَسْحُ وَاِلَّا فَلَا وَكَذٰلِكَ الْحُكْمُ عَلٰى هٰذَا التَّفْصِيْلِ اِذَا كَانَ الْخُفُّ وَاسِعًا وَبَعْضُهُ خَالٍ عَنِ الْقَدَمِ رَجُلٌ تَوَضَّأَ وَمَسَحَ عَلَى الْجَبِيْرَةِ وَلَبِسَ خُفَّيْهِ ثُمَّ اَحْدَثَ قَبْلَ مَا بَرِءَتِ الْجِرَاحَةُ فَتَوَضَّأَ يَمْسَحُ عَلَى الْجَبِيْرَةِ وَالْخُفَّيْنِ فَاِنْ اَحْدَثَ بَعْدَ مَا بَرِءَتْ لَا يَمْسَحُ لِاَنَّهُ لَبِسَ الْخُفَّيْنِ عَلٰى طَهَارَةٍ نَاقِصَةٍ ذَكَرَهُ فِيْ شَرْحِ الْاِسْبِيْجَابِيِّ.

**ژباړه:** که د دواړو پښو څخه یوه پښه تر بجلکي پوري پرې وي نو د پرې سوي ځای پرېولل فرض دي، که چېرې يې پرې سوی ځای پرې وی او موزې يې واغوستې نو دي وګوري که ظاهر قدم (ظهرقدم) څخه د درو ګوتو برابر یا د دې څخه زیات باقي وي نو دي مسح وکړي که نه وي نو دي دواړې پرېولي ولې چې پرې سوی ځای پرېول ضروري دی که ګوتي پرې سوي وي او یوڅه ځای د موزې خالي وي د قدم څخه نو که چېرې مسح په مغسول باندي د درو ګوتو په مقدار واقع کیږي نو جائز دی که نه وي نو نه ده جائز، د دغه تفصيل مطابق حکم دی چې کله موزه لویه وي او یوڅه حصه د قدم څخه خالي وي.

یو سړي اودس وکړ او په پټۍ باندي يې مسحه وکړه موزې يې په پښو کړي نو د زخم د جوړوالي څخه ترمخه بې اودسه سو تر هغه وروسته دي اودس وکړي په پټۍ او موزو دي مسح جاري ساتي که د صحت څخه وروسته بې اودسه سو نو مسحه دي

نه کوي ولي چي موزې په ناقص طهارت باندي په پښو سوي دي دغه ډول په شرح اسبیجابي کي مذکور دی .

**تشریح**: که د یوچا پښه کاټ سي نو د کاټ سوي ځای پرېولل فرض دي، د دې پرېوللو وروسته که چېري څوک په موزو باندي مسحه کول وغواړي نو دي وکتل سي که چېري د کاټ سوي قدم څخه درې ګوتي یا د دې سره زیاتي باقي پاته وي نو په دې مسحه کول جائز ده که نه وي نو نه ده جائز، نو د دواړو قدمو پرېولل فرض دي ولي چي په داسي صورت کي د درو ګوتو فرض مقدار لپاره محل مسح نه دی موجود نو چي کله په یوې باندي مسح نه سي کېدی نو د دوهم قدم پرېولل هم ضروري دی د دې لپاره چي د مسحي او غسل دواړو اجتماع نسي را، دغه ډول دا مسئله هم ده که موزه لویه وي اویوڅه ځای د قدم څخه خالي وي نو که چیري د درو ګوتو مقدار مسحه په قدم باندي وسي نو جائز دی که د دې څخه په کم قدم باندي راسي او باقي په خالي موزې باندي واقع سي نو نه ده جائز .

دغه ډول که چېري چا په پټۍ باندي د مسحي کولو وروسته موزې په پښو کړي نو مسحه جائز ده ولي چي په پټۍ باندي د مسحي کېدلو وروسته طهارت کامل کیږي، اوس د حدث لاحق کیدو وروسته پر موزو مسحه کولای سي البته که چېري د پټۍ لاندي زخم جوړ سي او د هغه وروسته حدث لاحق سي نو چونکي اوس د پټۍ لاندي ځای پرېولل فرض سوه نو طهارت اوس ناقص سو او کامل نه دی، د موزې د مسحي لپاره بیا د حدث لاحق کېدو څخه ترمخه طهارت کامله شرط دی نو د انتفاء د شرط څخه انتفاء مشروط لازم دی د دې لپاره په موزو باندي مسحه نه ده جائز .

وَاِذَا كَانَ الشِّقَاقُ فِيْ رِجْلِهٖ اَوْ يَدِهٖ فَجَعَلَ فِيْهِ الدَّوَآءَ اَوِ الشَّحْمِ يُمِرُّ الْمَآءَ فَوْقَ الدَّوَآءِ اَوِ الشَّحْمِ وَلَا يَكْفِيْهِ الْمَسْحُ وَاِنْ كَانَ الشِّقَاقُ فِيْ يَدِهٖ وَقَدْ عَجَزَ عَنِ

الْوُضُوْءِ يَسْتَعِيْنُ بِغَيْرِهِ حَتّٰى يُوَضِّيَهُ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَعِنْ وَتَيَمَّمَ جَازَتْ صَلٰوتُهُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ خِلاَفًا لَّهُمَا فَاِنْ لَّمْ يَجِدْ مَنْ يُوَضِّيَهُ جَازَتْ بِلاَخِلاَفٍ وَاَمَّا الْمَسْحُ عَلَى الْجَوَارِبِ فَلاَيَجُوْزُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اِلاَّ اَنْ يَّكُوْنَا مُجَلَّدَيْنِ اَوْ مُنَعَّلَيْنِ وَقَالاَ يَجُوْزُ اِذَاكَانَا ثَخِنَيْنِ لاَيَشِفَّانِ الْمَآءِ وَعَلَيْهِ الْفِتْوٰى قَالَ فِي الذَّخِيْرَةِ وَقِيْلَ رَجَعَ اَبُوْحَنِيْفَةَ اِلٰى قَوْلِهِمَا فِيْ اٰخِرِ عُمْرِهِ وَحَدُّ الثَّخِيْنَيْنِ اَنْ يَّسْتَمْسِكَ عَلَى السَّاقِ مِنْ غَيْرِ اَنْ يَّشُدَّهُمَا بِشَيْءٍ وَيَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَى الْخِفَافِ الْمُتَّخِذَةِ مِنَ اللُّبُوْدِ التُّرْكِيَّةِ لِاِمْكَانِ قَطْعِ الْمَسَافَةِ بِهَا وَاللّٰهُ تَعَالٰى اَعْلَمُ.

**ژباړه:** که ټپرې په پښو يا په لاسو کي چاودي وي او په دې کي دوا يا غوړزګي واچوي نو په دوايي يا په غوړزګي باندي اوبه واچوي د دې لپاره مسحه نه ده کافي، او که چاودي په لاسو کي وي د اودس کولو څخه عاجزه وي نو دي د بل څخه کومک طلب کړي چي د ده اودس ور وکړي که چير ي يې کومک نه وغوښتی او په تيمم سره يي لمونځ وکړ نو د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په نز جائز دی په خلاف د صاحبينو که يو څوک د اودس ورکولو والا نه سي پيدا نو بلا خوف جائز دی ، په جرابو باندي مسحه د حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په نز جائز نه ده مګر چي کله د څرمې څخه جوړي سوي وي يا د څرمې په مثل لاندي څرمه داري وي، صاحبين وايي چي کله سختي وي او اوبه نه جذب کوي نو جائز ده او په دغه باندي فتوی ده دا په ذخيره کي ويل سوي دي چي حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله په اخر عمر کي د دې دواړو قولو وطرف ته رجوع کړي وه او د سختښدو حد دادی چي په بجلکو باندي د ترلو څخه بغير ټينګي وي، په هغه موزو باندي هم مسحه کول جائز ده کوم

چې د ترکي لبود (جماهوا اُون) څخه جوړې سوي وي ولې چې په دې کې هم مسافه قطعه کېدی سي. والله تعالی اعلم

**تشریح:** که چېرې د چا په پښو یا په لاسو کې د یخ یا د مرض د وجې څخه چاودې پیدا سي او په هغو باندې مرهم وغیره ولګوي نو په دې زخمو کې په دوایي باندې اوبه تیرول ضروري دي او په دې صورت کې مسحه نه ده کافي.

که یو څوک د لاسو د خرابۍ د وجې څخه د خپل اودس کولو څخه معذوره سي نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نز استحباباً د بل چا څخه دې کومک طلب کړي هغه ته دې د اودس ورکولو ووایي، د صاحبینو په نز وبل چاته ویل واجب دي، که چېرې څوک نه وي نو په تیمم سره لمونځ کولای سي.

د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله په نز صرف پر هغو جرابو باندې مسحه جائز ده چې مجلد یني وي یعني چې چمړه باندې اغوستل سوي وي یا منعلیني وي یعني کم از کم د لاندې وطرف ته چمړه وي، د صاحبینو په نز بیا د چمړې بغیره هم که چېرې دومره سختې وي چې په هغو کې اوبه نه جذب کیږي او اوبه و قدم ته نه رسیږي نو په دغو جرابو باندې مسحه کول جائز ده ، صاحب ذخیره د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله څخه د صاحبینو د قول و طرف ته رجوع نقل کړې ده ولې چې وروسته چې بیا حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله ناروغه سو نو په جرابو باندې به یې مسحه کوله چې هغه د رجوع دلیل دی، د غه ډول د لبود ترکیه څخه د جوړو سوو موزو باندې هم مسحه جائز ده لبود جمع ده د لبدة، تهه دړ تهه جمع سوي اُون ته ویل کیږي، د دې لبودو څخه چې کومې موزې تیارېدلې هغه به هم د چمړې ډول سختې وي د دې لپاره یې دغه حکم درلود.

## فصل في نواقض الوضوء

(دا فصل د اوداسه د ماتولو شیانو په بیان کې دی)

اَلْمَعَانِي النَّاقِضَةِ لِلْوُضُوْءِ كُلُّ مَاخَرَجَ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ وَاِنْ خَرَجَ مِنْ قُبُلِ الرَّجُلِ وَالْمَرْءَةِ رِيْحٌ مُنْتِنَةٌ الصَّحِيْحُ اَنَّهُ لَايَنْتَقِضُ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَاِنْ خَرَجَ مِنَ الْمُفْضَاةِ يَجِبُ عَلَيْهَا الْوُضُوْءُ وَذُكِرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ لِقَاضِيْ خَانَ يَسْتَحِبُّ لَهَا اَنْ تَتَوَضَّأَ وَكَذَا الدُّوْدُ وَالْحَصَاةُ اِذَا خَرَجَ مِنْ اَحَدِ هٰذَيْنِ السَّبِيْلَيْنِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَاِذَا خَرَجَ الدُّوْدُ مِنَ الْفَمِ اَوْ مِنَ الْاُذُنِ اَوْ مِنَ الْاَنْفِ اَوْ مِنَ الْجِرَاحَةِ لَايَنْتَقِضُ وَاِنْ اَدْخَلَ الْحُقْنَةَ ثُمَّ اَخْرَجَهَا اِنْ لَّمْ يَكُنْ عَلَيْهَا بَلَّةٌ لَايَنْقِضُ وَالْاَحْوَطُ اَنْ يَّتَوَضَّأَ وَاِنْ اَقْطَرَ الدُّهْنَ فِيْ اِحْلِيْلِهِ فَعَادَ فَلَاوُضُوْءَ عَلَيْهِ اَبِيْ حَنِيْفَةَ خِلَافًا لَّهُمَا وَاِذَا صَبَّ دُهْنًا فِيْ اُذُنِهِ فَمَكَثَ فِيْ دِمَاغِهِ يَوْمًا ثُمَّ خَرَجَ مِنْ اَنْفِهِ اَوْ اُذُنِهِ فَلَاوُضُوْءَ عَلَيْهِ وَاِنْ عَادَ مِنَ الْفَمِ نَقَضَ وَاِنْ دَخَلَ فِيْ اُذُنِهِ مَاءٌ عِنْدَ الْاِغْتِسَالِ ثُمَّ خَرَجَ مِنْ اَنْفِهِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَاِنْ خَرَجَ مِنَ الْفَمِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ اِنِ احْتَشٰى فِيْ اِحْلِيْلِهِ بِقُطْنَةٍ خَوْفًا مِنْ خُرُوْجِ الْبَوْلِ وَلَوْلَا الْقُطْنُ لَكَانَ يَخْرُجُ مِنْهُ الْبَوْلُ فَلَا بَأْسَ بِهِ وَلَا يَنْتَقِضُ وُضُوْءُهُ مَالَمْ يَظْهَرِ الْبَوْلُ عَلَى الْقُطْنَةِ وَاِنْ غَابَتِ الْقُطْنَةُ ثُمَّ اَخْرَجَهَا اَوْ خَرَجَتْ رَطْبَةً اِنْتَقَضَ وَاِنِ ابْتَلَّ الطَّرْفُ الدَّاخِلُ وَلَمْ يَنْفُذْ اِلَى الطَّرْفِ الْخَارِجِ لَمْ يَنْتَقِضْ وُضُوْءُهُ وَاِنْ سَقَطَتْ اِنْ كَانَتْ رَطْبَةً اِنْتَقَضَ وَاِنْ كَانَتْ يَابِسَةً لَمْ يَنْتَقِضْ وَكَذٰلِكَ

اَلْحُكْمُ فِيْ كُرْسَفِ الْمَرْءَةِ اِذَا سَقَطَتْ سَوَآءٌ كَانَ الْكُرْسَفُ فِي الْفَرْجِ الدَّاخِلِ اَوْ فِي الْفَرْجِ الْخَارِجِ وَاِنْكَانَتْ اِحْتَشَتْ فِي الْفَرْجِ الْخَارِجِ فَابْتَلَّ دَاخِلُ الْحَشْوِ اِنْتَقَضَ نَفَذَ اَوْ لَمْ يَنْفَذْ وَاَمَّا اِذَا احْتَشَتْ فِي الْفَرْجِ الدَّاخِلِ اِنْ نَفَذَ الْبَلَلُ اِلٰى خَارِجِهٖ انْتَقَضَ وَاِلاَّ فَلاَ.

**ژباړه:** د اوداسه ماتوونکی معناګاني: هرهغه شی چي د دې دوو لارو څخه ووزي د مخ د خوا یا د شا د خوا نو اودس يې ماتيږي، که چېري د سړي د مخ د خوا څخه يا د ښځي د مخ د خوا څخه باد ووزي نو صحيح خبره داده چي اودس يې نه ماتيږي، دغه ډول ذکرسوي دي په محيط کي.

که چېري ووتی د مفضاة څخه نو واجب دی پر دې ښځي باندي اودس، او ذکرسوي دي په جامع الصغير کي د قاضي خان چي مستحب دی د دې لپاره اودس، دغه ډول که يو چينجی يا يوبل شی ووځي د دې دوو لارو څخه نو پرده باندي اوس دی، او که ووتی چينجی د خولې څخه يا د غوږو څخه يا د پوزي څخه يا د يوزخم څخه نو د ده اودس نه ماتيږي، که چېري داخله کړي پيچکاری او بيرته يې راوباسي نو که لوندوالی باندي نه وو اودس يې نه ماتيږي، او ښه خبره داده چي اودس وکړي، که چېري د ذکر په سرکي غوړي وڅخوي او بيرته را توی سي نو پرده باندي اودس نسته د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز باندي، خلاف ثابت دی يارانو لره، څه وخت چي توی کړه سي غوړي په غوږو بيا ولاړ سي دماغ ته يوه ورځ درنګ وکړي د هغه وروسته بيا راووځي ترپوزي يا د غوږو نو پرده باندي اودس نسته، که چېري راووتل تر خولې نو اودس يې مات دی، څه وخت چي ولوېږي اوبه غوږوته په وخت کي د غسل بيرته راووزي ترپوزي نو پرده باندي اودس نسته، او که ترخولې راووتل نو بيا اودس باندي سته.

كه يو څوک پمبه د ذكر په سركي كښيږدي د دې لپاره چي بولي را ونوځي، او كه پمبه
نه يې نو بولي يې راوځي نو په دې باندي باک نسته اودس يې نه ماتيږي ترهغه وخته
پوري چي ښكاره نسي بولي پر پمبې سربېره، كه چېري پته سي پمبه يا راووځي خو لنده
بې نو اودس يې مات دی، كه چېري داخله سي دا پمبه طرف داخل ته او وې نه باسي د
طرف خارج څخه اودس يې نه ماتيږي، او كه چېري ولوېده دا پمبه لنده وه نو اودس يې
مات دی، او كه وچه وه اودس يې نه دی مات، دغه ډول حكم د كرسف دی د ښځي لپاره،
ځه وخت چي داخل سي دغه كرسف وفرج ته كه دننه وي او كه د باندي. او كه چېري پټ
سو په فرج الخارج كي كه لوند يې او كه نه يې لوند نو اودس يې مات دی. كرسف
پرتوكرته وايي.

اَمَّا الْخَارِجُ مِنْ غَيْرِ السَّبِيْلَيْنِ فَيُوْجِبُ اِنْتِقَاضُ الطَّهَارَةِ عِنْدَنَا عَلَى التَّفْصِيْلِ خِلَافًا
لِلشَّافِعِيِّ كَالْقَيْءِ وَالدَّمِ وَنَحْوِهِمَا اَمَّا الْقَيْءُ اِنْكَانَ مَلأُ الْفَمِ يَنْقِضُ سَوَآءٌ كَانَ
طَعَامًا اَوْمَآءً اَوْ مُرَّةً فَاِنْكَانَ بَلْغَمًا لَايَنْقِضُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ سَوَآءٌ نَزَلَ مِنَ
الرَّاْسِ اَوْصَعِدَ مِنَ الْجَوْفِ وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ اِنْ صَعِدَ مِنَ الْجَوْفِ يَنْقِضُ وَاِنْ قَآءَ
دَمًا اِنْ كَانَ سَآئِلًا نَزَلَ مِنَ الرَّاْسِ يَنْقِضُ بِالْاِتِّفَاقِ وَاِنْ كَانَ عَلَقًا لَايَنْقِضُ
بِالْاِتِّفَاقِ وَاِنْ صَعِدَ مِنَ الْجَوْفِ اِنْ كَانَ عَلَقًا لَايَنْقِضُ اَيْضًا بِالْاِتِّفَاقِ اِلَّا اَنْ يَمْلَاَ
اَلْفَمُ وَاِنْكَانَ سَآئِلًا فَعَلٰى قَوْلِ اَبِيْحَنِيْفَةَ يَنْقِضُ وَاِنْ لَمْ يَكُنْ مِلَاَ الْفَمِ وَعِنْدَ
مُحَمَّدٍ لَا يَنْقِضُ مَالَمْ يَكُنْ مِلأُ الْفَمِ فَاِنْ قَآءَ طَعَامًا قَلِيْلًا قَلِيْلًا اِنِ اتَّحَدَ
الْمَجْلِسُ يُجْمَعُ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ وَقَالَ مُحَمَّدٌ يُجْمَعُ اِنِ اتَّحَدَ السَّبَبُ وَاِلَّا فَلَا

وَتَفْصِيْلُ اِتِّحَادِ السَّبَبِ اَنَّهُ اِذَا قَآءَ ثَانِيًا قَبْلَ يُكُوْنِ النَّفْسِ عَنِ الْغَثْيَانِ وَالْهِيْجَانِ.

**ژباړه:** څه وخت چي بېوشي ووځي ماسواې د سبيلينو څخه نو اودس يې مات دی زموږ په نز باندي، خلاف دی امام شافعي رحمه الله، لکه قی، وينه يا بل داسي شی، که چېرې وو دغه قی په ډکه خوله سره نو اودس يې ماتيږي که طعام وي او که اوبه وي. او که بلغم وه بيايې اودس نه ماتيږي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز او د امام محمد رحمه الله په نزد، که دغه بلغم د سر څخه وي او که د نس څخه وي، امام يوسف رحمه الله ويلي دي که چېري د نس څخه وو نو اودس يې ماتيږي، که يې قی روهي د وينو نو که دغه وينه بهېدونکي وه او راکښته سوي وه د سر څخه نو اودس يې مات دی په اتفاق سره، که دغه وينه يوه ټوټه وه بيايې اودس نه ماتيږي په اتفاق سره، که د نس د خوا څخه يې ټوټه وينه راقی کړه اودس يې نه ماتيږي په اتفاق سره، مګر هغه وخت چي قی ووهي په ډکه خوله يا لږ ووهي او بهېدونکي وي نو د امام صاحب په نز اودس ماتيږي، د امام محمد رحمه الله په نز اودس نه ماتيږي ترهغه وخته پوري چي په ډکه خوله قی ونه وهي، که يې قی ووهی لږ لږ په يوه مجلس کي نو دا را جمع کيږي د امام يوسف رحمه الله په نز، او امام محمد رحمه الله وايي را جمع کيږي که چېري يې سبب يو وو نو اودس يې مات دی که نه وو نو اودس يې نه دی مات، وضاحت د اتحادِ سبب دا ډول دی يعني سبب د يو وال دادی چي يووار قی ووهي د هغه وروسته يې طبيعت او نفس لا نه وي سم سوی بيا قی ووهي.

وَاَمَّا الدَّمُ وَنَحْوُهُ اِذَا خَرَجَ مِنَ الْبَدَنِ اِنْ سَالَ عَنْ رَاْسِ الْجَرْحِ نَقَضَ وَاِلَّا فَلَا خِلَافًا لِزُفَرَ وَعَلٰى هٰذَا مَسَآئِلُ كَثِيْرَةٌ مِنْهَا نِفْطَةٌ قُشِرَتْ فَسَالَ مِنْهَا مَآءٌ اَوْدَمٌ

صَدِيْدُ اِنْ سَالَ عَنْ رَأْسِ الْجَرْحِ نَقَضَ وَاِنْ لَمْ يَسَلْ لَايَنْقِضُهُ وَتَفْسِيْرُ السَّيْلَانِ اَنْ يَتَجَاوَزَ عَنْ رَأْسِ الْجَرْحِ وَاَمَّا اِذَا عَلَا عَلٰى رَأْسِ الْجَرْحِ وَلَمْ يَتَجَاوَزْ لَايَكُوْنُ سَائِلًا وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِذَا خَرَجَ وَتَجَاوَزَ اِلٰى مَوْضِعٍ يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيْرِ وَلِذَا قَالَ اِذَا خَرَجَ الدَّمُ مِنَ الرَّأْسِ اِلٰى اَنْفِهِ اَوْ اُذُنِهِ اِنْ سَالَ اِلٰى مَوْضِعٍ يَجِبُ تَطْهِيْرُهُ عِنْدَ الْاِغْتِسَالِ نَقَضَ وَاِلَّا فَلَا وَاِنْ مَسَحَ الدَّمَ عَنْ رَأْسِ الْجَرْحِ بِقُطْنَةٍ ثُمَّ خَرَجَ فَمَسَحَ ثُمَّ وَثُمَّ اَوْ اَلْقَى التُّرَابَ عَلَيْهِ يَنْظُرُ اِنْ كَانَ بِحَالٍ لَوْتَرَكَهُ لَسَالَ نَقَضَ وَاِلَّا فَلَا وَلَوْ اَلْقَى الْبُزَاقَ وَفِي بُزَاقِهِ دَمٌّ اِنْكَانَ الْبُزَاقُ غَالِبًا فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَاِنْ كَانَ الدَّمُ غَالِبًا فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَاِنِ اسْتَوَيَا يَتَوَضَّأُ اِحْتِيَاطًا وَلَوْ عَضَّ شَيْئًا فَرَاٰى عَلَيْهِ اَثَرَ الدَّمِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ يَنْبَغِيْ اَنْ يَضَعَ كُمَّهُ اَوْ اِصْبَعَهُ فِيْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ اِنْ وَجَدَ الدَّمَ فِيْهِ نَقَضَ وَاِلَّا فَلَا وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ قَالَ الشَّيْخُ اِذَاكَانَ فِيْ عَيْنَيْهِ رَمَدٌ وَيَسِيْلُ الدَّمْعُ مِنْهَا اٰمُرُهُ بِالْوُضُوْءِ كُلِّ صَلٰوةٍ لِاَنِّيْ اَخَافُ اَنْ يَكُوْنَ مَايَسِيْلُ مِنْهُ صَدِيْدًا فَيَكُوْنُ صَاحِبَ الْعُذْرِ وَفِي الْفَتَاوٰى الْغَرْبُ فِي الْعَيْنِ بِمَنْزِلَةِ الْجَرْحِ الَّذِيْ لَايَرْقَأُ وَمَا يَسِيْلُ مِنْهُ فَهُوَ نَجَسٌ.

**ژباړه:** وينه يا د هغه په مثل بل شی که چېري د بدن څخه ووزي او د زخم د سر څخه وبهيږي نو اودس مات سو که نه وي نه دی مات په خلاف د امام زفر رحمه الله، په دې باندي ډېري مسئلې مبنی کيږي، ځيني د هغوی څخه دادي چي د يوې تنه کي څخه خور واړوي نو د هغه څخه وينه يا نو توی سو که چېري د زخم د سر څخه توی

سو نو اودس مات سو او که نسو توی نه دی مات، د بهېدلو مطلب دادی چي د زخم د سره ځخه تجاوز وکړي که چېري صرف د زخم پر سر راپورته سي او تجاوز نه وکړي نو بهېدونکی نه دی، ځینو ویلي دي چي کله وداسي ځای ته تجاوز وکړي چي هغه ځای د پاک حکم لري، د دغه وجي ځخه یې ویلي دي چي کله د سرځخهویني د پوزي یا د غوږو هغه ځای ته توی سي کوم چي د غسل کولو په وخت کي یې پرېولل واجب دي نو اودس مات دی که نه وي نو نه دی مات، که د زخم د سر ځخه په پُومبې سره ویني صافي کړل سي بیا راووتلې نو بیایې صافي کړي او دا وینه یې په وار وار وکړه، یا په هغه باندي یې خاوري واچولي نو به کتل کیږي که چېري د پرینبوولو په حالت کي بهېدلي نو اودس مات سو که نه وي نو نه دی مات، که توی کړي په ناړه کي یې وینه وي نو که چېري ناړي غالبي وي نو په هغه اودس نسته او که وینه غالبه وي نو اودس سته او که دواړه سره برابر وي نو احتیاطاً دي اودس وکړي، که یوشی یې په غاښو کي وژووی او په هغه یې د ویني اثر ولیدی نو په دې اودس نسته او ځینو مشائخو ویلي دي چي خپل نیستوري یا ګوته دي پر هغه ځای کښېږدي که چېري وینه وي نو اودس مات سو که نه وي نو نه دی مات. د امام محمد رحمه الله ځخه روایت دی چي کله د یوه بوډا انسان د آشوب چشم ناجوړي وي چي په هغه سره وښکي جاري وي نو زه به هغه ته په هر لمانځه کي د اودس حکم ورکوم ولي چي زه بیرېږم چي دا بهېدونکی شی به نَوُونه وي. نو صاحب د عذر به وي، په فتاوٰی کي راغلي دي چي د سترګو پاړسوب یا د دې په ډول نور زخمونه چي نه جوړېږي نو ځه چي د دوی ځخه توایږي هغه نجس دي.

**تشریح**: د زخم ځخه چي هره وینه وي نو یا به بهېدونکي وي یا نه که چېري بهېدونکی وي نه به کتل کیږي او که خپله وبهېږي او د زخم د سر ځخه تجاوز وکړي نو اودس ماتیږي په دې باندي ځیني نوري مسئلې هم قیاس کیږي لکه ځنګه چي :

اور وغیره په سوزېدو سره تناکه جوړه سي او د تناکي څخه چي کله خور واوړي او د هغې څخه اوبه، وینه یا نوو وغیره وبهیږي نو اودس مات سو او که چیري نه سي نوی او صرف د زخم دنن وینه، اوبه وغیره وي نو صرف په خور اووښتو سره اودس نه ماتیږي، د فقهاء کرامو په نز بهېدل هغه معتبر دي چي د زخم پر سر راپورته سي او د بدن په داسي حصه باندي ومونبلي کوم چي د اودس یا غسل کولو په وخت کي یې پاکول فرض دي.

دغه مطلب د مصنف رحمه الله په دې عبارت کي دی " خَرَجَ وَتَجَاوَزَ اِلٰى مَوضِعَ يَلحِقهُ حُكمُ التَّطهِيرِ " او په دغه باندي په تفریح کولو سره مصنف رحمه الله وایي که چیري د سر څخه وینه راسي د پوزي لاندي د نرمې پوري او د غوږو سوریو څخه دباندي راسي نو اودس مات سو ولي دغه ځایونه په غسل کي پاکول فرض دي او د پوزي پورته دننه حصه یا د غوږو د سریو دننه پوري وینه راسي نو اودس باقي دی ولي چي د دغه ځایو پاکول نه د اودس او نه د غسل په وخت کي فرض دي.

که چیري څوک توه کړي او په ناړه کي یې وینه ښکاره سي نو ودي کتل سي که چیري وینه غالبه وي نو اودس مات سو که ناړه غالبه وي نو اودس نه ماتیږي او د برابری په وخت کي احتیاط د اودس ماتېدو حکم کیږي، د دغه مسئلو څخه دا هم ده چي د یوشي ژوولو په وخت کي په هغه شي باندي د ویني سرخي ښکاره سي مثلاً ژاولي یایې بل شی ژووی او په هغه باندي د ویني اثرات ښکاره سوه نو په دې سره اودس نه ماتیږي ولي چي دا قلیل مقدار دی د بهیدونکی ویني په حکم کي نه دی، ځیني علماء وایي چي د ویني اثرات د ظاهریدو وروسته دوباره دي په ګوته سره وګوري که چیري دوباره په ګوته هم ظاهر سي نو څرګنده سوه سوه چي وینه زیاته ده او بهېدونکي ده او دبهېدونکي په حکم کي اودس ماتیږي، د دغه مسئلو څخه امام محمد بن حسن شیباني رحمة الله تعالی علیه دا قول هم دی که چیري د

یوڅا د آشوب چشم ناجوړي وي چي په هغه کي د سترګو څخه مسلسلي اوښکي بهیږي نو هغه ته به د نورو اصحاب عذر په مثل په هر لمانځه کي د نوي اودس حکم کوي ولي چي قوي امکان دی چي دا بهېدونکی اوښکي به د زخم نوونه وي نو دی صاحب عذر دی ، د ځینو علماؤ قول دی چي د سترګو په اړخو پیدا سوي دانو حکم دا هغه زخم دی چي همیشه بهېدونکی وي ولي چي کله د سترګو اوښکي او اوبه په دې دانې باندي لګیږي نو دا د همیشه لپاره وي یعني په دې سره هم یو انسان صاحب عذر جوړیږي .

وَاَمَّا صَاحِبُ الْجَرْحِ الَّذِیْ لَایَرْقَاُ کَالنَّاسُوْرِ اَوِ الْاِسْتِطْلَاقِ الْبَطْنِ اَوِانْفِلَاتِ الرِّیْحِ وَمَنْ بِهٖ سَلْسُلْبَوْلِ اَوِ الْمُسْتَحَاضَةُ وَمَنْ بِهٖ الرُّعَافُ الدَّائِمُ یَتَوَضَّئُوْنَ لِوَقْتِ کُلِّ صَلٰوةٍ فَیُصَلُّوْنَ بِذٰلِکَ الْوُضُوْءِ فِی الْوَقْتِ مَاشَاءُوْا مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ فَاِذَا خَرَجَ الْوَقْتُ بَطَلَ وُضُوْئُهُمْ وَکَانَ عَلَیْهِمْ اِسْتِیْنَافُ الْوُضُوْءِ لِصَلٰوةٍ اُخْرٰی وَاِنْ تَوَضَّأَتِ الْمُسْتَحَاضَةُ حِیْنَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ تَبْقٰی طَهَارَتُهَا حَتّٰی یَذْهَبَ وَقْتُ الظُّهْرِ خِلَافًا لِاَبِیْ یُوْسُفَ وَزُفَرَ وَیَنْبَغِیْ لِلْمَجْرُوْحِ اَنْ یَّرْبِطَ جَرْحَهٗ لِتَقْلِیْلِ النَّجَاسَةِ وَاِنْ اَصَابَ الثَّوْبَ مِنْ ذٰلِکَ الدَّمِ اَکْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ لَزِمَهٗ غَسْلُهٗ اِذَا عَلِمَ اَنَّهٗ لَوْغَسَلَهٗ لَایَتَنَجَّسُ ثَانِیًا وَلَوْکَانَ بِحَالٍ یَتَنَجَّسُ قَبْلَ الْفَرَاغِ مِنَ الصَّلٰوةِ ثَانِیًا جَازَ لَهٗ اَنْ لَّایَغْسِلَهٗ هُوَ الْمُخْتَارُ وَصَاحِبُ الْعُذْرِ اِذَا مَنَعَ الدَّمَ عَنِ الْخُرُوْجِ بِالْعِلَاجِ یَخْرُجُ مِنْ اَنْ یَّکُوْنَ صَاحِبَ الْعُذْرِ وَلِهٰذَا الْمَعْنٰی الْمُفْتَصِدُ لَایَکُوْنُ صَاحِبَ الْعُذْرِ بِخِلَافِ الْحَائِضِ اِذَا احْتَشَتْ لَاتَخْرُجُ مِنْ اَنْ تَکُوْنَ حَائِضًا رَجُلٌ بِهٖ جُدْرِیٌّ

يَخْرُجُ مِنْهَا مَآءٌ وَهُوَ سَآئِلٌ فَتَوَضَّأَ مِنْهُ ثُمَّ سَالَ الْقُرْحَةُ الَّتِيْ لَمْ تَكُنْ سَآئِلَةً نَقَضَ وُضُوْءُهُ لِاَنَّ الْجُدَرِيَّ قُرُوْحٌ مُتَعَدِّدَةٌ وَعَلٰى هٰذَا مَسْئَلَةُ الْمُنْخَرَيْنِ اِذَا سَالَ فَهِيَ لَاتَكُوْنُ بِمَنْزِلَةِ الْجُرْحِ الْوَاحِدِ وَصَاحِبُ الْحَدَثِ الدَّآئِمِ مَنْ لَايَمْضِيْ عَلَيْهِ وَقْتُ صَلٰوةٍ كَامِلٍ اِلَّا وَالْحَدَثُ الَّذِيْ اِبْتَلٰى بِهٖ يُوْجَدُ مِنْهُ فِيْهِ وَاِذَا تَوَضَّأَ صَاحِبُ الْعُذْرِ لِحَدَثٍ اٰخَرَ وَالدَّمُ مُنْقَطِعٌ ثُمَّ سَالَ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ ذَكَرَهُ فِيْ اَحْكَامِ الْفِقْهِ وَاِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ وَقْتًا كَامِلًا يَخْرُجُ مِنْ اَنْ يَّكُوْنَ صَاحِبِ الْعُذْرِ.

**ژباړه:** د هغه زخم والا چي د هغه زخم نه جوړيږي لکه ناسور يا د نس بهېدل يا د هوا جاري کيدل يا هغه سړی چي د هغه بولي څاڅکی څاڅکی تواېږي او مستحاضه او د چا د پوزي څخه چي هميشه وينه بهيږي نو دوی به د هر لمانځه په وخت کي نوی اودس کوي او په هغه باندي د وخت دننه چي هر څومره فرض او نفل لمونځ کول وغواړي ودي کړي چي کله وخت ووتی نو د ټولو اودس ماتيږي او د شروع څخه د بل لمانځه لپاره په دوی اودس کول ضروري دي، که چيري مستحاضه د طلوع افتاب په وخت کي اودس وکړي نو د اودس وخت د ظهر ختمېدلو پوري باقي دی په خلاف د امام يوسف رحمه الله او امام زفر رحمه الله .

د زخمي لپاره مناسبه ده چي د خپل نجاست د کمولو لپاره يې په يوشي سره وتړي که چيري کيږی ته د دې نجاست څخه د يوه درهم د مقدار څخه زيات ورسيږي نو که دا معلومه وي چي دوباره به نه نجسه کيږي نو پرېولل يې لازم دي او که داسي وي چي د لمانځه څخه د فراغت ترمخه نجس کيږي نو نه دي پرېوللي او دغه قول مختار دی، صاحب د عذر چي کله وينه په ذريعه دعلاج د بهېدلو څخه بنده کړي نو هغه د صاحب عذر څخه وزي او په دغه وجه سره د رګ وهلو والا صاحب عذر نه دی په

خلاف د حائضې که کله په فرج کې پومبه کېښېږدي نو د حائضې د حکم څخه
وزي .
په یو سړی باندي چیچک وي چي د هغه څخه اوبه جاري وي نو هغه اودس
وکړي د شغه وروسته نوري اوبه توی سوي چي اول نه وي بهېدلي نو د هغه اودس
مات سو ولي چي چیچک ډېر زخمونه دی بنا پر دې د پوزي د بانسو مسئله ده چي
کله وبهیږي نو د یو زخم ډول نه ده، د همیشه حدث والا سړی هغه دی په چا چي
یوه کامل لمانځه وخت دا ډول نه تیریږي چي په هغه کي هغه حدث نه وي راغلی په
کوم کي چي هغه مبتلا دی، او کله چي صاحب عذر د دوهم حدث لپاره اودس وکړي
او وینه بنده سي بیا وبهیږي نو په هغه باندي اودس دی دا ذکر سوي دي په احکا
فقهه کي ، چي کله یو وخت کامل وینه بنده سي نو : صاحب عذر کېدلو څخه وزي.
**تشریح**: د هغه چي زخم ناسور سي د کوم څخه چي همیشه نوونه وغیره بهیږي یا
د چا هوا بې اختیاره وزي یا د چا بولي نه دریږي د یوې ښځي د حیض څخه علاوه
بلي ناجوړی په وجهویني بهیږي چي هغه ته استحاض ویل کیږي او د یوه لمانځه
مکمل وخت په دا خلکو باندي دا ډول تېر سي چي حصول د طهارت او لمونځ کول
دې راتلونکي نجاسته بغیر نه سي کېدی نو دا سړی صاحب عذر سو او دا سړی
دې نجاستو باوجوده لمونځ کولای سي، البته د احنافو او مالکیه رحمهم الله تعالی
په نز د هر لمانځه لپاره په دغه وخت کي نوی اودس کول دي او صرف په دغه وخت
کي د نون په دې اودس باندي فرائض او نوافل ټوله کولای سي چي کله د موجود
لمانځه وخت ختم سو نو د دې معذر اودس هم ماتیږي، د بل وخت لپاره نوی
اودس کول ضروري دي که څه هم په دې وخت کي دوهم حدث نه یي لاحق سوی
صرف د وخت په وتلو سره د دوی اودس ماتیږي چي کله یو سړی شرعاً صاحب عذ
وګڼل سي یعني وروسته بیا ـ همیشه لپاره د حدث جاري کیدل ضروري نه دي بلکې

که چېري د لمانځه په مکمل وخت کي صرف يو وار هم د نجاست ظهور وسي نو دا سړي ته شرعاً صاحب عذر ويل کيږي البته که چير ي په ټوله وخت کي د عذر نجاست نه سي ظاهر نو دا سړی د صاحب عذر څخه ووتی، صاحب عذر ته پکار ده چي ترمره ممکنه وي خپل نجاست دي د لمانځه په وخت کي ونيسي چي د لمانځه په وخت کي د نجاست خروج د کم څخه کم وي که چېري دغه نجاست په کالو ومبتلي او يقين يي وي چي که زه دا کالي پاک کړم نو دوهم وار په لمانځه کي نه نجس کيږي نو د دې کالو پرېولل ضروري دی که چېري دوباره نجس کيږي نو بيا کاره دي لهذا نه دې پريوللي او د دغه سره دي صاحب عذر سړی لمونځ وکړي.

رَجُلٌ اِنْتَثَرَ فَسَقَطَتْ مِنْ اَنْفِهٖ كُتْلَةُ دَمٍ لَمْ يَنْقِضْ وَاِنْ قَطَرَتْ اِنْتَقَضَ اَلْقِرَادُ اِذَا مَصَّ عُضْوَ اِنْسَانٍ وَامْتَلَا دَمًا كَانَ كَبِيْرًا اِنْتَقَضَ وَاِنْكَانَ صَغِيْرًا لَايَنْقِضُ وَاَمَّا الْعَلَقُ اِذَا مَصَّتْ حَتّٰى امْتَلَاَتْ بِحَيْثُ لَوْ سَقَطَتْ لَسَالَ الدَّمُ اِنْتَقَضَ وَاَمَّا الذُّبَابُ اَوِ الْبَعُوْضُ فَاِنَّهٗ اِذَا مَصَّ وَامْتَلَاَ لَايَنْقُضُ اَمَّا الدَّمُ الْقَلِيْلُ اَوِالْقَيْءُ الْقَلِيْلُ مَالَمْ يَكُنْ حَدَثًا لَمْ يَكُنْ نَجَسًا حَتّٰى اِذَا اَصَابَ الثَّوْبَ لَايَمْنَعُ الصَّلٰوةُ بِهٖ وَاِنْ فَحَشَ وَكَذَا النَّوْمُ نَاقِضٌ اِذَاكَانَ مُضْطَجِعًا اَوْمُتَّكِاً اَوْمُسْتَنِدًا اِلٰى شَيْءٍ لَوْاُزِيْلَ عَنْهُ لَسَقَطَ وَاِنْ نَامَ فِى الصَّلٰوةِ قَائِمًا اَوْرَاكِعًا اَوْقَاعِدًا اَوْسَاجِدًا فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَاِنْكَانَ خَارِجَ الصَّلٰوةِ فَنَامَ عَلٰى هَيْئَةِ السَّاجِدِ فَفِيْهِ اِخْتِلَافٌ فَظَاهِرُ الْمَذْهَبِ اَنَّهٗ يَكُوْنُ حَدَثًا وَاِنْ نَامَ قَاعِدًا اَوْ وَاضِعًا اِلْيَتَيْهِ عَلٰى عَقِبَيْهِ اَوْ وَاضِعًا بَطْنَهٗ عَلٰى فَخِذَيْهِ لَايَنْقِضُ ذَكَرَهٗ مُحَمَّدٌ فِىْ كِتَابِ الْاٰثَرِ وَلَوْنَامَ مُحْتَبِيًا لَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَكَذَا لَوْ وَضَعَ فِىْ هٰذِهٖ

الْحَالَةِ رَأْسَهُ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَلَوْنَامَ مُرَبَّعًا لَايَنْتَقِضُ وُضُوْءُهُ وَكَذَا لَوْنَام مُتَوَرِّكًا وَاِنْ سَقَطَ النَّائِمُ اِنِ انْتَبَهَ بَعْدَ مَاسَقَطَ عَلَى الْاَرْضِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَاِنِ انْتَبَهَ قَبْلَ السُّقُوْطِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ.

**ژباړه:** يو سړي پوزه سوڼ کړه نو د ويني ټوکړه ځيني ولوېده نو اودس يې نه سو مات که چېري وبهيده نو اودس يې مات دی، چي کله منګوړ د انسان يو اندام وخوري او دی د وينو څخه ډک سي که چېري غټ وي نو اودس مات سو که کوچنی وي نو اودس نه سو مات، کيکه چي کله د ويني څخه ډکه سي دا ډول که چېري ليدلي وه نو وينه بهيده او مچ (غوماشه) چي کله وينه کش کړي او ډکه سي نو اودس نه ماتيږي او معمولي وينه او اولټۍ (قی) چي کله حدث نه وي نو نجس هم نه دي تر دې پوري که چېري په کالو باندي ولګيږي نو لمونځ نه منعه کوي که څه هم زياتي وي.

دغه ډول خوب هم ناقض د اودس دی چي کله بيده وي يا يې تکيه وهلي وي ياداسي شي ته کوږ وي که چېري هغه شی ليري کړل سي نو غوځاريږي، که چېري په لمانځه کي په ولاړه، رکوع يا په سجده کي بيده سو نو په هغه باندي اودس نسته که چېري د لمانځه څخه د باندي د سجدې په شکل کي بيده سو نو په دې کي اختلاف دی، ظاهر مذهب دادی چي دا حدث دی او که چېري په ناسته يا دا ډول چي سر يې په خپل بجلکو باندي ايښی وي يا يې خپل نس په خپل ورنو باندي ايښی وي نو نه ماتيږي، امام محمد رحمه الله په کتاب الاثر کي دا ذکر کړی دی او که چېري د احتباء په شکل بيده سي نو په هغه باندي اودس نسته دغه ډول که څه هم په دې حالت کي په ګونډو باندي يې سر ايښی وي، که چېري په چارځانو ناسته کي بيده سو نو اودس نه ماتيږي دغه حکم دی که د تورک په شکل کي بيده سو، که بيده ولويږي او که

ځکه د لوېدو وروسته خبر سي نو په هغه اودس سته او که چېري په ځکه تر لوېدو ترمخه خبر سي نو په هغه باندي اودس نسته.

**تشریح**: که چېري د يو سړي د پوزي څخه د غټي ويني يوه ټکړا شوه سي نو ناقض د اودس نه ده ولي چي په دې کي سيلان نسته که چېري په څاڅکی شوه سي نو اودس ماتيږي ولي چي په قطرو کي سيلان موجود دی، دغه ډول که چېري څوک منګوږ وخوري او دومره وينه يي کش کړه چي که چېري دا وينه د دې علاوه ووتله نو بهېدله نو اودس يې ماتيږي، که په چاباندي کيکه ومښلي او دومره وينه يې کش کړي که چېري دا کيکه پټاو سي نو په دې سره به وينه وبهيږي نو اودس ماته وي که چېري په دومره مقدار کي نه وي نو اودس نه ماتيږي دغه ډول که چېري څوک غوماشه وخوری نو چونکي وينه په ډېر کم مقدار کي وي لهذا په دې سره اودس نه ماتيږي او لږ وينه تر هغه وخته پوري چي په دې کي د سيلان قوت نه وي ناقض د اودس نه ده تركومه وخته پوري چي ناقض د اودس نه وي تر هغه وخته پوري نجسه هم نه ده يعني كه چېري لږ وينه پر كالو ولګيږي نو كالي نه مرداريږي او قی هم تر هغه وخته چي په ډكه خوله نه وي نو نجس نه دی يعني د لږ قي وهلو په وخت كي چي په كالو باندي د دې څاڅكی وموښلي نو په دغو كالو كي لمونځ جائز دی.

د خوب په حالت کي د انسان اعضاء (اندامونه) خلاصيږي او انسان د خپل ځان څخه ناخبره کيږي اګرچي خوب خپله څه نجس شی نه دی مګر د استرخاء مفاصل په وجه خوب ناقض د اودس دی، البته په هغو حالاتو کي چي کله دا يقين کېدی سي چي په مکمل ډول د استرخاء مفاصل نه کېدږ په وجه د هوا د خروج امکان ډېر کم دی نو په دې حالت کي د خوب کولو په صورت کي اودس واجب نه دی لکه څنګه چي څوک په لمانځه کي د قيام، رکوع، سجدې او د قعدې په حالت کي بيده سي نو پرده باندي اودس نسته.

وَاِنْ نَامَ عَلٰى دَابَّةٍ عُرْيَانَةٍ اِنْ كَانَ حَالَةَ الصُّعُوْدِ اَوِالْاِسْتِوَآءِ لَايَنْتَقِضُ وَاِنْ كَانَ فِيْ حَالَةِ الْهُبُوْطِ يَنْتَقِضُ وَلَوْكَانَ رَاكِبًا فِي الْاَكَافِ اَوْفِي السَّرْجِ لَايَنْتَقِضُ فِي الْحَالَيْنِ.

**ژباړه:** كه چېري د يوې سوارلۍ په شا باندي بيده سي كه د ختلو يا د برابرۍ ناستي په حالت كي وي نو اودس نه ماته وي كه چېري د كښته كېدو په حالت كي وي نو يې ماته وي، كه د سوارلۍ په پالان په زين باندي سپور وي نو په دواړو حالتو كي يې نه ماته وي.

**تشريح:** كه يوڅوك په داسي سوارلۍ باندي ناست وي چي د هغه ملا بالكل لڅه وي او په هغه باندي څه زين وغيره نه وي، او بيده سي نو دا خوب كه چېري په سوارلۍ باندي د ناستي يا د ختلو په حالت كي وي نو اودس د دې لپاره نه ماتيږي چي د انسان مقعده په يو ځاى برقراره اوسي او د كښته كېدو په وخت كي بيا هر انسان د لوېدو په خوف سره ګډوډ كيږي البته كه چېري په يو پالان يا زين اوكجاوه وغيره كي ناست وي نو د لوېدو ډيري څخه د لاحقيدو په وجه په هر حالت كي كه ختل وي كه كښته كېدل اودس نه ماتيږي.

وَكَذَا الْاِغْمَاءُ وَالْجُنُوْنُ نَاقِضٌ وَاِنْ قَلَّ وَكَذَا السُّكْرُ وَحَدُّ السُّكْرِ اَنْ لَّا يَعْرِفُ الرَّجُلَ مِنَ الْمَرْءَةِ اَنْ لَّايَعْرِفَ السَّمَآءَ مِنَ الْاَرْضِ وَقَالَ فِي الْمُحِيْطِ اِنَّهُ اِذَا دَخَلَ فِيْ بَعْضِ مَشْيِهٖ تَحَرُّكٌ فَهُوَ سُكْرَانٌ يُحْكَمُ بِنَقْضِ وُضُوْءِهٖ وَكَذَا الْقَهْقَهَةُ فِيْ كُلِّ صَلٰوةٍ ذَاتِ رُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ تَنْقِضُ الْوُضُوْءُ وَالصَّلٰوةَ جَمِيْعًا سَوَآءٌ كَانَ عَامِدًا اَوْنَاسِيًا وَاِنْ قَهْقَهَ فِيْ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ اَوْفِيْ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ لَايَنْقِضُ وُضُوْءُهٗ وَاِنْ نَامَ فِيْ صَلٰوتِهٖ ثُمَّ قَهْقَهَ فَسَدَتْ صَلٰوتُهٗ وَلَايَنْقِضُ وُضُوْءُهٗ ذَكَرَهٗ فِي الْاَصْلِ وَقَالَ فِي الْمُحِيْطِ فَسَدَ

صَلٰوتُهُ وَوُضُوْئُهُ وَبِهٖ اَخَذَ عَامَّةُ الْمُتَاَخِّرِيْنَ وَاِنْ قَهْقَهَ صَبِيٌّ فِيْ صَلٰوتِهٖ لَايَنْقُضُ وُضُوْءُهُ وَاَمَّا التَّبَسُّمُ فَلَايَنْقُضُ الْوُضُوْءَ وَالصَّلٰوةَ وَحَدُّ الْقَهْقَهَةِ قَالَ بَعْضُهُمْ هُوَ مَايَظْهَرُ فِيْهِ الْقَافُ وَالْهَاءُ وَيَكُوْنُ مَسْمُوْعًا لَهُ وَلِجِيْرَانِهٖ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِذَا بَدَتْ نَوَاجِذُهُ وَمَنَعَهُ عَنِ الْقِرَآءَةِ وَحَدُّ التَّبَسُّمِ مَالَايَكُوْنُ مَسْمُوْعًا لَهُ وَلَالِجِيْرَانِهٖ وَذُكِرَ فِي الْخَاقَانِيَّةِ التَّبَسُّمُ لَايُبْطِلُ الْوُضُوْءَ وَالصَّلٰوةَ وَالضِّحْكُ يُفْسِدُ الصَّلٰوةَ لَا الْوُضُوْءَ وَحَدُّ الضِّحْكِ اَنْ يَّكُوْنَ مَسْمُوْعًا لَهُ دُوْنَ جِيْرَانِهٖ.

**ژباړه:** دغه ډول بې هوښي او ليونتوب اودس ماته وي چي څه هم کم وي او دغه ډول د نشې او د نشه کېدو حد دادی چي نر او ښځي يا د آسمان او مځکي فرق نه سي کولای او په محيط کي يې ويلي دي چي کله د هغه په تګ کي بې اختياره حرکت راسي نو هغه نشه دی د هغه د اودس د ماتېدو حکم به کول کيږي او دغه ډول هر هغه لمونځ په کوم کي چي رکوع او سجده وي په قهقه سره اودس او لمونځ دواړه ماتيږي که په قصداً سره وي يا په ايره، که چېري د جنازې په لمانځه يا په سجده تلاوت کي قهقه وکړي نو اودس نه ماته وي، که په لمانځه کي په خوب کي قهقه وکړي نو لمونځ فاسد سو او په دغه باندي د متاخرينو علماؤ عمل جاري دی.

که چېري کوچنی هلک په لمانځه کي قهقه وکړي نو اودس يې نه ماتيږي او تبسم نه اودس ماته وي نه لمونځ، د قهقهې په حد کي ځيني وايي چي په کوم کي قاف او ها ظاهره سي او خپله هم او ملګری يي هم واوري، ځينو ويلي دي چي کله هغه غاښونه ظاهر سي او هغه د قرائت څخه ونيسي بند يې کړي ،د تبسم حد دا دی چي نه يي خپله واوري او نه يي د نږدي والا واوري او په خاقانيه کي مذکور دی چي تبسم اودس او لمونځ دواړه نه باطل کوي او ضحک لمونځ فاسده وي او اودس نه، د

ضحک تعریف دادی چي هغه يي خپله اورېدی سي او ملګری يې نه سي اورېدی.

**تشريح**: په بې هوښۍ سره هم اودس ماتيږي، د بې هوښۍ څخه د انسان قوت مدرکه ډېر ضعيفه يا ځيني وخت بالکل معطله کيږي ځکه چي انسان خپله د خپل ځان څخه بې خبره سي نو چي کله د خوب څخه اودس ماتيږي نو د بې هوښۍ څخه په طريقي اوْلی ماتيږي ولي چي بيده انسان را پورته کوی سي او بې هوښه بيا د چا په بيداره کولو سره په هوښ کي نه راځي، بې هوښي يو دماغي مرض دی چي هغه په دماغ کي د غليظ رطوباتو په جمع کېدو سره پيدا کيږي، چونکي دا يوه ناروغي ده نو په انبياء عليهم الصلوٰة والسلام باندي د بې هوښۍ راتلل صحيح دي او انبياء عليهم السلام د جنون څخه پاک دي.

په نشه کولو سره هم اودس ماتيږي مګر د نشې ځيني قسمونه په اثر کي سخت دي او ځيني کم دي، ځکه پوښتنه پيدا کيږي چي نشه کله يو حد ته ورسيږي نو ناقض د اودس ده؟ مصنف رحمه الله په دې باره کي يو څو قولونه نقل کړي دي په هغو کي مفتٰى به قول دادی چي د هغه په تګ کي د رفتار په وخت غير اختياري حرکت يعني قدم يي ګډوډ سي، د غه ډول په کلام کي يې اختلاف واقع سي نو د هغه اودس مات سو، دغه ډول يو داسي لمونځ چي په هغه کي رکوع وسجده وي نو قهقه وکړي نو د هغه اودس او لمونځ دواړه ماتيږي، د امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نز قهقه ناقض د اودس نه ده زموږ دليل د معبد بن ابی معبد الخزاعی رضی الله تعالی عنه د حديث څخه وايي چي نبی کريم عليه السلام لمونځ ورکوی نو يو ړوند په لمانځه کي د شموليت په اراده را روان وو چي په يوه کډې کي ولوېدی په دې باندي ځينو خلکو په لمانځه کي وخندل نو عليه السلام وروسته د لمانځه ويل ستاسو څخه چي چا په قهقه وخندل نو هغه دي دوباره اودس او لمونځ را وګرځوي.

ځینو خلکو په دې حدیث باندي دا اشکال وارد کړی دی چي نه په مسجد نبوي کي څه کېدی وو او نه د صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین په شان کي دا تصور کېدی سي چي هغوی د علیه السلام شاته د لمونځ کولو سره بلي خواته کتلی او خندلای سي، مګر په لږ سوچ او فکر کولو سره دا اشکال په خپله دفعه کیږي چي په دې حدیث کي داهم نه دي مذکور چي دا لمونځ په مسجد نبوی کي کېدی او د خندا والاسړی کېدی سي منافق وو یا یو نوی مسلم صحرایي سړی وو چي د لمانځه د ادب څخه په مکمل طور خبر نه وو نو په دې سره د صحابه کرامو رضي الله عنهم په شان کي هیڅ رد نه راځي، د خندا دري قسمه دي:

۱-تبسم : چي نه یې خپله اورېدلی سي او نه یې ملګری اورېدی سي، په دې سره اودس او لمونځ دواړه نه ماتیږي، ۲- ضحک: چي خپله یې واوري او ملګری یې نه واوري په دې سره فقط لمونځ فاسدیږي او اودس نه ماتیږي ولي چي دا د کلام په مرتبه کي دی په لمانځه کي او په کلام کولو سره فقط لمونځ فاسدیږي اودس نه ماتیږي، ۳- قهقه: چي خپله یې هم واوري او ملګری یې هم واوري نو په دې سره لمونځ او اودس دواړه ماتیږي .

وَكَذَا الْمُبَاشَرَةُ الْفَاحِشَةُ نَاقِضَةٌ لِلْوُضُوْءِ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ وَهِيَ اَنْ يَمَسَّ بَطْنُهُ بَطْنَهَا اَوْظَهْرَهَا وَفَرْجُهُ مُنْتَشِرًا فَرْجَهَا مِنْ غَيْرِ حَائِلٍ وَاَمَّا مَسُّ الذَّكَرِ اَوْكُلُ شَيْءٍ مِّمَّا مَسَّتْهُ النَّارُ لَايَنْقِضُ الْوُضُوْءَ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيْ وَلَوْ حَلَقَ الشَّعْرَ اَوْقَلَّمَ الْاَظْفَارَ بَعْدَ مَاتَوَضَّأَ لَايَجِبُ عَلَيْهِ اِعَادَةُ الْوُضُوْءِ وَلَا اِمْرَارُ الْمَآءِ عَلَيْهِ وَمَنْ تَيَقَّنَ فِي الْوُضُوْءِ وَشَكَّ فِي الْحَدَثِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ وَمَنْ شَكَّ فِي

الْوُضُوْءِ وَتَيَقَّنَ فِي الْحَدَثِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَمَنْ شَكَّ فِيْ خِلَالِ الْوُضُوْءِ فَعَلَيْهِ غَسْلُ مَاشَكَّ فِيْهِ وَاِنْ شَكَّ بَعْدَ تَمَامِ الْوُضُوْءِ فَلَا يَلْتَفِتْ مَالَمْ يَتَيَقَّنَ.

**ژباړه**: دغه ډول مباشرت فاحشه د امام ابوحنیفه رحمه الله او د امام یوسف رحمه الله په نز داودس ماتونکي ده په خلاف د امام محمد رحمه الله او هغه مباشرت فاحشه دادی چي نس يي د هغې په نس يا په ملا يي، يا دوه فرجونه سره يوځای سي بېله پردې، يا د ذکر مسحه کېدل، او هرهغه شی چي اور مسحه کړی وي په هغه سره اودس نه ماتیږي زموږ په نز خلاف ثابت دی امام شافعي رحمه الله، که ځېري يوسړي اودس درلودی نو يې سر وخره وی یايې نوکان کوچني کړي نو پرده باندي د اوداسه راګرځول نسته، او نه تويدل د اوبو سته، هغه څوک چي يقين يې وي د اوداسه مګر شک يې وي په ماتوالي کي چي ما اودس مات کړی دی که نه، نو پرده باندي اودس نسته، او هغه څوک چي شک يې وي په اوداسه کي مګر يقين يې وي په ماتولو کي نو پرده باندي اودس سته، او هغه څوک چي شک يې سي د اوداسه په منځ کي نو پرده باندي د هغه پرېولل دي چي شک يې وي، که يې د اوداسه تر ختمېدو وروسته شک سي نو پرواه نه که يي تر هغه پوري چي يقين يې نسي.

# فصل في النجاسة الحقيقة

(دا فصل دِ نجاستِ حقيقي په بيان کي دى)

اَلنِجَاسَةُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ نِجَاسَةٌ غَلِيْظَةٌ وَنِجَاسَةٌ خَفِيْفَةٌ اَمَّا النِّجَاسَةُ الْغَلِيْظَةُ كَالْعَذْرَةِ وَالْبَوْلِ وَالدَّمِ وَالْخَمْرِ وَنَجْوِ الْكَلْبِ وَلَحْمِ الْخِنْزِيْرِ وَجَمِيْعِ اَجْزَائِهِ وَلُحُوْمِ مَالَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ اِذَا لَمْ يَكُنْ مَذْبُوْحًا بِالتَّسْمِيَةِ وَاَمَّا اِذَا ذُبِحَ بِالتَّسْمِيَةِ وَصَلّٰى مَعَ لَحْمِهِ اَوْجِلْدِهِ قَبْلَ الدِّبَاغَةِ فَيَجُوْزُ اِلَّا جِلْدُ الْخِنْزِيْرِ وَالْاٰدَمِيِّ فَاِنَّهُ اِذَا ذُبِحَ بِالتَّسْمِيَةِ لَايَطْهَرُ لَحْمُهُ وَلَاجِلْدُهُ وَلَوْ دُبِغَ جِلْدُهُ فَفِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ عَنْ اَصْحَابِنَا اَنَّهُ لَايَطْهَرُ وَعَلَيْهِ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ وَرُوِيَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ اَنَّهُ يَطْهَرُ وَيَجُوْزُ بَيْعُهُ اَمَّا الْاَرْوَاثُ وَالْاَخْشَاءُ فَكُلُّهَا نَجَسٌ نَجَاسَةً غَلِيْظَةً عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَعِنْدَهُمَا نِجَاسَةٌ خَفِيْفَةٌ وَفِيْ غُنْيَةِ الْفُقَهَآءِ بَوْلُ الْحِمَارِ وَخَرْءُ الدُّجَاجَةِ وَالْبَطِّ نَجَسٌ غَلِيْظَةٌ.

**ژباړه:** د نجاست دوه قسمونه دي ۱ نجاست غليظ، ۲ نجاسته خفيفه، غليظه لکه ګندګي، بولي، وينه، شراب، د سپي باقي، د خنزير خوښه، او د ده د تمام اجزاء او د هغو حيوانانو غوښي چي ماکول اللحم نه وي که چېري په بسم الله سره نه وي ذبحه، او چي کله په بسم الله سره ذبحه سي او څوک چي د دې غوښه يا د چمړې يا د دباغت څخه ترمخه لمونځ وکړي نو لمونځ يې جائز دی مګر خنزير او انسان چي کله په بسم الله سره ذبحه کړل سي نو هم د دوی غوښه او چمړه نه سي حلالېدی، که چېري د دې چمړې دباغت يې کړی وي نو زموږ د اصحابو په ظاهر روايت کي دی چي هغه نه پاکيږي او په دغه قول باندي عام فقهاء دي، د امام يوسف رحمه الله څخه

روايت کړل سوي دي چي پاکيږي او د دې بيعه جائز ده، خوشائي او کوبر وغيره
تول د حضرت امام ابوحنيفهؒ په نز نجاست غليظه دي او د دوی دواړو صاحبينو
په نز نجاست خفيفه دي، په غنية الفقهاء کي دی چي د خره بولي، د چرګي او ايلي
ګندګي تول نجاست غليظه دي .

**تشريح**: مصنفؒ چي کله د نجاست حکمي د بيان څخه فارغه سو نو د
نجاست حقيقي په بيان کولو سره وايي چي د نجاست حقيقي دوه قسمونه دي ا
نجاست غليظه چي د هغه مختلف مثالونه په متن کي پيش کړه سوه، په عربي لغت
کي نجاست د موټه پنډ ، او د سخت په معنٰی کي مستعمليږي، په کتب فقهه کي د
غلاظت سره چي کله د نجاست صفت راسي نو د شدت او سختۍ په معنٰی کي وي
يعني هغه نجاست چي په شدت سره د لمانځه کول منعه کوي لکه بولي وينه او يا
داسي بل شی د نجاست غليظه په مثالو کي دي، د مصنفؒ څخه يې نجو الکلب
بيان کړی دی نجو په لغت کي پاخانه او ګوز ته ويل کيږي او دلته مراد قی وهل دي
ولي چي د سپي پاخانه، بولي وبيزار د ګندګۍ په عموم په خپله اول راغلي دي.

دغه ډول د هغه حيوانانو غوښه هم د نجاست غليظه په حکم کي ده چي د هغه
غوښه خوړل حلال نه وي البته که چېري د بسم الله په ويلو سره يې ذبحه کی نو صرف
د جواز لمانځه تر حد پوري پاکيږي او خوړل يې بيا هم حرام دي، که چېري د چا په
جيب کي د داسي خره غوښه پرته وي چي هغه په بسم الله ويلو سره په شرعی طريقه
سره ذبح کړل سوی وي او لمونځ وکړي نو لمونځ يې جائز دی ولي چي د پاکېدو
لپاره دا ضروري نه ده چي هغه د خوراک لپاره هم حلال وي لکه څنګه چي خاوره
پاکه ده مګر خوراک يي جائز نه دی .

وَاَمَّا النَّجَاسَةُ الْخَفِيْفَةُ كَبَوْلِ مَايُؤْكَلُ لَحْمُ وَخُرْءِ مَالَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الطُّيُوْرِ فِيْ رِوَايَةِ الْهِنْدَوَانِيِّ عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَ مُحَمَّدٌ كِلَاهُمَا طَاهِرَانِ وَاَمَّا بَوْلُ الْهِرَّةِ فَفِيْ ظَاهِرِ الْمَذْهَبِ نَجَسٌ نِجَاسَةٌ غَلِيْظَةٌ وَاَمَّا خُرْءُ مَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الطُّيُوْرِ سِوَى الدُّجَاجَةِ وَالْبَطِّ وَالْاَوْزِ فَطَاهِرٌ كَالْحَمَامَةِ وَالْعُصْفُوْرِ وَنَحْوِهَا بِالْاِجْمَاعِ وَلَوْ وَقَعَ فِي الْمَآءِ لَايُفْسِدُهُ وَكَذَا بِعْرَةُ الْفَارَةِ اِذَا وَقَعَ فِي الدُّهْنِ لَا يُفْسِدُهُ اِذَاكَانَ قَلِيْلًا لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰى الْبِيْضَةُ اِذَا وَقَعَتْ مِنْ بَطْنِ الدُّجَاجَةِ فِي الْمَآءِ اَوْفِي الْمِرْقَةِ لَايُفْسِدُهُ وَكَذَا السُّخْلَةُ وَالْاِنْفَحَةُ اِذَا خَرَجَتْ مِنْ شَاةٍ مَيْتَةٍ لَايُفْسِدُهُ.

**ژباړه:** نجاست خفيفه چي کوم دی لکه څنګه چي د هغه حيوانانو بولې چي د هغه غوښه خوړل کيږي او د دغه مرغانو ګندګي چي د هغه غوښه نه خوړل کيږي په روايت د هندواني د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه، او امام محمد رحمه الله وايي چي دواړه پاک دي، د پيشي بولي په ظاهر مذهب کي نجاست غليظه دي، د هغه مرغانو ګندګي د کوم چي غوښه خوړل کيږي ماسوای د چرګي څخه، ايلی او مرغابي پاک دي لکه څنګه چي کوتره او چوغکه او د دوی په مثل نور مرغان بالاتفاق که چېري په اوبو کي ولوېږي نو نه يې فاسده وي، دغه ډول که چېري د موږک بچي په غوړو کي ولوېږي نو نجس نه دي چي کله کم وي د عموم بلوٰی په وجه، اګی چي کله د چرګي څخه په اوبو يا په ښوروا کي ولوېږي نو نه يي نجسه وي دغه ډول د بزې سيرلی او دهغه د معدې ورږه چي کله د مړې بزې څخه ووزي نو نه يي مرداره وي.

**تشريح:** د نجاست حقيقي دوهم قسم نجاست خفيفه دی، د خفيف معنٰی دد د سپک او دا نجاست هم د غليظه په مقابله کي د اثر کولو په اعتبار سره سپک دي،

نجاست خفیفه لکه د هغه حیوانانو بولي د کومو غوښه چي حلاله ده لکه غوا غوایي او پسه وغیره او دا د شیخینو رحمهم الله قول دی د امام محمد رحمه الله په نزد دوی بولي پاکي دي او د هغوی دلیل د عرنیینو حدیث دی چي علیه السلام هغوی ته د صدقې د حیوانانو د متیازو څښلو حکم کړی وو، شیخین وایي چي د عرنیینو علاج علیه السلام ته د وحي په ذریعه معلوم سوی وو او د علاج په طور یي د متیازو څښلو حکم ورکړی وو ،علیه السلام د عام حکم د میتازو څخه د ځان شغورلو حکم کړی دی او ویلي یې دي چي د میتازو څخه لیري اوسئ ولي چي عام عذاب د قبر د دې څخه پیدا کیږي .

دا حدیث په امام محمد رحمه الله باندي حجت دی ولي چي محرم مقدم وي پر محلل او د دې میتازو څخه اعراض هم ممکن دی ځکه چي په عموم بلوی کي هم نسته او د پیشي بولي هم د نورو حیوانانو په مثل مرداري دي، ځینو علماء وو د عموم بلوی په تحت د پیشي بولي پاکي شمیري، صاحب د فتح القدیر وایي چي د وچوولپاره په غوړولو کپړو باندي که چېري پیشي بولي وکړي نو د عموم بلوی په تحت به پاکي وګڼل سي، په نورو لوښو کي که چېري متیازي وکړي نو نجسي کیږي ولي چي د لوښو په پوښي سره پټول محفوظول ممکن دي، نو د دې لپاره په عموم بلوی کي نه دي .

دغه ډول د هغه مرغانو ګندګي د کومو غوښه چي حلاله ده لکه کوتره وغیره پاکه ده ولي چي د ډېر وخت څخه کوتري په مسجدو او په نورو مقدسو مقاماتو کي پالل کیږي، په حرمینو شریفینو کي هم کوتري په ډېر تعداد کي دي او د هغوی د ګندګی څخه اعراض ممکن نه دی، دغه ډول که چېري په طعام کي د موږک ګندګي ولوېږي او دومره زیاته نه وي چي په طعام کي د هغو بوی او ذائقه محسوسه سي نو د عموم بلوی په وجه پاک دی. په متن کي مصنف رحمه الله دوه نومونه ۱ سخله او ۲ انفخه

ذکرکړي دي، سخله د بزې نوزایده بچي ته ویل کیږي اوس مصنف رحمه الله وایي چي که چېري د بزي دا تازه پیدا سوی بچی د یوې مړې بزي څخه په راوتلو سره په اوبو کي ولوېږي نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نز دا اوبه نه دي مرداري که څه هم په دې بچي باندي څه رطوبت موجود وي دغه ډول چي کله د بزې کوچنی بچی تازه شدې خوري او د څه بل شي د خوړلو قابل نه وي نو صرف دا شدې په معده کي جمع کیږي او د پوچو پر ځای دغه د شیدو اجزاء په مجتمع شکل کي راوزي چي هغه ته په عربي کي انفخه ویل کیږي، چي د هغه اُردو معنٰی موږ د کتب لغت په مدد سره په وړو باندي کړیده نو دا د معدې څخه راوتلي وړږه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نز نجس نه دي او اوبه نه پاکه وي.

وَاَمَّا الْمَآءُ الْمُسْتَعْمَلُ فَنَجِسٌ نِجَاسَةً غَلِيْظَةً عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَعِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ نَجِسٌ نِجَاسَةً خَفِيْفَةً وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ طَاهِرٌ غَيْرُ طَهُوْرٍ وَبِهٖ اَخَذَ اَكْثَرُ الْمَشَايِخِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى وَالْمَآءُ الْمُسْتَعْمَلُ كُلُّ مَا اُزِيْلَ بِهٖ حَدَثٌ اَوِاسْتُعْمِلَ فِي الْبَدَنِ عَلٰى وَجْهِ الْقُرْبَةِ لَاعَلٰى وَجْهِ تَبَرُّدِ الْاَعْضَآءِ اِمْرَءَةٌ غَسَلَتِ الْقِدْرَ اَوِ الْقِصَاعَ اَوْيَدَهَا مِنَ الْوَسْخِ اَوِالْعَجِيْنِ لَايَصِيْرُ الْمَآءُ مُسْتَعْمَلاً.

**ژباړه:** مستعملي اوبه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نز نجاست غلیظه او د ابویوسف رحمه الله په نز نجاست خفیفه دی، د امام محمد رحمه الله په نز خپله پاکي دي او پاکونکي نه دي، په دغه باندي د اکثرو علماؤ عمل او په دغه باندي فتوی ده او مستعملي هر هغه اوبه دي چي په هغه سره یو حدث لیري کړل سوی وي یا په جسم باندي لپاره د حصول د ثواب استعمال سوی وي نه د ګرمی لیري کولو لپاره استعمال سوی وي، یوې ښځي په دیګ یا تالی کي خپل لاسونه د خیري یا د وړو

څخه پرېوتل نو په دې سره اوبه نه مستعملي کيږي.

**تشريح**: په کومو اوبو سره چي بې اودسه سړی اودس وکړي يا د جنابت څخه پاکي حاصله کړي نو دا اوبه مستعملي ګڼل کيږي چي کله يو سړی مثلاً د لاس پرېوللو په وخت کي د ګوتو د سرو څخه د څنګلو و طرف ته اوبه توی کړي نو دا د لاسو څخه ولويږي او په مځکه ولاړي سي نو د مستعملي کيدو حکم يې کيږي تر هغه وخته پوري چي په انساني جسم باندي وي مستعملي نه دي نو د دې لپاره که چېري په لاسوباندي موجودو اوبو باندي د سر مسحه وکړل سي نو جائز ده، دغه ډول که چېري څوک يو لوښی پرېولي او د لوښي پرېولو وروسته د لاسو خيري پرېولي او په لاسو په لوښو باندي ترمخه څه نجاست نه وو موجود او نه د لاس پرېوللو والا محدث وي نو په دې سره هم اوبه نه مستعمليږي دغه ډول که چېري جنب يا محدث سړی د لټولو لپاره په لوښي کي لاس داخل کړي او په لاسو باندي يې حقيقي نجاست نه وي نو اوبه پاکي دي دغه ډول که چېري يو بې اودسه سړی د اودس بغيره نور اعضاء پرېولل نو د صحيح قول مطابق په دې سره اوبه نه مستعملي کيږي او په دې سره اودس کول جائز دي، که چېري د غسل کولو په وخت کي په لوښي کي د جسم څخه د مستعملو اوبو څاڅکي ولويږي نو په دې سره اوبه نه نجسي کيږي البته که چېري دا اوبه په زيات مقدار کي په لوښي کي ولويږي نو په دې اوبو سره دي غسل نه کوي د مستعملو اوبو څښل مکروه دي البته مستعملي او نجسي اوبه حيوانانو ته د ورکولو يا فصلوته د ورکولو لپاره په استعمال کي را وړل جائز دي، د مفتی به قول مطابق مستعملي اوبه خپله پاکي دي او پاکونکي نه دي.

وَكُلُّ اِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهَرَ جَازَتِ الصَّلٰوةُ مَعَهُ اِلَّا جِلْدُالْخِنْزِيْرِ وَالْاٰدَمِيِّ وَذُكِرَ فِي الشَّرْحِ كُلُّ حَيْوَانٍ اِذَا ذُبِحَ بِالتَّسْمِيَةِ طَهَرَ جِلْدُهٗ وَلَحْمُهٗ وَشَحْمُهٗ وَجَمِيْعُ اَجْزَائِهٖ

سِوَى الْخِنْزِيْرِ وَالْاٰدَمِيِّ سَوَاءٌ كَانَ مَاكُوْلُ اللَّحْمِ اَوْغَيْرَ مَاكُوْلِ اللَّحْمِ وَجِلْدُ الْاٰدَمِيِّ اِذَا وَقَعَ مَقْدَارُ ظُفُرٍ فِي الْمَاءِ يُفْسِدُ الْمَآءَ وَالظُّفُرِ اِذَا وَقَعَ بِنَفْسِهٖ لَايُفْسِدُ وَفِي الْخَاقَانِيَّةِ كُلَّمَا كَانَ سُؤْرُهٗ نَجِسًا لَايَطْهَرُ لَحْمُهٗ وَشَحْمُهٗ وَجِلْدُهٗ بِالزَّكٰوةِ وَعَنْ مُحَمَّدٍ جِلْدُ الْكَلْبِ وَالذِّئْبِ يَطْهَرُ وَعَصَبُ الْمَيْتَةِ وَعَظْمُهَا وَقَرْنُهَا وَرِيْشُهَا وَصُوْفُهَا وَظُفُرُهَا وَشَعْرُهَا طَاهِرٌ اِذَالَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا دُسُوْمَةٌ وَاَمَّا جِلْدُ الْفِيْلِ فَيَطْهَرُ بِالدِّبَاغَةِ وَعَظْمُهٗ طَاهِرٌ يَجُوْزُ بَيْعُهٗ اِلَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ وَرُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ اِمْرَءَةٌ صَلَّتْ وَفِيْ عُنُقِهَا قَلَادَةٌ عَلَيْهَا سَنُّ اَسَدٍ اَوْكَلْبٍ اَوْثَعْلَبٍ جَازَتْ صَلٰوتُهَا بِخِلَافِ الْاٰدَمِيِّ وَالْخِنْزِيْرِ وَذَكَرَ الشَّيْخُ الْاِمَامُ الْاَسْبَانْكَتِيُّ فِيْ شَرْحِهِ السَّنْجَابُ اِذَا اُخْرِجَ مِنْ دَارِ الْحَرْبِ اِلَيْنَا وَعُلِمَ اَنَّهٗ مَدْبُوْغٌ بِوَدْكِ الْمَيْتَةِ لَاتَجُوْزُ الصَّلٰوةُ بِهٖ مَالَمْ يُغْسَلْ وَاِنْ عُلِمَ اَنَّهٗ مَدْبُوْغٌ بِشَيْءٍ طَاهِرٍ جَازَتِ الصَّلٰوةُ بِهٖ وَاِنْ لَّمْ يُغْسَلْ وَاِنْ شَكَّ فَالْاَفْضَلُ اَنْ يُّغْسَلَ.

**ژباړه:** هرهغه پوست چي رنګ سي حلال دی او لمونځ ورسره روا دی، مګر نه د خنزير او انسان پوست، په شرحه اسبيجابی کي ذکرسوي دي چي هر حيوان کله په بسم الله سره ذبحه کړل سي نو د هغه پوست، غوښه، وازګه او ټوله اعضائي پاکيږي بغير د خنزير او انسان څخه، که د هغه غوښه خوړل کيږي او که نه، د انسان پوست که چيري د يو نوک په مقدار په يولوښي کي ولويږي نو اوبه ناپاکي کوي، که چيري نوک خپله ولويږي نو نه ناپاکي کيږي، په خاقانيه کي ذکر دي چي د هرهغه شي پسخورده ناپاکه وي نو په ذبحي کولو سره د هغه پوست، غوښه او وازګه نه

پاکیږي، د امام محمد رحمه الله څخه روایت دی چې د سپي یا د لیوه پوست په ذبح بسم الله سره پاکیږي، د مردار سوي حیوان پلې، هډوکي، شکر، وزر، وړی، نوکان او وریښتان پاک دي تر هغه وخته پورې چې په هغو باندې غوړیزګي نه وي، د فیل پوست په رنګ سره پاکیږي، د امام محمد رحمه الله څخه ماسوای نور د ټولو په نز د هغه هډوکي پاک دي او د دوی بیعه جائز ده، د امام محمد رحمه الله څخه روایت سوی دی چې یوه ښځه لمونځ وکړي او د هغې په غاړه کې داسي هار وي چې هغه د شیر، پيي یا د ګیدړي غاښونه وي نو د هغې لمونځ جائز دی په خلاف د انسان او خنزیر. شیخ الامام الاسبانکتی په خپله شرحه کې ذکر کړي دي چې د موژې پوست چې کله د دارالکفر څخه زموږ وطرف ته درآمد کړل سي او دا څرګنده وي چې مردار په سپیدو سره د دې دباغت کړل سوی دی نو په دې باندې لمونځ نه دی جائز تر هغه وخته پورې چې پرې نه وي او چې کله دا معلومه وي چې په پاک شي سره یې د دې دباغت کړی دی نو پر هغه بغیر د پرېوللو لمونځ جائز دی که چېرې مشکوک وي نو بهتره ده چې پرېولل سي.

**تشریح**: د انسان او خنزیر بغیره نورد ټولو حیوانانو پوستونه په دباغت سره پاکیږي او په دوی سره لمونځ کول جائز دي که څه هم د اغوستلو په حالت کې وي یا د مصلی په طور استعمال کړل سي او د پوست دباغت دادی چې هغه داډول وچ کړل سي چې د هغه بوی او مردار رطوبات یې ټوله ختم سي، چې د هغه طریقه په آئنده عبارت کې به بیان سي، چونکې خنزیر نجس العین دی نو د دې لپاره د هغه پوست په دباغت سره هم نه پاکیږي، انسان اشرف او عزتمند دی د دې لپاره د هغه د یوه جزء څخه ګټه اخیستل نه ده جائز، که چېرې یو حیوان مردار سي نو د هغه وریښتان، وزرونه، وړی، هډوکي نوکان او پوست په استعمال کې راوړل کېدی سي لکه چې د عبدالله بن عباس رضی الله عنه په روایت کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم

مرداره غوښه حرامه کړي ده او د هغه په وريښتانو او وړی کي هيڅ قباحت نسته، رغه ډول د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي عليه السلام به د فيل د هډوکو څخه په جوړي سوي ږمونځي باندي خپل سرمبارک ږمونځ کوی او په دې احاديثو کي دا مسئله اظهر من الشمس ده چي د مردارو حيوانانو د دغو اجزاء وو څخه ګټه اخستل روادي چي په هغه کي په حالت د ژوند هم د زندګۍ حلول نه وي جائز.

وَالدِّبَاغَةُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ حَقِيْقِيَّةٌ وَحُكْمِيَّةٌ فَالْحَقِيْقِيَّةُ اَنْ يُّدْبَغَ بِشَيْءٍ طَاهِرٍ كَالْعَفْصِ وَالسَّبْخَةِ وَغَيْرِهِمَا وَلَوْ اَصَابَهُ الْمَآءُ بَعْدَ الدِّبَاغَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ فَابْتَلَّ لَايَعُوْدُ نَجَسًا اَمَّا الْحُكْمِيَّةُ فَاَنْ يُّخْرَجَ الْجِلْدُ عَنْ حُكْمِ الْفَسَادِ اِمَّا بِالتَّتْرِيْبِ اَوْبِالتَّشْمِيْسِ اَوْ بِالْقَآئِهِ فِي الرِّيْحِ وَلَوْ اَصَابَهُ بَعْدَ الدِّبَاغَةِ الْحُكْمِيَّةِ مَآءٌ فَابْتَلَّ فَعَنْ اَبِىْ حَنِيْفَةَ فِيْهِ رَوَايَتَانِ رِوَايَةٍ يَعُوْدُ نَجَسًا وَفِىْ رِوَايَةٍ لَايَعُوْدُ نَجَسًا وَكَذَا الثَّوْبُ اِذَا اَصَابَهُ الْمَنِىُّ فَفُرِكَ وَكَذَا الْاَرْضُ اِذَا اَصَابَهَا نِجَاسَةٌ وَجَفَّتْ وَكَذَا الْبِئْرُ اِذَا تَنَجَّسَتْ فَغَارَتْ ثُمَّ عَادَمَآئُهَا وَفِىْ فَتَاوٰى قَاضِيْخَانَ اَنَّ الْاَظْهَرَ فِى الْبِئْرِ اَنْ يَّعُوْدَ نَجَسًا وَذُكِرَ فِى الْمُحِيْطِ الْاَظْهَرُ اَنْ لَّايَعُوْدَ نَجَسًا.

**ژباړه:** دباغت پر دوه قسمه حقيقي او حکمي باندي مشتمل دی، دباغت حقيقي دادی چي په يو پاک شي لکه ګل مازو او شوره وغيره سره دباغت وکړل سي که چېري د دباغت حقيقي وروسته پوست په اوبو سره لوند سي نو دوباره نه پليتيږي او حکمي دادی چي پوست د نجاست څخه په خاوري مږلو سره يا په لمر کي وچېدو يا په هوا کي اچولو سره وچ کړل سي که چېري د دباغت حکمي وروسته په اوبو سره لوندسي نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله څخه په دې باره کي دوه روايات دي. په

یوه روایت کي پاک او په دوهم کي ناپاکیږي، د غه ډول په کالو باندي د من
لګیدو وروسته وموږل سي، او مځکي ته چي کله نجاست ورسیږي او وچ سي، دغ
ډول څاه د ناپاکیدو وروسته چي کله د هغه اوبه لاندي سي او بیا را وګرځي، پ
فتاوٰی قاضیخان کي دي چي په څاه کي ډېر ظاهرقولونه دادي چي ناپاکیږي او پ
محیط کي دی چي ډېر قولونه دادي چي دوباره نه پاکیږي ۔

**تشریح**: مصنف رحمه الله په دې عبارت کي د دباغت د اقسامو بیانولو سره وايي چي
د باغت پر دوه قسمه دي، د پوست رنګول او وچول د پاکو دوایانو په ذریعه سره چي
کیږي لکه د کیکر بیج او پاڼوسره، په مالګي سره، یا د شوره وغیره سره چي کیږي نو
دا دباغت حقیقي دی که چېري بغیر د دوایانو صرف په خاوري وهلو سره یا د لمر په
ذریعه سره کیږي نو دا دباغت حکمي دی، دباغت صرف د احنافو رحمهم الله په نز
معتبر دی، په کالو باندي د مني لګیدو وروسته که چېري وچ سي نو صرف د
وموږل سي، د هغه وروسته چي بیا کېږه په اوبو سره لنده سي نو دوباره نه پاکیږي، د
مځکي، پوست، او څاه په باره کي مفتٰی به قول دادی چي دوباره نه پاکیږي ۔

# فصل في البير

(دا فصل د ځاه په بيان کي دی)

اذا وَقَعَتْ فِي الْبِئْرِ نِجَاسَةٌ نُزِحَتْ وَكَانَ نَزْحُ مَافِيْهَا مِنَ الْمَآءِ طَهَارَةً لَهَا وَإِنْ وَقَعَتْ فِيْهَا فَارَةٌ اَوْعَصْفُوْرَةٌ اَوْ نَحْوُ هُمَا ثُمَّ مَاتَتْ يُنْزَحُ مِنْهَا عِشْرُوْنَ دَلْوًا اِلٰى ثَلٰثِيْنَ وَاِنْ مَاتَتْ فِيْهَا حَمَامَةٌ اَوْ دُجَاجَةٌ اَوْسِنَّوْرٌ يُنْزَحُ مِنْهَا اَرْبَعُوْنَ دَلْوًا اَوْخَمْسُوْنَ اِلٰى سِتِّيْنَ وَاِنْ مَاتَتْ فِيْهَا شَاةٌ اَوْكَلْبٌ اَوْاٰدَمِيٌّ اَوْخِنْزِيْرٌ يُنْزَحُ جَمِيْعُ الْمَآءِ وَكَذَا يُنْزَحُ اِنِ اسْتُخْرِجَ الْكَلْبُ وَالْخِنْزِيْرُ حَيًّا وَاِنْ لَّمْ يُصِبْ فَمُهُ الْمَآءُ وَكُلُّ حَيَوَانٍ اِذَا اُخْرِجَ حَيًّا وَقَدْ اَصَابَ الْمَاءُ فَمُهُ يُنْظَرُ اِنْ كَانَ سُؤْرُهُ طَاهِرًا لَايَتَنَجَّسُ الْمَآءُ وَلٰكِنْ لَّايَتَوَضَّأُ بِهِ اِحْتِيَاطًا وَاِنْ تَتَوَضَّاَ جَازَ وَاِنْكَانَ سُؤْرُهُ نَجِسًا يُنْزَحُ كُلُّهُ وَاِنْكَانَ سُؤْرُهُ مَكْرُوْهًا يُنْزَحُ عِشْرُوْنَ دَلْوًا وَنَحْوُهَا اِحْتِيَاطًا وَاِنْكَانَ سُؤْرُهُ مَشْكُوْكًا يُنْزَحُ كُلُّهُ اَيْضًا كَذَا رُوِيَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ فِي الْفَتَاوٰى وَاِنِ انْتَفَخَ الْحَيَوَانُ فِيْهَا اَوْ تَفَسَّخَ يُنْزَحُ جَمِيْعُ مَافِيْهَا مِنَ الْمَآءِ صَغُرَ الْحَيَوَانُ اَوْكَبُرَ وَاِنْ وَجَدُوْا فِيْهَا فَارَةً مَيْتَةً وَلَا يَدْرُوْا اَنَّهَا مَتٰى وَقَعَتْ وَلَمْ يَتَفَسَّخْ وَلَمْ يَنْتَفِخْ اَعَادُوْا صَلٰوةَ يَوْمٍ وَّلَيْلَةٍ اِذَاكَانُوْا تَوَضَّأُوْا مِنْهَا وَغَسَلُوْا كُلَّ شَيْءٍ اَصَابَهُ مَآءُهَا وَاِنْ كَانَتْ انْتَفَخَتْ اَوْتَفَسَّخَتْ اَعَادُوْا صَلٰوةَ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ وَّلَيَالِيْهَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا لَيْسَ عَلَيْهِمْ اِعَادَةُ شَيْءٍ حَتّٰى يَتَحَقَّقُوْا اَنَّهَا مَتٰى وَقَعَتْ.

**ژباړه:** چي کله په ځاه کي نجاست ولويږي نو را ايستل کيږي به او موجودي اوبه

را ایستل د څاه لپاره هم پاکي ده، که چېري په څاه کي موږک یا چوغکه او د دې په مثل یو بل شی ورولوېږي او مړ سي نو د شلو څولغو څخه یا تر دېرشو څولغو پوري به را ایستل کیږي، که کوتره، چرګه، پیشي په هغه کي مړه سي نو د څلویښتو یا پنځوسو څخه تر شپیتو پوري څولغې به را ایستل کیږي، او که چېري په هغه کي بزه، سپی، انسان یا خنزیر مړ سي نو ټولي اوبه به را ایستل کیږي، دغه ډول به ټولي اوبه را ایستل کیږي که چېري سپی او خنزیر ژوندی را ویستل سي که څه هم هغوی وخولو ته اوبه نه وي رسېدلي، هر حیوان چي کله ژوندی راویستل سي او اوبه د هغه خولې ته نه وي رسېدلي نو کتل کیږي که چېري د هغه پسخورده پاکه وي نو اوبه نه نجسي کېږي مګر په هغو دي احتیاطاً اودس نه کوي که چېري وکړل سي نو جائز دی، او که پسخورده یې ناپاکه وي نو ټولي اوبه را ایستل کیږي، که چېري یې پس خورده مکروه وي نو احتیاطاً شل څولغې یا د هغوی په مقدار کي دي وباسل سي، که چېري یې پسخورده مشکوکه وي نو ټولي اوبه راایستل کیږي، دغه ډول د ابویوسف رحمه الله څخه په فتاوی کي مروي دي، که چېري حیوان په هغه کي په پړسیدو سره ټکړې ټکړې سي نو ټولي اوبه راایستل کیږي که څه هم حیوان کوچنی وي او که غټ، او که چېري په هغه کي مړسوی موږک پیدا کړي او معلوم نه وي چي د څه وخت څخه پرورت دی او نه رزه رزه سوی یې او نه پړسېدلی یې نو د یوې ورځي او شپې لمونځونه دي را وګرځوي که چېري یې په دې اوبو سره اودسونه کړي وه. او هغه ټوله شیان دي پرېوللي چي په دې اوبه سره یې پرېولي وه، او که په پړسېدو سره زره زره سوی وي نو د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نز د درو ورځو او شپو لمونځه دي را وګرځوي، صاحبین وایي چي ترڅه وخته پوري دا ثابته نه وي چي کله ور لوېدلی دی نو پر هغوی باندي هیڅ اعاده نسته.

**تشریح**: چونکي د څاه نجاست هم نجاست حقیقي دی د دې لپاره مصنف رحمه الله:

نجاست حقيقي بيان کولو وروسته د څاه احکام بيانول شروع کړل، مصنف رحمه الله وايي چي کله په څاه کي يو نجاست ولوېږي نو د څاه اوبه به را ايستل کيږي د اوبو را ايستلو وروسته د څاه ديوالونه، څولغه او رسۍ په خپله پاکيږي، نجاست کله کوچنی وي او کله غټ په دا لحاظ مصنف رحمه الله د رواياتو صحيحو په رڼا کي وايي چي که چېري په څاه کي موږک، چوغکه يا د جسامت په لحاظ د دوی په مثل يوشی ولوېږي نو په وجوبي لحاظ به شل څولغې راباسي البته د شلو څولغو پوري را ايستل مستحب دي .

دغه ډول په متن کي ذکرسوي دي چي اول عدد په طريقه د وجوب او دوهم عدد په طريقه د استحباب دی، او پوه سه انسان که چېري په څاه کي ولوېږي او مړ سي نو د لوېدلي شي د را ايستلو وروسته د څاه ټولي اوبه را ايستل ضروري دي لکه څنګه چي امام دار قطني رحمه الله په ابن سيرين کي د ابن سيرين څخه روايت کړی دی چي يو حبشي د آب زم زم په څاه کي ولويدی مړ سو نو حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حبشي د را ايستلو حکم وکړ او دا حکم يې هم وکړ چي د څاه اوبه را وباسی د زم زم د اوبو را ايستلو سره چي کله د حجر اسود له طرف څخه بهيدونکي چينه غالبه سوه نو ده په تاراو په سکه ويلي کولو سره د بندولو حکم يې وکړ حتی چي د څاه صفايي وسوه نو بيايي چشمه جاري کړه، البته فقهاء کرامو د هغه څاه په باره کي چي د کوم خالي کول ممکن نه وي ويلي دي چي د انسان، سپي، او پسه وغيره په صورت کي د دوو سوو څولغو په را ايستلو سره څاه پاکيږي چي د هغه بيان په را روان عبارت کي راځي، د څاه څولغه درميانه پکار ده نه ډېره غټه وي او نه ډېره کوچنۍ ځيني فقهاء وايي چي په کومه څولغه د متوسط دانې والا غله يوه صاع راتلای سي نو دغه څولغه د څاه په پاکولو کي معتبره ده او که چېري سپی، خنزير ژوندی هم را ووزي بيا هم ټولي اوبه را ايستل ضروري دي که څه هم د هغو خولې ته اوبه نه وي

رسيدلي، خنزير خو د دې لپاره چي هغه نجس العين دی او دغه ډول سپی هم د ځينو علماؤ په نز نجس العين دی اګرچي د صحيح قول په مطابق صرف نجس دی لکه څنګه چي صاحب هدايه په دې تصريح کړي ده د خنزير او سپي علاوه چي بل حيوان په اوبو کي ولوېږي او ژوندی را وباسل سي او اوبه د هغه د خولې پوري رسېدلي وي نه به کتل کيږي که چېري د هغه پسخورده پاکه وي نو اوبه هم پاکي دي مګر احتياطاً په دغه اوبو دي اودس نه کوي ولي چي کيدی سي په دغه حيوان باندي نور ظاهري نجاست هم وو، که چېري پسخورده نجسه وي نو د ټولو اوبو را ايستل ضروري دي، که پسخورده مکروه وي نو دي شل څولغې را وباسل سي که چېري پسخورده مشکوکه وي نو د نجس ډول ټوله اوبه دي را وباسي ولي چي په عدم طهوريت کي دواړي برابري دي.

که چېري يو حيوان په څاه يا په ټانکۍ کي پړسېدلی يا ټوکړې ټوکړې پيدا سي او دا معلومه نه وي چي د څه وخت څخه ورلوېدلی دی نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نز په درو ورځو او شپو کي په دغه اوبو سره چي يې څومره لمونځونه کړي وي د هغو راګرځول ضروري دي ولي چي د حيوان پړسېدل د دې خبري دليل دی چي دا په اوبو کي د ډېرو ورځو څخه لوېدلی دی او د کثير ورځو قليل مقدار درې ورځي دی، د دې لپاره فقط د درو ورځو لمونځونه راګرځول کافي دي او صاحبين رحمهم الله وايي چي کېدی سي دا حيوان په مځکه پړسېدلی وي هوا يا يو مرغه دی په دې اوبو کي اچولی وي نو تر څه وخت پوري چي په يقين سره معلومه نه وي تر هغه وخته پوري په داخلګو د لمونځو راګرځول واجب نه دي.

وَإِذَا وَقَعَتْ بِعْرَةٌ أَوْبِعْرَتَانِ مِنْ بِعَرِ الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ فِي الْبِئْرِ فَأُخْرِجَتْ قَبْلَ التَّفَسُّخِ لَمْ يَتَنَجَّسْ وَإِنْ وَقَعَتْ وَأُخْرِجَتْ بَعْدَ التَّفَسُّخِ يَتَنَجَّسُ الْبِئْرُ وَإِنْ وَقَعَتْ فِي اللَّبَنِ

وَقْتَ الْحَلْبِ فَأُخْرِجَتْ حِيْنَ وَقَعَتْ لَمْ يَتَنَجَّسِ اللَّبَنُ اَيْضًا وَاِنْ اُخْرِجَتْ بَعْدَ تَفَسُّخِهٖ يَتَنَجَّسُ اللَّبَنُ اِسْتِحْسَانًا وَرُوِيَ عَنْ اَبِيْحٍ (رح) الْبِعْرَةُ اِذَاكَانَتْ يَابِسَةً لَمْ تُفْسِدِ الْمَآءَ مَالَمْ يَسْتَكْثِرْهُ النَّاسُ لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰى وَفِي الرَّطْبَةِ وَالْمُنْكَسِرَةِ الْيَابِسَةِ اِخْتِلَافٌ بَيْنَ الْمَشَايِخِ بَعْضُهُمْ اَفْتٰى بِالتَّنَجُّسِ وَبَعْضُهُمْ فَرَّقُوْا بَيْنَ الرَّطْبَةِ وَالْيَابِسَةِ الْمُنْكَسِرَةِ وَبَعْضُهُمْ سَوّٰى بَيْنَ الرَّطْبَةِ وَالْيَابِسَةِ وَالْمُنْكَسِرَةِ وَاَمَّا الْاَوْرَاثُ وَالْاَخْثَاءُ فَبِمَنْزِلَةِ الْمُنْكَسِرَةِ وَاَكْثَرُ الْمَشَايِخِ عَلٰى اَنَّهٗ تُعْتَبَرُ فِيْهِ الضَّرُوْرَةُ الْعَامَّةُ وَالْبَلْوٰى اِنْ كَانَ فِيْهِ ضَرُوْرَةٌ وَالْبَلْوٰى لَايُحْكَمُ بِالنِّجَاسَةِ لِلضَّرُوْرَةِ وَاِلَّا فَلَا وَالرَّوْثُ اِذَاكَانَ صُلْبًا مُتَاَكِّدًا فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ الْبِعْرَةِ وَاِنْ وَقَعَ خُرْءُ الْحَمَامَةِ اَوِ الْعُصْفُوْرَةِ فِيْهَا لَمْ يُفْسِدِ الْمَآءَ وَهٰذَا مَذْهَبُنَا وَاِنْ وَقَعَ خُرْءُ الدُّجَاجَةِ اَفْسَدَهٗ وَكَذَا خُرْءُ الْبَطِّ وَالْاَوْزِ خُرْءُ الْخَفَاشِ وَبَوْلُهٗ لَايُفْسِدُهٗ وَكَذَا زَرْقُ مَالَا يُؤْكَلُ لَحْمُهٗ مِنَ الطُّيُوْرِ فَاِنَّهٗ طَاهِرٌ عِنْدَهُمَا خِلَافًا لِّمُحَمَّدٍ وَقَالَ بَعْضُهُمْ رُوِيَ عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ اَنَّ زَرْقَ سِبَاعِ الطُّيُوْرِ نَجَسٌ لَايُفْسِدُ الثَّوْبَ اِلَّا اِذَافَحُشَ وَيُفْسِدُ الْمَآءَ وَاِنْ قَلَّ وَلَايُفْسِدُ الْمَآءَ الْكَثِيْرَ وَيُفْسِدُ الْاَوَانِيْ وَاِنْ قَلَّ وَلَايُفْسِدُ مَآءَ الْبِيْرِ.

**ژباړه:** که چېري پسه یا غوایي په څاه کي بولي وکړي نو د شیخینو په نز مرداریږي مګر د امام محمد رحمه الله په نز نه مرداریږي، که چېري په څاه کي د وینې یا شراب څاڅکي ولویږي نو د څاه ټولي اوبه به را ایستل کیږي او په ذخیره کي دي چي یو جنب د څاه څخه یوه څولغه را ویستله او په سر یي توی کړه بیا یي بله، بیا د

هغه د جسم څخه په څاه کي قطرې ولوېدې نو د ضرورت په بنا نجس کيږي نه، که
چيري جنب په څاه کي ولوېدی يا په خپله د څولغې د را ايستلو لپاره داخل سو نو
ابو حنيفه رحمه الله ويلي دي چي سړی جنب دی او اوبه نجسي دي او د يوه روايت
مطابق چي کله خوله پريمنځي او په پوزه کي اوبه واچوي نو د جنابت څخه وزي او
يا د مستعملو اوبو په سبب بيا نجس کيږي، نو د دې روايت پر بنا باندي د ده لپاره
قرائت د قرآن د جنابت څخه وتو په وجه جائز دی او ابو يوسف رحمه الله ويلي دي چي
سړی جنب دی او اوبه پاکي دي، امام محمد رحمه الله ويلي دي چي دواړه پاک دي او
دا هلته ده چي د هغه په بدن يا په کپړو باندي نجاست حقيقي نه وي او که چيري د
هغه په بدن يا په کپړو باندي نجاست حقيقي وي نو بالاتفاق اوبه ناپاکي دي.

وَاِنْ بَالَتْ شَاةٌ اَوْبَقَرَةٌ فِي الْبِيْرِ تَنَجَّسُ عِنْدَهُمَا اِلَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ وَاِنْ قَطرَتْ فِي الْبِيْرِ دَمٌ اَوْخَمْرٌ يُنْزَحُ مَآءُ الْبِيْرِ كُلُّهُ وَفِي الذَّخِيْرَةِ جُنُبٌ نَزَحَ مِنَ الْبِيْرِ دَلْوًا فَصَبَّ عَلٰى رَاْسِهِ ثُمَّ اسْتَقٰى دَلْوًا اٰخَرَ فَتَقَاطَرَ مِنْ جَسَدِهٖ فِي الْبِيْرِ لَايَتَنَجَّسُ لِلضَّرُوْرَةِ وَاِنْ وَقَعَ جُنُبٌ اَوْدَخَلَ فِيْهَا لِطَلَبِ الدَّلْوِ قَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ اَلرَّجُلُ جُنُبٌ وَالْمَآءُ نَجَسٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ يَخْرُجُ مِنَ الْجَنَابَةِ اِذَا تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثُمَّ يَتَنَجَّسُ بِسَبَبِ الْمَآءِ الْمُسْتَعْمَلِ فَعَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ يَجُوْزُ لَهٗ اَنْ يَّقْرَءَ الْقُرْاٰنَ لِخُرُوْجِهٖ عَنِ الْجَنَابَةِ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ الرَّجُلُ جُنُبٌ وَالْمَآءُ طَاهِرٌ وَقَالَ مُحَمَّدٌ كِلَاهُمَا طَاهِرَانِ هٰذَا اِذَا لَمْ يَكُنْ عَلٰى بَدَنِهٖ اَوْ ثَوْبِهٖ نِجَاسَةٌ حَقِيْقِيَّةٌ وَاِنْ كَانَتْ عَلٰى بَدَنِهٖ اَوْثَوْبِهٖ نِجَاسَةٌ تَنَجَّسَ الْمَآءُ بِالْاِجْمَاعِ.

**ژباړه:** غوايې، پسه بزه يا د دوی په مثل نور حيوانان چي ماکول اللحم وي په څاه

کي بولي وکړي نو د څاه اوبه نجسي کيږي ولي چي د دې څخه حفاظت ممکن دی، امام محمد بن حسين شيباني رحمه الله په نز د ماکول اللحم حيوانانو بولي پاکي دي د دې لپاره څاه نه مرداريږي، که چېري شراب يا د هغه په مثل نور نجاست غليظه په لږ مقدار کي په څاه کي ولويږي نو چونکي د څاه اوبه د قليل په حکم دي .د دې لپاره که يوه قطره نجاست هم وي نو څاه ناپاکه وي .د څاه ټولي اوبه به راباسل کيږي .

که يو جنب د څاه په غاړه ولمبيږي او د هغه د جسم څخه د لمبيدو په وخت کي څاڅکي په څاه کي ولويږي نو څاه نه مرداريږي ولي چي دا عموم بلوٰی دی او د دې څخه احتراز کول مشکل دي،که چېري يو جنب انسان په څاه کي په غلطۍ سره ولويږي يا د څه ضرورت پر بنا از خود داخل سي او د غسل اودس کولو په نيت نه سي داخل نو د دې په باره کي د آئمه احنافو مختلف اقوال دي، چي هغه صاحب د کنزالدقائق په مختصر الفاظو کي" ومسئلة البير جحط "سره تعبير کړي دی، امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چي انسان په خپل حالت د جنابت کي د اول رنګه پاته دی البته اوبه د د جسم څخه اخلاط په وجه نجسي سوي ولي چي مستعملي اوبه د ده په نز نجسي دي او د ده په يوه روايت کي دا حکم بيان کړل سوی دی چي که چېري دا سړی خوله پريمنځي او په پوزه کي اوبه واچوي نو د حکم جنابت څخه ووتی صرف د نجسو اوبو په استعمال سره د هغه جسم ناپاک دی، په دې باندي تفريح کولو سره مصنف رحمه الله ويلي دي چي دې سړي ته د قرآن پاک تلاوت د دې لپاره جائز دی چي دا سړی د حالت جنابت څخه ووتی، فقط د هغه وجود نجاست حقيقي يعني د مستعملو اوبو سره نجس دی، او فقط د نجس لپاره د قرآن پاک تلاوت جائز دی، د مفتٰی به قول مطابق مستعملي اوبه نجسي نه دي، د دې لپاره دا سړی د حالت جنابت څخه په وتولو سره مکمل پاک دی او دغه قول صاحب د هدايې هم اختيار کړی دي ، د امام يوسف رحمه الله په نز دواړه يعني سړی او اوبه په خپل خپل حالت باقي دي، سړی

په اول ډول باندي اوس هم په حالت کي د جنابت دی او اوبه د اول په مثل اوس هم پاکي دي ولي چي د ده په نز د پاکي لپاره اوبه په اندام تويول شرط دي نو په مذکوره صورت کي دا شرط نه پوره کيږي د دې لپاره چي کله ازاله د نجاست نه وسوه نو دواړه په خپل خپل حالت پاته سوه، د امام محمد رحمه الله په نز دوړاه يعني سړی او اوبه دواړه د دې لپاره پاک دي چي په غسل او اودس کولو کي نيت ضروري نه دی کله چي بغيره نيته دا سړی په اوبو کي ولوېدی نو بيا هم پاک سو او اوبه د دې لپاره پاکي دي چي د امام محمد رحمه الله په نز د اوبو مستعمليدو لپاره د قربت نيت نه رالی نو اوبه هم نه سوې مستعملي نو ځکه هغه هم پاک پاته سو، په طهارت او په غير طهارت کي چي کوم اختلاف دی دا هلته دی چي کله په دا سړی باندي څه ظاهري نجاست نه وي او که چيري وي نو بلا اختلافه د ټولو آئمهؤ په اتفاق اوبه نجسي دي.

وَلَوْ وَقَعَتْ اَكْثَرَ مِنْ فَارَةٍ وَاحِدَةٍ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ اَنَّهُ قَالَ اِلٰى اَرْبَعٍ تَلْزَمُ عِشْرُوْنَ دَلْوًا اَوْثَلٰثُوْنَ وَاِنْكَانَتْ خَمْسًا يُنْزَحُ اَرْبَعُوْنَ دَلْوًا اَوْخَمْسُوْنَ وَاِنْكَانَتْ سِتًّا يُنْزَحُ سِتُّوْنَ دَلْوًا اَوْسَبْعُوْنَ اِلٰى تِسْعِيْنَ فَاِذَا كَانَ عَشْرًا يُنْزَحُ مَآءُ الْبِيْرِ كُلُّهُ وَاِنْكَانَتْ الْبِيْرُ مَعِيْنًا لَايُمْكِنُ نَزْحُهَا اَخْرَجُوْا مِقْدَارَ مَاكَانَ فِيْهَا مِنَ الْمَآءِ ثُمَّ اخْتَلَفُوْا كَيْفَ يُقَدَّرُ قَالَ بَعْضُهُمْ تُحْفَرُ بِجَنْبِهِ مِثْلَ عُمْقِ الْمَآءِ وَعَرْضِهٖ فَيُنْزَحُ الْمَآءُ حَتّٰى تَمْلَاَ الْحُفَيْرَةُ قَالَ بَعْضُهُمْ يَحْكُمُ ذَوَاعَدْلٍ فَيُنْزَحُ بِحُكْمِهِمَا وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ قَالَ يُنْزَحُ مِائَتَا دَلْوٍ اِلٰى ثَلٰثِمِائَةَ دَلْوٍ وَالْفَتْوٰى عَلَيْهِ وَاِنْ نُزِحَ بِوُقُوْعِ الْفَارَةِ عِشْرُوْنَ دَلْوًا اَوْثَلٰثُوْ طَهَرَ الدَّلْوُ وَالرِّشَآءُ وَمَوْتُ مَالَيْسَ لَهُ دَمٌ سَائِلٌ لَايُنَجِّسُ الْمَآءُ وَلَاغَيْرَهٗ

كَالْاَشْرِبَةِ وَالْخَلِّ وَالْمِرْقِ كَالْبَقِّ وَالذُّبَابِ وَالزَّنَابِيْرِ وَالْعَقْرَبِ وَكَذَا مَوْتُ مَايَعِيْشُ الْمَآءَ اِذَامَاتَ فِي الْمَآءِ كَالسَّمَكِ وَالضِّفْدَعِ وَالسَّرْطَانِ وَاِنْ مَاتَ فِيْ غَيْرِ الْمَآءِ اَمَّا السَّمَكُ فَاِنَّهُ لَايُنَجِسُهُ بِلَا خِلَافٍ وَاَمَّا الضِّفْدَعُ اِذَآمَاتَ فِي الْعَصِيْرِ فَقَدِ اخْتَلَفَ الْمُتَاَخِّرُوْنَ وَاَكْثَرُهُمْ عَلٰى اَنَّهُ يُنَجِّسُ وَذَكَرَ الْاِسْبِيْجَابِيُّ فِيْ شَرْحِهِ وَمَايَعِيْشُ فِي الْمَآءِ مِمَّا لَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ اِذَامَاتَ فِي الْمَآءِ وَتَفَسَّخَتْ اَوِانْتَفَخَتْ فَاِنَّهُ يَكْرَهُ شُرْبَ ذٰلِكَ الْمَآءِ وَاَمَّا الْحَيَّةُ الْبَرِيَّةُ اِذَامَاتَتْ فِي الْمَآءِ تُفْسِدُ الْمَآءَ وَكَذَا الْحَيَّةُ الْمَآئِيَّةِ اِذَاكَانَتْ كَبِيْرَةً لَهَا دَمٌ سَآئِلٌ وَكَذَا الْوَزَغَةُ اِذَآكَانَتْ كَبِيْرَةً لَهَادَمٌ سَائِلٌ.

**ژباړه:** که چېري د يوه څخه زيات موږکان ورولويږي نو ابو يوسف رحمه الله ويلي دي چي تر څلورو پوري د لويدو په صورت کي شل يا دېرش څولغوې راايستل لازم دي که چېري پنځه وي څلويښت يا پنځوس که چېري شپږ وي نو د شپيته يا اويا څولغو پوري، چي کله لس سوه نو د ټوله څاه اوبه به را ايستل کيږي که چېري څاه چينه داره وي او خالي کول يي ممکن نه وي نو د موجودو اوبو په مقدار به را ايستل کيږي، يا علماؤ اختلاف وکړ چي اندازه به څنګه معلومه کړي، ځينو ويلي دي چي د دې څاه په اړخ باندي د څاه والي او پراخوالی په مقدار دي بل څاه وکنبل سي يا دي د دې څاه څخه اوبه راوباسي تر هغه وخته پوري چي هغه بل څاه ډک سي، او ځينو ويلي دي چي د ارباب د عقل دي فيصله وکړي يا د هغوی د فيصلي مطابق اوبه دي را وکاږي ، د امام محمد رحمه الله څخه روايت دی چي د دوه سوه څخه بيا تر دروسوو پوري څولغې دي راوباسي او په دغه باندي فتوٰی ده، که چېري د موږک په لوېدو سره شل يا دېرش څولغې راوباسل سي نو څولغه او رسۍ هم پاک سول.

د هغه شي مرګ چي په هغه کي بهېدونکي وينه نه وي نو نه اوبه او نه د دي علاوه شيان لکه شربت، سُرکه او ښوروا وغيره نجسه وي، مثلاً غوماشه، مچ، شاتو مچمچۍ او لړم وغيره دغه ډول د هغه مرګ چي په اوبو کي وسي چي کله په اوبو کي مړ سي لکه ماهی، چونګښه او شين سترګی که چېري د اوبو څخه علاوه په بل ځای کي مړ سي نو ماهی يي بلاخلافه نه نجس کوي، او چونګښه چي کله په شربتو کي مړه سي نو په دې کي د متاخرينو اختلاف دی اکثره پر دې دي چي مرداره وي يي، اسبيجابي په خپله شرحه کي ذکر کړي دي چي هغه شی چي په اوبو اوسي او ماکول اللحم نه وي په اوبو کي مړه سي او ټکړې ټکړې سي يا وېړسيږي نو بيشکه د دې اوبو څښل مکروه دي او د وچي مار چي کله په اوبو کي مړ سي نو اوبه ناپاکه دي، دغه ډول د اوبو مار چي کله لوی وي او په هغه کي بهېدونکي وينه وي، دغه ډول چرموښکۍ چي کله لويه وي او په هغه کي بهېدونکي وينه وي.

**تشريح**: امام يوسف رحمه الله د موږکانو د لوېدو په صورت کي د يوه څخه تر څلورو پوري نو په دې کي يې د شلو څخه تر دېرشو ځولغو را ايستلو حکم کړی دی، د څلورو څخه چي کله زيات سي نو د چرګي په حکم کي سو شپيته ځولغې به را ايستل کيږي چي کله لسوته ورسيږي نو د پسه په حکم کي سوه نو ټولي اوبه را ايستل ضروري دي، مګر که چېري ټوله را ايستل مشکل سي او په څاه کي چيني بهيږي چي څومره اوبه راباسي نو د چينو څخه دوباره اوبه راځي نو صرف په څاه کي د موجودو اوبو په اندازه کولو سره اوبه دي را وباسي مګر دا اندازه به څنګه معلومه کړي د دې په باره کي د فقهاء کرامو مختلف اقوال دي، د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله څخه د يوه روايت په مطابق د دې څاه په اړخ کي د هغه د طول، عرض وعمق په مطابق يو بل څاه وکاږي نو دغه څاه چي کله ډک سو نو هغه بل څاه پاک سو دغه ډول د امام اعظم رحمه الله څخه يو روايت دا هم مذکور دی چي دوه تجربه کاره او

صاحب عقل انسانان دي را وغواړي او صاحب بصيرت حضرات چي څومره مقدار وښايي په هغه به عمل کيږي، مثلاً د اوبو په کتلو سره دا حکم وکړي چي په دې ځاه کي پنځه سوه څولغې اوبه موجودي دي نو د پنځه سوه څولغو د را ايستلو وروسته دا ځاه پاک تصور کيږي، ځينو مشائخو په دغه قول فتوی کړي ده او مصنف رحمه الله د امام محمد رحمه الله په قول يعني دوه سوه څولغو په را ايستلو باندي فتوی نقل کړي ده.

هغه حيوانان چي د هغوی په جسم کي د نورو حيوانانو په مثل د هغوی په رګوکي دويني تګ نه وي لکه غوماشه، دوبازي او د شاتو مچۍ وغيره چي کله په اوبو کي مړه سي يا په وچه کي مړه سي په اوبو کي وغورځول سي نو اوبه نه نجسه وي، د وچي مار او شرمښکۍ حکم دادی چي کله هغه غټ وي او د هغو په رګو کي بهېدونکي وينه وي نو د هغو د مرګ څخه اوبه نجسي کيږي، مختصره خلاصه داده چي کوم حيوانان په اوبو کي دننه اوسي د هغو د مرګ څخه اوبه نه مرداريږي ولي چي د هغو په اوبو کي اوسيدل د دې خبري دليل دی چي په هغو کې بهيدونکي وينه نسته د دې لپاره چي بهيدونکي وينه درلودلو والا په اوبو کي دننه مستقل سکونت نه سي اختيار کولای او په مسقل ډول په اوبو کي د اوسېدونکو حيوانانو نښاني دادي که چېري هغوی د اوبو څخه را ويستل سي نو د يوې دقيقې په تيريدو سره هغه مړه کيږي که چېري د را ايستلو باوجوده ژوندي وي لکه چونګښه که دا په اوبو کي هم اوسي او په را ايستلو سره نه مړه کيږي بلکي په وچه کي هم ژوند تيرولای سي نو دا ډول حيوانان بينه بينه دي، د دوی حکم هم د اوبو والا د حيوانانو په ډول دی ، د وچي او اوبو والا چونګښي فرق دادی چي د وچو والا چونګښي ګوتي خلاصي يي او د اوبو والا په ګوتو کي باريکه پرده وي.

## فصل في الاسار

(دا فصل د پسخوردو په بيان کي دی)

سُؤْرُ الْاٰدَمِيِّ طَاهِرٌ سَوَآءٌ كَانَ مُسْلِمًا اَوْكَافِرًا اَوْجُنُبًا اَوْحَآئِضًا اَوْنَفْسَآءَ اَوْمُحْدِثًا اَوْطَاهِرًا وَسُؤْرُ مَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ كَالْاِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ وَاَمَّا سُؤْرُ الْفَرَسِ فَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ فِيْهِ اَرْبَعُ رِوَايَاتٍ فِيْ رِوَايَةٍ نَجَسٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ مَشْكُوْكٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ مَكْرُوْهٌ وَفِيْ رِوَايَةٍ طَاهِرٌ وَاَمَّا عِنْدَهُمَا طَاهِرٌ بِلَا شَكٍّ وَبِهِ اَخَذَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ وَسُؤْرُ الْكَلْبِ وَالْخِنْزِيْرِ وَسِبَاعِ الْبَهَائِمِ نَجَسٌ وَسُؤْرُ سِبَاعِ الطُّيُوْرِ وَسُؤْرُ مَايَسْكُنُ فِي الْبُيُوْتِ مِثْلُ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَالْفَارَةِ وَالْوَزَغَةِ وَالْهِرَّةِ وَالدُّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِ مَكْرُوْهٌ وَاِنْ اَكَلَتِ الْهِرَّةُ الْفَارَةَ ثُمَّ شَرِبَتِ الْمَآءَ عَلَى الْفَوْرِ يَتَنَجَّسُ فَاِنْ مَكَثَتْ سَاعَةً وَلَحِسَتْ فَمَهَا فَمَكْرُوْهٌ وَسُؤْرُ الْبَغْلِ وَالْحِمَارِ مَشْكُوْكٌ وَعَرَقُ كُلِّ شَيْءٍ يُعْتَبَرُ بِسُؤْرِهِ اِلَّا اَنَّ عَرَقَ الْحِمَارِ طَاهِرٌ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ فِي الرِّوَايَةِ الْمَشْهُوْرَةِ كَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُوْرِيُّ وَقَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ نَجَسٌ اِلَّا اَنَّهُ جُعِلَ عَفْوًا فِي الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ لِمَكَانِ الضَّرُوْرَةِ وَلَبَنُ الْاَتَانِ نَجَسٌ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ طَاهِرٌ وَلٰكِنْ لَّايُؤْكَلُ وَهُوَ الصَّحِيْحُ.

**ژباړه**: د انسان پسخورده پاکه ده که مسلمان وي او که کافر، جنب وي که حائضه او که نفاسه وي، بې اودسه وي که پاک، د هغه حیوانانو پسخورده چې د هغو غوښه خوړل کیږي هم پاکه ده لکه اوښ، غوایی، پسه بزه او داسي بل شی. د آس په پسخورده کي د امام ابو حنیفه رحمه الله څخه څلور روایتونه دي په یوه کي ناپاکه په یوه

کي مشکوکه په یوه کي مکروه او په یوه کي پاکه ده، د صاحبینو په نز بغیره شکه پاکه ده او په دغه باندي د ځینو علماؤ عمل دی د سپي، خنزیر، او درنده حیوانانو پسخورده ناپاکه ده د درنده مرغانو پسخورده او د هغو پسخورده چي په کورو کي اوسیږي لکه مار، لړم، موږک، چرمښکی، پیشي او آزاده چرګه وغیره . مکروه ده، که چېري پیشي موږک وخوري او فوراً یې اوبه وڅښلي نو ناپاکي سوې که یې موږک تیرکړ او خپله خوله یې صفا کړه نومکروه ده، د خچر او خره پسخورده مکروه ده، د هر هغه شي د خولې حکم د پسخوردې دی مګر د خره د پسخوردې د مشهوره روایت مطابق پاکه ده دغه قول قدوري ذکر کړی دی او شمس الائمه ویلي دي چي ناپاکه ده مګر دا چي په کالو او بدن کي ضرورتاً عفوه کړل سوي ده، د خرې شیدي د ظاهر روایت مطابق مرداري دي او د امام محمد رحمه الله څخه روایت دی چي پاکي دي مګر خوړل کیږي نه او دغه صحیح دی .

**تشریح**: د یو شي د خوړلو وروسته چي په لوښي کي هغه شی باقي پاته سي هغه ته پسخورده ویل کیږي د دې په کتب فقهه کي پنځه قسمونه دي، ۱ بالاتفاق پاکه، ۲ بالاتفاق ناپاکه، ۳ مشکوکه، ۴ مکروه، ۵ مختلف فیه، نو د انسان پسخورده د ټولو آئمهؤ په نز بالاتفاق پاکه ده که څه هم دا انسان خپله ناپاک او کافر وي ولې چي د پسخوردې پاکي او ناپاکي د ناړو په پاکېدو او ناپاکېدو باندي منحصره ده ناړي د غوښو څخه پیدا کیږي، د انسان غوښه پاکه ده نو ناړي هم پاکي دي او په پسخورده کي چونکي د ناړو اجزاء شاملیږي نو د دې لپاره د پاکو اجزاو په خلط سره پسخورده هم د اول په مثل پاکه ده په دې ځینو اوقاتو دا اشکال واردیږي چي د مشرکینو په باره کي خدای تعالی ویلي دي (اِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ) چي کله مشرکین نجس سوه نو د کافر انسان پسخورده څه ډول پاکېدی سي؟ فقهاء کرام جوابًا وایي چي دلته مراد د نجاست څخه حقیقي نه دی بلکي نجاست معنوي او

اعتقادي يعني شرک وکفر مراد دی لکه څنګه چي الله تعالی په يو بل مقام کي د بت
پرستی مردار ګڼلو سره ويلي دي (فَاجتَنِبُوا الرِّجسَ مِنَ الاَوثَانِ) مختصر دا چي
مشرکين او کفار په معنوي ډول باندي نجس دي او پسخورده د نجاست حقيقي په
وجه نجسه کيږي پر دي بنا که چيري څوک شراب وڅښي او بغير د څه تامله فوراً پر
څه وخوري نو د هغه په پسخورده کي د نجاست حقيقي اجزا شاميلدو په وجه دا
پسخورده ناپاکه ده که څه هم مسلمان وي او که کافر، دغه ډول چونکي ماکول
اللحم د حيوانانو غوښه هم پاکه ده نو د هغه څخه پيدا کېدونکي ناړي هم پاکي
سوي او پسخورده هم پاکه ده، د آس په پسخورده کي اګر چي مختلف روايات نقل
کيږي مګر صحيح قول دادی چي پاکه ده او په دغه باندي د ټولو علماؤ متاخرينو
فتوی ده، د سپي ،خنزير او نورو درنده حيوانانو لکه شير، زمری وغيره غوښي
مردارېدو په وجه پسخورده يي هم نجسه ده، د غره رېندګان لکه شاهين، کارګه
وغيره دغه ډول په کورو کي د انسانانو سره سکونت کولو والا، د حشرات الارض
وغيره لکه مار، لړم او چرمښکی او موږک وغيره پسخورده مکروه ده ولي چي
شاهين او د هغه په مثل نور مرغان صرف په مشوکه سره اوبه څښي او د هغه ناړي
اوبو ته نه رسيږي او کراهيت صرف د احتمال د وجي څخه دی چي کېدی سي چي په
هغه ناړي ګډي سوي وي او د سواکِن البيوتو پسخورده که څه هم د قاعدې په
اعتبار نجس کېدل يې ضروري وه ولي چي د هغو غوښه او ناړه ناپاکه ده، مګر بيا
هم د نجسکېدو په ځای د مکروه حکم د دې لپاره ورکول سوی دی، د هغه څخه د
خوراک څښاک شيان کما حقه ساتل مشکل دي لکه څنګه چي د پيشي په باره کي د
حديث کبشه بنت کعب کي عليه السلام د دې علت بيان کړی دی" انها من
الطوافين عليکم والطوافات" امام ابو يوسف رحمه الله د دې حديث په رڼا کي د پيشي
پسخورده حلاله ګڼي د خره او د خچر د پسخوردې په طهوريت کي شک دی، د

صحيح روايت مطابق خپله د دوی په طهارت کي هيڅ شک نسته، لهٰذا که چېري په کپړو وغيره باندي ولګېږي نو هغه نه نجسي کيږي، د هر شي خوله دي د هغه د پسخوردې په حکم کي وکتل سي چي هر څه حکم وي هغه د خولې حکم دی مثلاً د انسان پسخورده پاکه ده نو د هغه خوله هم پاکه ده او د شير، زمري وغيره پسخورده چي نجسه ده نو خوله يي هم نجسه ده، فقهاء کرامو چي د خره او خچر په پسخورده کي هم شک دی د هغوی په نز د خره او خچر خوله هم پاکه ده ولي چي عليه السلام مبارک د عربو پر ګرم ريګستانو کي په خره او خچر باندي سوارلی کړي ده، د عليه السلام څخه دا هيڅ وخت هم نه ده ثابته چي د خره يا خچر څخه دکښته کېدو وروسته ده مبارک بدن يا کالي پرېولي وي.

وَاِنْ اَصَابَ الثَّوْبَ شَيْءٌ مِّنَ السُّوْرِ الْمَكْرُوْهِ لَايَمْنَعُ الصَّلٰوةَ اِنْ فَحُشَ وَاِنْ اَصَابَ الثَّوْبُ مِنَ السُّؤْرِ الْمَشْكُوْكِ لَايَمْنَعُ اَيْضًا وَرُوِىَ عَنْ اَبِىْ يُوْسُفَ اَنَّهُ قَالَ يَمْنَعُ اِذَا فُحُشَ بِنَآءً عَلٰى اَنَّهُ نَجِسٌ نِجَاسَةً خَفِيْفَةً وَالصَّحِيْحُ اَنَّ الشَّكَّ فِىْ طُهُوْرِيَتِهٖ لَافِىْ طَهَارَتِهٖ وَاِنْ اَصَابَ الثَّوْبَ مِنَ السُّؤْرِ النَّجِسِ يَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلٰوةِ كَسُؤْرِ الْكَلْبِ وَنَحْوِهٖ اِذَا زَادَ عَلٰى قَدْرِ الدِّرْهَمِ وَالْاَصْلُ فِيْهِ اَنَّ النِّجَاسَةَ الْغَلِيْظَ اِذَا كَانَتْ قَدْرَ الدِّرْهَمِ اَوْدُوْنَهُ فَهِىَ عَفْوٌ لَايَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلٰوةِ عِنْدَنَا وَعِنْدَ زُفَرَ وَالشَّافِعِىْ تَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلٰوةِ وَاِنْ قَلَّتْ وَيَنْبَغِىْ اَنْ يُّغْسَلَ وَاِنْ كَانَتْ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ حَتّٰى اَنَّ الثَّوْبَ اِذَا اَصَابَتْهُ مِنَ النِّجَاسَةِ الْغَلِيْظَةِ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ وَلَمْ يَغْسِلْهَا ثُمَّ اَصَابَهُ نِجَاسَةٌ غَلِيْظَةٌ مِقْدَارُ مَالَوْ جُمِعَتْ بِتِلْكَ النِّجَاسَةِ يَصِيْرُ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ

الدِّرْهَمِ مَنَعَتْ جَوَازَ الصَّلٰوةِ بِالْاِجْمَاعِ وَقَدْ رُوِیَ عَنْ اَبِيْحَنِيْفَةَ اَنَّهُ غَسَلَ ثَوْبَهُ

مِنْ قَطْرَةِ دَمٍ اَصَابَتْهُ.

**ژباړه**: که چېرې مکروه پسخورده په کالو باندې ولګیږي نو لمونځ نه نسي منع کوي که څه هم زیاته سي، او که د شکمنې پسخوردې ور ورسیږي نو هم لمونځ نه منع کوي، د امام یوسف رحمه الله څخه روایت سوی دی چې کله زیاته سي نو منع کوي یې ولې چې دا نجاست خفیفه دی او صحیح دادی چې شک د دې په پاکولو کې دی خپله په پاکېدو کې نه دی، که چېرې په کالو ناپاکه پسخورده لکه د سپي وغیره ولګیږي او د یوه درهم څخه زیاته سي نو لمونځ منع کوي په دې کي قاعده داده چې نجاست غلیظه چې کله په قدر د درهم یا د دې څخه کمه نو معاف دی د لمانځه جواز نه منع کوي زموږ په نز او د امام زفر وشافعي په نز جواز د لمانځه منع کوي که څه هم کمه وي، مناسبه ده چې پرې یولې که څه هم د درهم د مقدار څخه کم وي تر دې پورې چې کله په کالو نجاست غلیظه د درهم تر مقداره کمه ولګیږي او نه یې پریولی د دغه وروسته بیا نجاست غلیظه باندې لګیږي په دومره مقدار کې که چېرې هغه د ابل نجاست سره یې جمع کړي نو د درهم تر مقدار څخه زیاتیږي نو بالاجماع د لمانځه جواز منع کوي او یقینًا د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله څخه روایت سوی دی چې هغه خپل کالي په یوه څاڅکي وینې لګیدو سره هم پریولي .

**تشریح**: مکروه پسخورده پاکه ده، صرف دا چې د مکروه اوبو استعمال د پاکو اوبو په موجودګی کې بهتر نه دي، د امام کرخي رحمه الله د تحقیق مطابق دا کراهت تنزیهي دی په احادیثو مبارکو سره هم د دې تائید کیږي د دې لپاره که چېرې مکروه پسخورده په کالو ولګیږي که څه هم زیاته وي نو لمونځ جائز دی دغه ډول مشکوکه پسخورده هم پاکه ده او شک فی نفسه د دې په پاکی کې نه دی بلکې په دې کې

دی چي بل شی د دې په ذریعه سره پاکېدی سي که نه.
لکه څنګه چي په دې باندې مددل بحث سوی دی، ناپاکه پسخورده لکه د سپي او شیر وغیره که چېري په بدن یا په کالو باندي ولګیږي نو ودي کتل سي که چېري دا نجاست د یوه درهم په مقدار یا د هغه څخه کمه وي نو لمونځ جائز دی ولې چي د نجاست د قلیل مقدار څخه احتراز مشکل دی د دې لپاره معاف دی او د قلیل اندازه داده یعني د یوه درهم مقدار د حضرت عمر، حضرت علی او ابن مسعود رضی الله عنهم رنګه لوی اصحابو کرامو څخه نقل دی، که نجاست د یوه درهم څخه زیات سي یعني دا پسخورده زیاته ولګیږي نو لمونځ نه دی جائز او د یوه درهم مقدار که څه هم معاف دی مګر بیا هم بهتره داده چي د دې نجاست په پرېوللو سره دي لمونځ وکړي لکه څنګه چي حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله یو څاڅکی د وینو به هم پرېښوی دغه د محتاطو خلګو شان دی.

ثُمَّ الدِّرْهَمُ الدِّرْهَمُ الشَّهْلِيْلِيُّ وَهُوَ مِثْلُ عَرْضِ الْكَفِّ قَالَ اَبُوْجَعْفَرٍ يُقَدَّرُ بِالْوَزْنِ فِي النَّجَاسَةِ الْمُتَجَسِّدَةِ كَالْعَذْرَةِ وَالدَّمِ وَالْمَنِيِّ وَالسِّرْقِيْنِ وَبِالْبَسْطِ وَالْعَرْضِ فِي النَّجَاسَةِ الرَّقِيْقَةِ كَالْبَوْلِ وَالْخَمْرِ.

**ژباړه:** نو درهم شهلیلي درهم دی چي د ورغوي د پراخۍ په مقدار دی ابو جعفر رحمه الله ویلي دي چي د جسم والا په نجاست کي به د وزن څخه اندازه کیږي، لکه ګندګي، وینه، خاوره، مني، خوشایي او بل داسي شی، او نرم نجاست لکه بولي، شراب وغیره کي په غوړېدو او پراخۍ سره.

**تشریح:** په ماقبل عبارت کي دا بیان سوه چي قلیل نجاست غلیظه په مقدار د درهم معاف دی، نو اوس پوښتنه دا پیدا کیږي چي په مختلفو زمانو کي مختلف درهم رائج کیږي، نو کوم درهم په عفوه کي معتبر دی. مصنف رحمه الله ویلي دي چي

شهليلی درهم يعني د ملک شهليل درهم چي په پراخی د لاس د ورغوي په مقدار معتبر منل کيږي، د امام محمد رحمه الله څخه په دې باره کي دوه قولونه نقل دي په يو قول کي امام محمد رحمه الله صرف د درهم ذکر کړی دی او بل دادی چي سخت نجاست چي کله د درهم د وزن برابر سي که غوړيدلی نه وي نو معاف دی که چېري تر دې زيات سي نو نه دی معاف او نرم نجاست لکه بولي که د درهم په مقدار وغوړيږي نو معاف دی تر دې که زيات سي نو نه دی معاف.

وَاِنْ اَصَابَ الثَّوْبَ دُهْنٌ نَجِسٌ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ ثُمَّ انْبَسَطَ قَالَ بَعْضُهُمْ يُعْتَبَرُ وَقْتُ الْاِصَابَةِ فَلَا يَمْنَعُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَمْنَعُ وَبِهِ يُؤْخَذُ وَاِنْ اَصَابَ الدُّهْنُ النَّجِسُ الْجِلْدَ وَتَشَرَّبَ اَوْ اَدْخَلَ يَدَهُ فِي السَّمْنِ النَّجِسِ اَوِ الْمَرْءَةُ اِذَا اخْتَضَبَتْ بِالْحِنَّآءِ النَّجِسِ اَوِ الثَّوْبُ اِذَا صُبِغَ بِالصِّبْغِ النَّجِسِ ثُمَّ غَسَلَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ طَهُرَ الْجِلْدُ وَالْيَدُ وَالثَّوْبُ وَاِنْ بَقِيَ اَثَرُ الدُّهْنِ وَالصِّبْغِ وَالْخِضَابِ وَمَاتَشَرَّبَ الْجِلْدُ فَهُوَ عَفْوٌ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ يَطْهُرُ الثَّوْبُ بِشَرْطِ اَنْ يُّغْسَلَ حَتّٰى يَصْفُوَ الْمَآءُ وَيَسِيْلُ مِنْهُ الْمَاءُ الْاَبْيَضُ وَاِنْ غَسَلَ بِغَيْرِ حُرْضٍ اَلَا يُرٰى اِلٰى مَارُوِيَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ فِي الدُّهْنِ النَّجِسِ اَنَّهُ اِذَاجُعِلَ الدُّهْنُ فِيْ اِنَاءٍ فَصُبَّ عَلَيْهِ الْمَآءُ فَيَعْلُوْ الدُّهْنُ فَيُرْفَعُ بِشَيْءٍ هٰكَذَا اِذَا فَعَلَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ يُحْكَمُ بِطَهَارَةِ الدُّهْنِ وَفِي الذَّخِيْرَةِ رَجُلٌ اِدَّهَنَ رِجْلَيْهِ ثُمَّ تَوَضَّاَ وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ فَلَمْ تَقْبَلِ الرِّجْلُ الْمَآءَ جَازَ وُضُوْءُ

**ژباړه:** که چېري په کالو باندي تر درهم کم ناپاک غوړي ولګيږي او وروسته وغوړيږي ځينو علماؤ ويلي دي چي د لګېدو د وخت اعتبار يې کيږي نو منع نه

کوي او ځینو ویلي دي چي منع کوي او په دغه باندي عمل کیږي، که ناپاکه غوړي پر بدن ولګیږي او هغه جذب سي یا په ناپاکه غوړو کي لاس واچوي او یوه ښځه ناپاک خضاب وکړي یا کالي چي کله په ناپاکه رنګ کي رنګ کړل سي تر هغه وروسته یې دري واره لاس پرېوللي نو پوست، لاس او کالي پاکیږي که څه هم د غوړو، رنګ، او نکروزو اثر پاته وي او کوم چي یې پوست جذب کړي هغه معاف دی، په محیط کي دي چي کالي په دې شرط سره پاکیږي که د هغه څخه صافي اوبه توی سي او د هغه څخه سپیني اوبه وبهیږي که څه هم یې د اشنان بغیره یې پرېولي وي، ایا د امام یوسف رحمه الله روایت د ناپاکو غوړو په متعلق نه ولیدل سو چي کله غوړی په یو لوښي کي واچوي په هغه باندي اوبه واچوي او د غوړو په پورته راتلو سره یې په یو شي سره را وباسي دغه ډول دري واره وکړي نو د غوړو د پاکېدو حکم کیږي، په ذخیره کي راغلي دي چي یو سړی پښي پرېولې او پښې اوبه نه کړي قبولي نو د هغه اودس جائز دی.

**تشریح:** که چېري په کالو باندي ناپاک تیل یا غوړی ولګیږي مګر د لګېدو په وخت کي د درهم تر مقدار کم وي او وروسته یا وغوړیږي نو د صحیح قول مطابق په دې کالو کي لمونځ نه دی جائز ولي چي د قواعدو شرعي وو څخه د لمانځه د وخت اعتبار کیږي د نجاست د لګیدو هیڅ اعتبار نسته.

دوهمه خبره داده چي په نجاست رقیقه کي د هغه شي پیمائش به کتل کیږي کوم چي په دې نجاست سره نجس سوی وي او په نجاست کثیفه کي خپله د نجاست اعتبار کیږي او مفتی به قول ته په اشاره کولو سره مصنف رحمه الله وویل " وبه یوخذ " یعنی د قول ثاني لمونځ نه دی جائز، په دې د فقهاء کرامو عمل جاري دی. دغه ډول نجس تیل چي کله په بدن ولګیږي یو څوک نجسي نکروزي ولګوي او دغه راز په پلیت رنګ سره کالي رنګ کړي نو چي څومره ممکنه وي د هغو پاکول دي

وکړل سي چي د هغه مصنف رحمه الله دا ترکیب بښودلی دی چي هغه دي دري وا
پرېولي نو دغه مذکوره یاد سوي شیان ټول پاکیږي، دغه ډول د ناپاکو غوړو او تېل
پاکولو طریقه په یوه روایت کي د امام ابویوسف رحمه الله څخه ذکر سوي ده چي په
غټ لوښي کي دا اچولو وروسته تقریباً د غوړو د مقدار مطابق اوبه دي هم واچو
سي نو غوړي به د اوبو په سطحه راپورته سي وروسته دي بیا په یوې کاچوغي سر
د اوبو د سطحي څخه غوړي په یو بل لوښي کي علحده کي دا عمل په دري واره
کرځولو سره غوړي پاکیږي، خاص د یخ په موسم کي خلک پر لاسو او پښو باندې
مختلف ډول روغني شیان لګوي اوس که چېري د اوداسه په اعضاء وو تېل یا بل شی
ولګوي او د هغه وروسته بیا اودس وکړي او د تېلو په وجه په جلد کي اوبه جذب نه
سي صرف د پوست سرېیره تېهیږي نو بیا هم اودس کیږي ولي چي په اوداسه کي
اعضاء د اوداسه ته اوبه رسول ضروري دي او په پوست کي د اوبو جذب کېدل
فرض نه دي.

ثَوْبٌ مُبَدًّا اَصَابَهُ نَجَاسَةٌ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ فَنَفَذَتْ اِلٰى بِطَانَتِهِ فَصَارَ اَكْثَرَ
مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ يَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلٰوةِ وَاِذَا لُفَّ الثَّوْبُ الْمَبْلُوْلُ النَّجَسُ فِيْ ثَوْبٍ طَاهِرٍ
يَابِسٍ فَظَهَرَتْ نَدَاوَتُهُ عَلَى الطَّاهِرِ وَلٰكِنْ لَايَصِيْرُ رَطْبًا بِحَيْثُ لَوْ عُصِرَ لَايَسِيْلُ
مِنْهُ شَيْءٌ وَلَايَتَقَاطَرُ وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ لَايَصِيْرُ نَجَسًا وَكَذَا الثَّوْبُ الطَّاهِرُ الْيَابِسُ اِذَا
بُسِطَ عَلٰى اَرْضٍ نَجِسَةٍ رَطْبَةٍ وَاِنْ نَامَ عَلٰى فِرَاشٍ نَجِسٍ فَعَرَقَ وَابْتَلَّ الْفِرَاشُ مِنْ
عَرَقِهِ اِنْ لَمْ يُصِبْ بَلَلُ الْفِرَاشِ جَسَدَهُ لَايَتَنَجَّسُ وَكَذَا اِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ وَمَشٰى
عَلٰى لَبَدٍ نَجِسٍ وَكَذَا اِنْ مَشٰى عَلٰى اَرْضٍ نَجِسَةٍ فَابْتَلَّتِ الْاَرْضُ مِنْ بَلَلِ رِجْلَيْهِ

وَاسْوَدَّ وَجْهُ الْاَرْضِ لٰكِنْ لَّمْ يَظْهَرْ اَثَرُ الْبَلَلِ فِيْ رِجْلِهٖ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ وَاِنْ صَارَتْ طِيْنًا رَطْبًا فَاَصَابَ رِجْلَهٗ لَاتَجُوْزُ الصَّلٰوةُ.

**ژباړه:** دوي کپړې سره ګنډل سوي وي نو تر مقدار کم نجاست ورورسېدی او دنني حصې ته په رسېدو سره په تګ کي د درهم څخه زيات سو نو د لمانځه جواز منع کوي، چي کله پاکه لنده کپړه په يو وچي پاکي کپړې کي ونغښتل سي او په پاکي کپړي کي د هغې لوندوالی ښکاره سي مګر دومره لنده نه وي که چېري ونښتيځل سي نو د هغې څخه يو څه تواېږي او نه څاڅکي کوي نو اصح خبره داده چي نه مرداريږي او دغه ډول چي کله پاکه وچه کپړه په ناپاکي لندې مځکي باندي وغوړول سي نو هم دغه خبره ده.

که په نجسي بسترې باندي څوک بيده سو او په هغه باندي خوله راغله نو د هغه په خولې سره بستره لنده سوه که چېري د بستري خيري د هغه بدن ته نه ورسيږي نو نه نجس کيږي ، دغه ډول د پښو پرېوللو وروسته که چېري په لنده نجسه کمبله روان سو دغسي که په نجسه مځکه روان سو او مځکه د هغو د پښو څخه لنده سوه او د مځکي سطحه توره سوه مګر د هغې د خيرو اثر په پښو نه سو ظاهر نو د هغه لمونځ جائز دی که چېري شوخړ جوړ سي او د هغه په پښو ولګېدی نو لمونځ نه دی جائز .

**تشريح:** يوه داسي کپړه چي د هغې لاندي استر وو که چېري تر درهم کم نجاست هغې ته ورسيږي مګر دا نجاست د کپړي څخه لاندي د استر وطرف ته تګ وکړي او چي پورته کښته دواړه نجاستونه يوځای کړل سي نو د درهم څخه زيات وي نو د امام محمد رحمه الله په نز په دې کپړه کي لمونځ نه دی جائز ولي چي د هغه په نز دا نجاست په دوو مختلفو ځايو کي لګېدلی دی د دې لپاره دا به جمع کيږي او د مقدار درهم څخه چي کله زيات سي نو په هغه کپړه کي لمونځ نه دی جائز .

البته امام یوسف رحمه الله وايي چي دا د یوه ځای دوه روخه دي د دې لپاره د جم
کیدو څخه بغیر د یوه ځای اعتبار به کیږي او یو ځای د درهم څخه کم دی د دې
لپاره لمونځ جائز دی، ځیني علماء وايي که چېري دا کپړه او استر مکمل ګنډلی وي
نو بالاتفاق لمونځ جائز دی، که نجسه کپړه په پاکو وچو کپړو کي را تولـه سي او د
نجسي کپړي نیمی په پاکو کپړو کي ظاهره سي مګر په دومره قلیل مقدار کي وي
که چېري دا پاکه کپړه ونستیځل سي نو د هغې څخه هیڅ نه توایږي نو په دې کي ک
څه هم د فقهاء کرامو یو څه اختلاف ضرور دی مګر د اصح قول مطابق په دومره
قلیل مقدار کي په نیمی راتلو سره کپړه نه مرداریږي ولي چي نجسه کپړه که د درو
وارو پریوللو وروسته چي کله دریم وار نستیځل کیږي نو تر دې نستیځلو وروسته
هم په هغه کپړه کي نیمی باقي یي مګر د دې نیمي ختمول اوس مشکل سو د دې
لپاره د کپړو د پاکېدو حکم ورکول کیږي، دغه ډول کله چي دا نجسه نیمی په پاکه
کپړې کي تګ وکړي او هغه د نستیځلو سره ختمول نه وي ممکن نو کپړه بحال خود
پاکه ګڼل کیږي، مګر صاحب غنیة المتملی د قول مطابق په دې مسئله مذکوره کي
دا حکم هلته دی چي کله د نجسي کپړي نجاست په ناپاکو اوبو سره وي که دا نجسه
کپړه په عین نجاست مثلاً د بولو څخه وي نو فقط په نیمي ظاهریدو سره هم وچه
کپړه نجسه تصور کیږي، لکه څنګه چي یوه کپړه په بولو لنده وي او هغه بنه
ونستیږل سي چي نور هیڅ هم نه ووزي مګر بیا هم دا کپړه نجسه پاته ده.

مسئله د غور طلب ده د دې لپاره د فکر کولو ضرورت دی او دغه ډول هغه کپړه
هم پاکه ده چي په نجسي مځکي باندي واچول سي مګر د نجاست اثر په کپړه کي
ښکاره نه سي.

وَفِي الذَّخِيْرَةِ رَجُلٌ رَمَدَتْ عَيْنُهُ فَرَمِصَتْ فَاجْتَمَعَ رَمَصُهَا فِيْ جَانِبِ الْعَيْنِ يَجِبُ اَنْ يَتَكَلَّفَ فِيْ اِيْصَالِ الْمَآءِ اِنْ لَّمْ يَضُرَّهُ كَمَا يَجِبُ اَنْ يَّتَكَلَّفَ فِيْ اِيْصَالِ الْمَآءِ اِلَى الْمَاقِ فِيْ حَالَةِ الصِّحَّةِ ايضًا اِذَاصَبَّ الرَّجُلُ دُهْنًا فِيْ اُذُنِهِ فَمَكَثَ فِيْ دِمَاغِهِ يَوْمًا ثُمَّ خَرَجَ مِنْ اُذُنِهِ فَلَاوُضُوْءَ عَلَيْهِ وَاِنْ خَرَجَ مِنَ الْفَمِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ وَاِنْ دَخَلَ فِيْ اُذُنِهِ مَآءٌ عِنْدَ الْاِغْتِسَالِ ثُمَّ خَرَجَ مِنْ اَنْفِهِ فَلَا وُضُوْءَ عَلَيْهِ الْقُرْحَةُ اِذَا بَرِءَتْ وَارْتَفَعَ قُشُرُهَا وَاطْرَافُ الْقُرْحَةِ مَوْصُوْلَةٌ بِالجِلْدِ اِلَّا الطَّرْفُ الَّذِيْ كَانَ يَخْرُجُ مِنْهُ الْقَيْحُ فَتَوَضَّاَ جَازَ وُضُوْءُ وَاِنْ لَّمْ يَصِلِ الْمَآءُ اِلٰى مَاتَحْتَهُ وَلَوْ تَوَضَّاَ ثُمَّ حَلَقَ رَاْسَهُ اَوْلِحْيَتَهُ اَوْقَلَّمَ اَظْفَارَهُ لَمْ يَجِبْ اِمْرَارُهُ عَلٰى تِلْكَ الْاَعْضَآءِ الْمَآءُ الَّذِيْ يَسِيْلُ مِنْ فَمِ النَّآئِمِ فَهُوَ طَاهِرٌ وَفِي الْمُحِيْطِ اَنَّهُ اِنْ جَفَّ وَبَقِيَ لَهُ اَثَرٌ فَهُوَ نَجَسٌ وَفِي الْمُلْتَقَطِ هُوَ طَاهِرٌ اِلَّا اِذَا عُلِمَ اَنَّهُ مِنَ الْجَوْفِ.

**ژباړه:** په ذخيره کي راغلي دي چي د چا سترګه ودردېدله او د هغي په کونج کي ګندګي جمع سوي وي نو هغه ته په تکليف سره اوبو رسول ضروري دي که چېري ضرر نه رسوي، لکه څنګه چي په حالت صحت کي د سترګو کونجو ته په اوبو رسولو کي تکليف واجب دی، چي کله يو سړی په غوږ کي تيل واچوي بيا د يوې ورځي تيرولو وروسته د هغه د دماغ څخه را ووزي نو پر هغه اودس نسته که چېري د پوزي څخه ووزي نو هم اودس نسته او که چېري د خولې څخه ووزي نو په هغه باندي اودس سته، که چېري د هغه په غوږ کي د غسل کولو په وخت کي اوبه داخلي سي بيا د پوزي څخه راووتي نو په هغه باندي اودس نسته، دانه چي کله جوړه سي او د

هغې خور ليري سي مګر د داني اطراف د پوست سره متصل دي هغه طرف د ک
څخه چي نوونه بهيږي او هغه اودس وکړي نو د هغه اودس نه دی جائز اګر چي
هغه لاندي اوبه نه ورسيږي که چېري اودس نه وکړي بيا سر يا ږيره وخره يي يا
نوکان غچي کړي نو په هغه اندامو باندي اوبو تيرول واجب نه دي، هغه اوبه چي
بيده انسان د خولې څخه توايږي پاکي دي او په محيط کي دي که چېري وچي سي
او د هغو يوڅه اثر باقي وي نو نجسي دي او په ملتقط کي راغلي دي چي هغه پاکي
دي مګر چي کله دا معلومه سي چي د نس له طرفه دي .

**تشريح**: د دردېدلو سترګو په کونجو کي په سپين شکل کي چي کومه ګندګي
جمع کيږي د هغه لاندي اوبه رسول ضروري دي که ضرر نه وي لکه څنګه چي په
حالت کي د صحت هم د دې اهتمام کول ضروري دي، د بيده انسان د خولې څخه د
بهيدو والا ناړه صفا ده مګر د ځينو علماؤ په نز په دې کي يو څه تفصيل دی که
چېري دا ناړه د نس له طرفه څخه وي يعني د معدې څخه را پورته کيږي نو معده
چونکي محل د نجاست ده د دې لپاره په دې صورت کي نجسه ده مګر د فتاوٰی
بنديه مطابق مطلقًا پاکه ده، لعاب النائم طاهرٌ سوآءٌ کان من الفمِ او منبعثا من
الجوف عند ابي حنيفة ومحمد رحمهاالله تعالیٰ. (فتاوٰی هنديه جلد نمبر۱ ص۴۶)

وَاَمَّا النَّجَاسَةُ الْخَفِيْفَةُ كَبَوْلِ مَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ فَاِنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِالْكَثِيْرِ الْفَاحِشِ
وَرُوِىَ عَنْ اِبِيْحَنِيْفَةَ اَنَّهُ مُقَدَّرٌ بِشِبْرٍ فِىْ شِبْرٍ وَرُوِىَ عَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ يُعْتَبَرُ بِالرُّبْعِ
ثُمَّ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِىْ كَيْفِيَّةِ اِعْتِبَارِ الرُّبْعِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ رُبُعُ جَمِيْعِ الثَّوْبِ
وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ كَانَ ذَيْلًا فَرُبْعُ الذَّيْلِ وَاِنْ كَانَ دِخْرِيْصًا اَوْكُمًّا فَرُبْعُ الدِّخْرِيْصِ

الْكُمِّ اَرَادُوْبِهِ رُبُعُ ثُلُثِ الثَّوْبِ.

**ژباړه**: نجاست خفيه لکه د ماکول اللحم حيوانانوبولي بيشکه دا نجاست خفيفه په ډېر زيادت سره مقدر کړل سوی دی، د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت سوی دی چې بالنبت در بالنبت مقدر دی او د امام محمد رحمه الله څخه روايت دی چي د څلورمي څخه مقدر دی يا د علماء کيفت د ربعي په باره کي اختلاف دی نو ځينو ويلي دي چي که چېري لمن وي نو د لمن ربعه که ګريوان يا لستوڼی وي نو د ګريوان يا لستوڼي ربعه، او د دې څخه علماؤ د کالو ۳/۱ څلورمه حصه مراد اخيسته ده.

**تشريح**: نجاست غليظه چي کله د يوه درهم د مقدار څخه زيات سي نو د هغه سره لمونځ نه دی جائز او نجاست خفيفه چي د هغه اقسام د دې باب په شروع کي بيان سوي دي چي کله دومره زيات سي چي د انسان طبيعت هغه مکروه ګڼي نو د هغه سره لمونځ نه دی جائز نو د نجاست خفيفه په مانع کي بغير د څه مقداره دا مسئله د رائي متبلی باندي سپره ده البته ځينو فقهاء کرامو د احنافو څخه نجاست خفيفه او جواز صلوة يو څه مقدارونه نورهم ذکر کړی دي چي هغه په لاندي ډول دي:

۱: اول چي نجاست خفيفه د هر طرفه څخه د يوې لويشتي په مقدار سي.

۲: دوهم چي نجاست خفيفه د هر طرفه څخه د يوه شرعي ګز په مقدار سي.

۳: دريم چي نجاست خفيفه د څلورمي حصې څخه زيات سي.

صاحب هدايي د دغه قول توثيق کړی دی او دايي واضح ګڼلي ده، البته د علماؤ په نز په دې عبارت کي اختلاف دی چي د ټولي کپړي (۴/۱) حصه چي کله مرداره سي نو مانع د لمانځه ده يا صرف د دغه ځای (۴/۱) مراد ده کوم ته چي نجاست رسېدلی وي مثلاً که چېري لستوڼي ته نجاست خفيفه ولګيږي نو که چېري اول قول

معتبر ومنل سي نو مکمل لستوني د قميص څلورمه حصه نه ده نو د دې قول مطابق
که چېري پوره لستوني هم نجس وي نو لمونځ جائز دی، که چېري دوهم قول معتبر
وګڼل سي نو به کتل کيږي که چېري د لستوني د څلورمي څخه زياته حصه نجس
وي نو لمونځ نه دی جائز ، ځينو علماؤ ويلي دي چي د دې قول څخه مراد دادی چي
پوره کالي په درو حصو کي د تقسيمولو وروسته د دريمي حصې څلورم مقدار عفو
دی يعني د ټولي کپړي دا دوولسمه حصه سوه، دغه د مصنف رحمه الله په دې الفاظو
"ارادوا به ثلث الثواب" څخه مراد دی .

(شرط ثاني)

وَاَمَّا النَّجَاسَةُ الْخَفِيْفَةُ كَبَوْلِ مَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ فَاِنَّهَا مُقَدَّرَةٌ بِالْكَثِيْرِ الْفَاحِشِ
وَرُوِىَ عَنْ اِبِيْحَنِيْفَةَ اَنَّهُ مُقَدَّرٌ بِشِبْرٍ فِىْ شِبْرٍ وَرُوِىَ عَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ يُعْتَبَرُ بِالرُّبُعِ
ثُمَّ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِىْ كَيْفِيَّةِ اِعْتِبَارِ الرُّبُعِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ رُبُعُ جَمِيْعِ الثَّوْبِ
وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ كَانَ ذَيْلًا فَرُبُعُ الذَّيْلِ وَاِنْ كَانَ دِخْرِيْصًا اَوْكُمًّا فَرُبُعُ الدِّخْرِيْصِ
اَوِالْكُمِّ اَرَادُوْبِهِ رُبُعُ ثُلُثِ الثَّوْبِ.

**ژباړه:** دوهم شرط د نجاستو څخه طهارت دی، نو په لمونځ کونکي باندي واجب
دی چي خپل بدن، کالي او د لمانځه د ځای څخه نجاست ليري کړي او څه رنګه چي
په خالصو اوبو سره د هغه ليري کول جائز دي دغه ډول اوبه غيري خالصي او هر
بهيدونکی شی په کوم سره چي د نجاست ليري والی ممکن وي لکه سرکه او شربت
يا بل شي سره جائز دی، دغه ډول په ځينو مواقعو کي په خاوره او اور سره هم جائز
دی، چي کله په چاړه يا د پسه په سر وينه ولګيږي او په اور کي يې داخلي کړي او
وسوزله نو سر او چاړه پاک سول دغه ډول که چېري په چاړه وينه ولګيږي او ...

خاوره سره يې مسحه کړه نو پاکه سوه، د امام محمد رحمه الله څخه روايت دی چي کله د مسافر په لاس نجاست ولګيږي نو ويلي يې دي چي په خاوره دي مسحه کړي، دغه ډول چي کله په موزې د جسم والا نجاست ولګيږي نو ابو يوسف رحمه الله څخه روايت دی چي هغه ويلي دي په خاوره يا په ريګ سره دي ښه وموږي نو پاکي سوې، په دغه باندي زموږ د علماؤ فتوی ده او په محيط کي ذکر دي که چيري د جسم والا نه وي لکه بولي، شراب نو بالاتفاق يې پريولل ضروري دي که لانده وي او که وچ .

امام ابو علي نسفي رحمه الله د امام ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله څخه روايت کړی دی چي هغه ويلي دي چي کله څوک په ناپاکه خاوره يا ريګ باندي روان سي په هغه باندي څه خاوره يا ريګ ونښتي او د وچيدو وروسته يې په مځکه باندي کش کړ نو پاک سو، د امام ابو حنيفه رحمه الله په نز او دا راز د فقيه ابوجعفر هندواني رحمه الله د ده او د دې په مثل د ابويوسف رحمه الله څخه روايت کړی دی مګر دا چي هغه وچيده شرط نه ګڼي .

**تشريح**: مصنف رحمه الله چي کله د شرط اول يعني طهارة من الحدث والجنابة د بيان څخه فارغه سو نو د شرط ثاني په شروع کولو سره وايي چي په لمونځ کونکي باندي فرض دي چي خپل ځان، کالي او چيري چي لمونځ کوي هغه ځای د نجاست څخه پاک او صاف کي، دا نجاست حقيقي څه ډول دی په خالص اوبو سره ليري کيدی سي دغه ډول په غير خالص اوبو لکه د ميوو عصير او سرکه وغيره سره هم ليري کولی سي د کوم بيان چي د اوبو په فصل کي سوی دی، چونکي اصل مقصد دادی چي نجاست هم ليري سي او د هغه اثر هم نه سي پاته نو هر ډول چي ممکن وي د جائز طريقه اختيارولای سي، دکوم مثال چي مصنف رحمه الله دا ورکړی دی که چيري د ذبحي په حالت کي په چاړه يا د حيوان په سر دم مسفوح ولګيږي او هغه په اور کي واچول سي چي وينه وسوزي او د هغه اثر هم نه سي پاته نو دواړه پاکيږي ونسي چي د

نجاست ذات او اثر دواړه ختم سول، دغه ډول که چیري ذي جرم نجاست په موزه ولګیږي نو د مفتٰی به قول مطابق که چیري هغه پر مځکه باندي ښه راکش کړل سي نو پاکیږي البته که چیري ذي جرم نه وي نو پرېولل یې ضروري دي، البته د امام ابوعلی نسفی رحمہ اللہ د روایت په مطابق که چیري په نجسه خاوره یا ریګ باندي د تللو په وخت کي لږ نجسه خاوري یا ریګ باندي ومښلي او په وچیدو باندي پر مځکه راکش کړل سي نو دا هم پاک دی .

وَكَذَا يَجُوْزُ اِزَالَتُهَا بِالْحَكِّ وَالْحَتِّ وَالْفَرْكِ وَاَمَّا الْحَكُّ وَالْحَتُّ فَفِى الْخُفِّ اِذَا اَصَابَتْهُ نَجَاسَةٌ لَهَا جِرْمٌ فَيَبِسَتْ يَطْهَرُ بِالْحَكِّ وَالْحَتِّ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ اَنَّ مُحَمَّدًا رَجَعَ اِلٰى قَوْلِهِمَا بِالرَّيِّ لَمَّا رَاٰى عُمُوْمُ الْبَلْوٰى وَاِنِ انْتَضَحَ الْبَوْلُ مِثْلَ رُؤُسِ الْاِبَرِ فَذٰلِكَ لَيْسَ بِشَيْءٍ وَاَمَّا الْفَرْكُ فَفِى الْمَنِيِّ فَيَطْهَرُ الثَّوْبُ بِهِ اِذَا يَبِسَ وَكَذَا الْعُضْوُ بِالْحَتِّ وَاِنْ كَانَ الثَّوْبُ ذَا طَاقَيْنِ يَطْهَرُ بِالْفَرْكِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَكَذَا بِاللَّحْسِ اِذَا اَصَابَ الْخَمْرُ يَدَهُ فَلَحِسَهُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ تَطْهَرُ بِرِيْقِهِ كَمَا يَطْهَرُ فَمُهُ بِرِيْقِهِ.

**ژباړه:** دغه ډول په ګورولو، مښولو او رژولو سره هم د دې لیري کول جائز دي، ګورول او رژول په موزه کي چي کله هغي ته ذي جرم نجاست ورسیږي نو د وچیدو وروسته د ابو حنیفه رحمہ اللہ او ابویوسف رحمہ اللہ په نز په ګورولواو موښولو سره پاکیږي، خلاف المحمد رحمہ اللہ ، په محیط کي راغلي دي چي امام محمد رحمہ اللہ که په رایي مقام باندي عموم بلولی ولیدی نو د دوی دواړو د قول و طرف ته یي رجوع کړي وه، که چیري د ستیني د سر برابر د بولو څاڅکي وسي نو د هغه هیڅ حیثیت

نسته، او موښول په منی کي دي نو په دې سره کالي پاکيږي چي کله وچي سي، دغه ډول اندام په ګورولو سره، که کپړې ډبل کالي وي نو صحيح داده چي په رژولو سره پاکيږي او دغه ډول په ځتلو سره چي کله د هغه په لاس شراب ولګېدل بیا هغه درې واره وځتي نو د هغه د ناړو ځخه پاکيږي لکه ځنګه چي د هغه خوله د ناړي ځخه پاکيږي.

**تشريح**: لکه ځنګه چي په اوبو او نورو مائعاتو سره دغه ډول په ګورولو او رژولو سره هم نجاست زائلېدی سي، د شيخينو په نِز چي کله موزه نجسه سي او په نوک يا په بل شي سره دا نجاست ليري کړل سي او د نجاست اثر هم نسي پاته نو موزه پاکه سوه که چېري په دومره قليل مقدار کي د بولو څاڅکي په کالو ولګيږي لکه د ستنو سر د کوم چي په کالو کي هيڅ اثر نه وي معلوم نو دا د نجاست عدم په حکم کي دی مانع د لمانځه نه دی ولي چي مچان په ګندګي کښيني او د الوتلو وروسته د لمونځ کونکو په کالو باندي کښيني او د هغو په پښو باندي ضرور د نجاست رقيق اجزاء وي مګر د دې ځخه احتراز مشکل دی د دې لپاره په داسي قليل مقدار کي د کوم چي هيڅ اثر محسوس نه وي عفوه دی او وچه خاوره صرف په مښلو رژولو سره کالي ځيني پاکيږي البته د لندې خاوري پرېولل ضروري دي.

وَاَمَّا اِذَا اَصَابَ الثَّوْبُ النِّجَاسَةَ فَاِنْ كَانَتْ مَرْئِيَّةً فَطَهَارَتُهَا زَوَالُ عَيْنِهَا اِلَّا مَا يَشُقُّ وَاِنْ لَّمْ تَكُنْ مَرْئِيَّةً يَغْسِلُهَا حَتّٰى يَغْلِبَ عَلٰى ظَنِّهِ اَنَّهُ قَدْ طَهُرَ وَقِيْلَ اِذَا غُسِلَ مَرَّةً وَّعُصِرَ بِالْمُبَالَغَةِ يَطْهُرُ وَقِيْلَ اِنَّهُ لَايَطْهُرُ مَالَمْ يُغْسَلْ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَّيُعْصَرْ فِىْ كُلِّ مَرَّةٍ وَالْفَتْوٰى عَلَى الْاَوَّلِ وَعَلٰى هٰذَا الْمَسَآئِلُ مِنْهَا مَارُوِىَ عَنْ اَبِىْ يُوْسُفَ اَنَّ الْجُنُبَ اِذَا اتَّزَرَ فِى الْحَمَّامِ وَصَبَّ الْمَآءَ عَلٰى جَسَدِهٖ مِنْ حَيْثُ الظَّهْرِ وَالْبَطْنِ حَتّٰى يَخْرُجَ مِنَ

الْجَنَابَةِ ثُمَّ صَبَّ الْمَآءَ عَلَى الْاِزَارِ يُحْكَمُ بِطَهَارَةِ الْاِزَارِ وَاِنْ لَمْ يَعْصِرْهُ وَقَالَ فِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ اِذَا اَمَظَّ الْمَآءَ بِكَفَّيْهِ فَوْقَ الْاِزَارِ فَهُوَ اَحْسَنُ وَاَحْوَطُ وَفِي الْمُنْتَقٰى شَرْطُ الْعَصْرُ عَلٰى قَوْلِ اَبِيْ يُوْسُفَ اَيْضًا وَلَوْ اَصَابَ الْبَوْلُ ثَوْبَهُ فَغَمَسَهُ مَرَّةً فِيْ نَهْرٍ جَارٍ وَعَصَرَهُ يَطْهَرُ وَهٰذَا قَوْلُ اَبِيْ يُوْسُفَ اَيْضًا وَفِي الْاَصْلِ قَالَ يَغْسِلُهُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَيَعْصِرُ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَعَنْ مُحَمَّدٍ اَنَّهُ يَغْسِلُهَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَيَعْصِرُ فِي الْمَرَّةِ الثَّالِثَةِ يَطْهَرُ فَفِيْ كُلِّ مَوْضِعٍ شُرِطَ الْعَصْرُ يَنْبَغِيْ اَنْ يُبَالِغَ فِي الْعَصْرِ حَتّٰى يُصِيْرُ الثَّوْبُ بِحَالٍ لَوْ عُصِرَ بَعْدَ ذٰلِكَ لَايَسِيْلُ مِنْهُ الْمَآءُ وَيُعْتَبَرُ فِيْ كُلِّ شَخْصٍ قُوَّتُهُ وَطَاقَتُهُ.

**ژباړه:** چي کله و کالو ته نجاست ورسيږي که چېري ليدل کيدی سي نو د دې طهارت نجاست ذات ليري کوی سي مګر د هغه چي ليري کول يې مشکل وي که چېري نه ليدل کيدی سي نو هغه دي دومره پرېولي چي غالب ګمان يې سي چي پاک سو او ويل سوي دي چي کله يې يو وار پرېولي نو بسه دي ونيستيږي پاکيږي، او ويل سوي دي نه پاکيږي تر هغه وخته پوري چي درې واره يې نه پرېولي او هر وار دي نيستيږي مګر فتوی په اول قول ده، په دغه باندي يو څو مسئلي مبني دي او د هغو څخه دا چي د امام ابويوسف رحمه الله څخه روايت دی چي جنب سړی چي کله په حمام کي په لنګ وهلو سره په خپل بدن شاو خوا اوبه توی کړي تر دې پوري چي د نجاست څخه ووزي نو د هغه وروسته په لنګ باندي اوبه واچوي نو د لنګ د پاکېدو حکم به کيږي، که څه هم نه وي نيستيږل سوی، په دوهم ځای کي يې ويلي دي که چېري په لنګ باندي په ورغوو سره اوبه توی کړي نو دا ډېره بهتره او بسه ده، په منتقی کي راغلي دي چي نيستيږل دابو يوسف رحمه الله په قول هم شرط دي که چېري د

هغه په کالو بولي لګېدلي وي نو په جاري نهر کي یې یو وار غوټه کړل سي او وي نیستېږي نو پاکیږي دغه ډول دا هم د ابویوسف رحمه الله قول دی او په مبسوط کي یې ویلي دي چي هغه دي درې واره پرېولي، د امام محمد رحمه الله څخه روایت دی چي دریم واره دي ونیستیږي نو پاکیږي او هر وار نیستیږل شرط دي نو مناسب دی چي په نسیتیږلو کي ښه کوشش وکړي تر دې پوري چي کالي په داسي حالت کي سي چي تر هغه وروسته په نستیږلو سره اوبه نه سي توی او د هر سړي په نیستیږلو کي قوت او طاقت معتبر دی .

**تشریح**: مصنف په دې عبارت کي وایي چي د نجاست دوه قسمونه دي:

۱: نجاست مرئیه یعني هغه نجاست چي ذات یې لیدل کیږي او د پرېولو په وخت کي په نظر راځي نو د دې نجاست څخه طهارت هغه وخت حاصلیږي چي د هغه ذات ختم سي البته چي کوم اثرات لکه رنګ او بوی د ښه پرېوللو وروسته هم باقي وي او په خالصو اوبو سره د هغو خاتمه ممکنه نه وي نو دي یو صابون یې د نورو لوازماتو اختیارولو ضرورت شرعًا نسته، مثلاً که چېري په کالو باندي وینه ولګیږي او په ښه طریقه سره د پرېولو باوجوده د هغه ژړ داغ د کالو څخه نه سي ختم نو هم کالي پاک سوه، که په یوه وار پرېوللو سره د نجاست ذات ختم سو نو بس دا کافي دی.

۲: نجاست غیرمرئیه یعني چي ذات یې نه لیدل کیږي لکه بولي نو د دې حکم دا دی چي دا نجاست دي دومره پرېولي چي غالب ګمان یې داوي چي اوس کالي پاک سوه، دغه ګمان غالب ځینو علماؤ درې واره او هر وار په نیستیږلو سره مقدر کړی دی او په نسیتیږلو کي ښه قوت خرڅول پکار دی چي کالي په داسي حالت کي سي چي تر هغه وروسته په نسیتیږلو سره څاڅکي نه تو ایږي البته په نیستیږلو کي د هر سړي د خپل قوت او طاقت اعتبار کیږي، د دې لپاره که چېري د یو سړي د نیستیږلو وروسته بیا بل سړی دغه کالي ونیستیږي او د هغه کالو څخه اوبه توی سي نو د

کالو په طهارت هیڅ اثر نه راځي .

وَفِيْ فَتَاوٰى اَبِي اللَّيْثِ خُفٌّ بِطَانَتُهُ سَاقِهِ مِنَ الْكِرْبَاسِ فَدَخَلَ فِيْ جَوْفِهِ مَآءٌ نَجِسٌ فَغَسَلَ الْخُفَّ وَدَلَكَهُ بِالْيَدِ ثُمَّ مَلَا الْمَآءَ الْخُفَّ ثَلَاثًا وَاَهْرَقَهُ اِلَّا اَنَّهُ لَمْ يَتَهَيَّاْ عَصْرُ الْكِرْبَاسِ فَقَدْ طَهَرَ الْخُفُّ لِاَنَّ جَرْيَانَ الْمَآءِ يَقُوْمُ مَقَامَ الْعَصْرِ وَرُوِيَ عَنْ اَبِي الْقَاسِمِ الصَّفَّارِ فِيْ رَجُلٍ يَسْتَنْجِيْ وَيَجْرِيْ مَآءُ الْاِسْتِنْجَاءِ تَحْتَ رِجْلَيْهِ وَلَيْسَ بِخُفَّيْهِ خِرْقٌ لَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ مَعَ ذٰلِكَ الْخُفِّ لِاَنَّ بِالْمَآءِ الْاَخِيْرِ يَطْهَرُ الْخُفُّ كَمَا يَطْهَرُ مَوْضِعُ الْاِسْتِنْجَآءِ وَفِي الْمُلْتَقَطِ اِنْ كَانَ خُفُّهُ مُنْخَرِقًا وَاَصَابَ الْمَآءُ رِجْلَهُ وَلِفَافَتَهُ رَجَوْتُ سِعَةَ الْاَمْرِ فِيْهِ اَلَا يَرٰى اَنَّ الْبِسَاطَ النَّجَسَ اِذَا جُعِلَ فِيْ نَهْرٍ جَارٍ وَتُرِكَ فِيْهِ يَوْمًا وَّلَيْلَةً حَتّٰى جَرَى الْمَآءُ عَلَيْهِ يَطْهَرُ.

**ژباړه:** په فتاوی ابو الليث کي راغلي دي چي د موزې استر که د کالو وو او په هغه کي نجسي اوبه داخلي سوي نو موزه يي پرېوله او وې موږل د هغه وروسته درې واره د اوبو څخه ډکولو وروسته بغير نيستيړلو يې چپه کړه او توی يې کړه نو موزه پاکه سوه ولي چي د اوبو جريان د نيستيړلو قائم مقام دی او د ابوالقاسم صفار څخه روايت سوی دی چي يو سړی استنجاء وهي او د استنجاء اوبه د هغه تر پښو لاندي کيږي او د هغه موزه څيري نه وي نو هغه ته جائز دی چي په موزه کي لمونځ وکړي ولي چي اخر د اوبو سره موضع استنجاء په مثل موزه هم پاکه سوه او په ملتقط کي دي که چيري موزه څيري وه او اوبه پښي او استر ته ورسيږي نو په دې کي د وسعت اميد لرم، ولي تاسو نه ګوری چي نجسه چټايي چي په جاري نهر کي واچول سي او په هغه کي يوه ورځ او شپه پاته وي چي په هغې اوبه وبهيږي نو پاکيږي .

**تشریح:** مصنف رحمه الله دلته څه د طهارت بیان کوي چې په هغه کې د مشکل په وجه نیستیږل ضروري نه دي، که چېرې د هغه په موزه کې د سورې په ذریعه نجسې اوبه داخلې سي او د لاندې د استر کالې نجس سي نو د لوړ څخه به پرېوللو وروسته په دې موزې کې درې واره اوبه واچول سي او بیا دې توی کړل سي نو موزه پاکه سوه او اوبه تویول د نیستیږلو قائم مقام سو او دا موزه د نیستیږلو بغیر ددې لپاره پاکه سوه چې د لاندې لګېدلې استر نیستیږل مشکل دي لکه څنګه چې په چټایې کې نیستیږل چونکې مشکل دي د دې لپاره فقط په جاري اوبو کې د اچولو وروسته چې کله په هغې باندې یوه ورځ او شپه اوبه جاري وي نو بغیر د نیستیږلو او بغیر د وچېدلو پاکیږي ولې چې نجاست په اوبو سره ځي، دغه ډول حکم په هغو ټولو شیانو کې دی چې د هغه نیستیږل سخت وي مګر دا ضروري ده چې تر هغه وروسته بیا د نجاست هیڅ اثر رنګ او بوی باقي نه سي پاته که چېرې د دې باوجوده د نجاست اثر باقي وي نو د مشقت ترحده د هغه د اثر د لیرې کولو کوشش پکار دی.

وَلَوْكَانَ عَلٰى يَدِهٖ نَجَاسَةٌ رَطْبَةٌ وَاَخَذَ عُرْوَةَ الْقُمْقُمَةِ كُلَّمَا صَبَّ الْمَآءَ فَاِذَا غَسَلَ يَدَهُ ثَلٰثًا طَهَرَتِ الْيَدُ وَالْعُرْوَةُ الْحَصِيْرُ مِنْ قَصَبٍ اِذَا اَصَابَهُ نَجَاسَةٌ فَجَفَّتْ يُدْلَكُ ثُمَّ يُغْسَلُ ثَلٰثًا وَاِنْ كَانَتْ رَطْبَةً يُغْسَلُ ثَلٰثًا وَلَايَحْتَاجُ اِلٰى شَيْءٍ اٰخَرَ وَاِنْكَانَ الْحَصِيْرُ مِنْ بَرْدِيٍّ وَمَا اَشْبَهَ ذٰلِكَ يُغْسَلُ ثَلٰثًا وَيُجَفَّفُ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ فَاِنَّهٗ يَطْهُرُ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِّمُحَمَّدٍ وَفِي النَّوَازِلِ اِذَا اَصَابَتِ الْخَزَفَ اَوِالْاَنَآءَ اَوِالْاٰجُرَ نَجَاسَةٌ اِنْكَانَ قَدِيْمًا يَطْهُرُ بِالْغَسْلِ ثَلٰثًا جُفِّفَ اَوْلَمْ يُجَفَّفْ وَاِنْكَانَ جَدِيْدًا يُغْسَلُ ثَلٰثَ

مَرَّاتٍ وَيُجَفَّفُ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ يُغْسَلُ مِقْدَارُ مَايَقَعُ اَكْبَرُ رَأْيِهِ اَنَّهُ قَدْ طَهَرَ وَاشْتَرَطَ مَعَ ذٰلِكَ اَنْ لَّايُوْجَدَ مِنْهُ طَعْمُ النِّجَاسَةِ وَلَا لَوْنُهَا وَلَا رَائِحَتُهَا وَاِنْ وُجِدَ اَحَدُ هٰذِهِ الْاَشْيَآءِ لَايَحْكُمُ بِطَهَارَتِهِ وَعَلَيْهِ اَكْثَرُ الْمَشَائِخِ.

**ژباړه:** که چېري د هغه په لاس باندي لوند نجاست وي او په لاس کي يې بدنې نيولي وي چي په هغه باندي اوبه تو ايدي نو دغه ډول يې درې واره لاس پرېولی نو لاس او د بدنې دسته پاکه سوه، يو چټايي نجسه سوه بيا وچه سوه نو ودي ګوروي بيا دي درې واره پرېولي که چېري لنده وي نو درې واره دي پرېولي د دې بغير د بل شي ضرورت نسته، او که چېري چټايي د مزري وي يا د دې په مثل د بل شي څخه جوړه وي نو درې واره دي پرېولي او هر وار دي وچه کړي نو د امام ابويوسف رحمه الله په نز پاکيږي بخلاف د امام محمد رحمه الله او په نوازل کي دي که کله ټکرو، په لوښو يا پخې خښتي باندي چي نجاست ولګيږي که چېري اوبه ژړي وي نو په درې واره پرېولو سره پاکيږي که وچ يي او که نه يي، که چېري نوی وي نو درې واره دي پرېولل سي او هر وار دي وچ کړل سي او په محيط کي راغلي دي چي دومره دي پرېولل سي چي غالب ګمان يې داسي چي پاک سو او د دې سره دا شرط هم دی چي د دې سره د نجاست يو څه اثر خوند، رنګ، او بوی نه سي محسوس که چېري د دې درو څخه يو هم محسوس سي نو د طهارت حکم نه ورکول کيږي او په دې باندي اکثره مشائخ دي.

**تشريح:** که چېري يو څوک په لاس کي بدنې را واخلي روان سي او د هغه په لاس باندي نجاست وي که لوند وي او که وچ او د بدنې څخه د هغه په لاس باندي اوبه تو ايږي نو چي کله اوبه په هغه باندي تو ايږي هغه خپل لاس پرېولي او دا عمل يې درې واره وکړ او د لاس څخه د نجاست اثر ختم سو نو لاس او د بدنې دسته دواړه

پاک سوه، د نرکلو په چټايي چي کله نجاست ولګيږي نو چونکي نرکل سخت دي او نجاست د هغه دننه تک نه سي کولای نو فقط په درې واره پرېوللو سره چټايي پاکيږي که چېري چټايي د مزر وغيره يعني د هغه شيانو څخه جوړه سوې وي په کوم کي چي نجاست جذب کيږي لکه د چټايي بان وغيره نو د هر وار پرېوللو وروسته وچول ضروري دي، دغه ډول د خاورو پاخه لوښي او خښتي چي کله نوي يي نو د هغو سوريان خلاص يي او په هغو کي نجاست جذب کيږي نو د نجسېدلو وروسته په درې واره پرېولو سره هر وار وچول ضروري دي که چېري زړې وي نو چونکي د هغو سوري بندي وي ځکه په هغو کي نجاست نه جذب کيږي نو فقط په پرېوللو سره د وچولو بغير هم پاکيږي.

وَلَوْ مُوِّهَ الْحَدِيْدُ بِالْمَآءِ النَّجِسِ يُمَوَّهُ بِالْمَاءِ الطَّاهِرِ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَيَطْهُرُ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ عَنْ شَمْسِ الْاَئِمَّةِ السَّرْخَسِيِّ الْاَرْضُ اِذَا جَفَّتْ وَلَمْ يَتَبَيَّنْ اَثَرُ النَّجَاسَةِ فِيْهَا تَطْهُرُ سَوَآءٌ وَقَعَ عَلَيْهِ الشَّمْسُ اَوْلَمْ تَقَعْ وَكَذَا الْحَصٰى اِذَا تَنَجَّسَتْ وَجَفَّتْ وَذَهَبَ اَثَرُهَا تَطْهُرُ اَيْضًا اِذَا كَانَتْ مُتَدَاخِلًا فِي الْاَرْضِ وَلَوْكَانَتِ النَّجَاسَةُ تَحْتَ قَدَمَيْهِ وَتَحْتَ كُلِّ قَدَمٍ اَقَلَّ قَدْرِ الدِّرْهَمِ وَلٰكِنْ لَوْ جُمِعَ يَبْلُغُ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ لَايَجُوْزُ صَلٰوتُهُ بِهِ وَلَوْكَانَتْ فِيْ مَوْضِعِ السَّجْدَةِ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ وَتَحْتَ قَدَمَيْهِ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ فَكَذٰلِكَ اَيْضًا ذَكَرَهُ فِي الْفَتَاوٰى كَذَا الثَّيْلُ وَالْحَشِيْشُ وَمَايَنْبُتُ فِي الْاَرْضِ مَادَامَ قَائِمًا عَلَى الْاَرْضِ يَطْهُرُ بِالْجَفَافِ مُطْلَقًا ذَكَرَهُ الزَّنْدَ وِيْسِتِّيْ وَعَنْ مُحَمَّدِبْنِ الْفَضْلِ الْحِمَارُ اِذَا بَالَ فِي الْمُشَبَّكَةِ وَوَقَعَ عَلَيْهَا

الطَّلُّ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَوَقَعَ عَلَيْهَا الشَّمْسُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ فَقَدْ طَهَرَ وَكَذَا الْحَجَرُ وَالْاٰجُرُّ اِذَاكَانَ مَفْرُوْشًا يَطْهَرُ بِالْجَفَافِ وَاَمَّا اِنْ كَانَتْ مَوْضُوْعَةً تَنْقُلُ وَتَحَوَّلُ لَابُدَّ مِنَ الْغَسْلِ وَكَذَا اللِّبْنَةُ اِذَاكَانَتْ مَفْرُوْشَةً جَازَتِ الصَّلٰوةُ عَلَيْهَا بَعْدَ الْجَفَافِ وَذُكِرَ فِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ اِذَاكَانَتِ الْحَجَرُ تَشَرَّبَتِ النِّجَاسَةَ تَطْهَرُ بِالْجَفَافِ وَاِنْكَانَتْ مَاتَشَرَّبَتْ لَاتَطْهَرُ اِلَّا بِالْغَسْلِ.

**ژباړه:** که چېري اوسپني ته يې مرداري اوبه ورکړې نو په درو وارو پاکو اوبو ورکولو سره پاکيږي او په محيط کي د شمس الائمه سرخسي څخه منقول دي چي مځکه کله وچه سي او په هغه کي د نجاست اثر ظاهر نه وي نو پاکيږي که په هغې باندي لمر راغلی وي او که نه، دغه ډول باجرى چي کله نجس سي او په وچيدو سره د هغه اثر ختم سي نو پاکيږي.

که چېري نجاست د هغه تر دواړو قدمو لاندي وي او د هر قدم لاندي د درهم تر مقدار کم وي مګر که چي سره يوځای سي نو د درهم څخه زيات مقدار ته رسيږي نو د هغه لمونځ نه دی جائز، که چېري د سجدې په ځای کي د درهم څخه کم وي او د دواړو قدمو لاندي هم د درهم څخه کم وو نو دغه ډول حکم دی دا په فتاوی کي مذکور دي، دغه ډول وابنه، بناخلې او هغه شيان چي په مځکه کي شنه کيږي تر هغه وخته پوري چي په مځکه قائم وي نو صرف په وچيدو سره پاکيږي، دا زندويستی ذکرکړی دي، د محمد بن فضل رحمه الله څخه روايت دی چي خر کله په وښو کي بولي وکړي او په هغه باندي دړې واره شبنم وسي او دړې ورځې لمر باندي وي نو پاک سو دغه ډول ډبره او پخه خښته چي کله په فرش لګېدلي وي نو په وچيدو سره پاکيږي که چېري صرف يوځای پرتې وي د کوم څخه چي نقل او حرکت کېدی سي

نو پریوللِ یې ضروري دي، دغه ډول کچه (اومه) خښته چې کله په فرش کې وي نو د وچېدو وروسته په هغې باندې لمونځ جائز دی او په بل ځای کې ذکر دي چې ډېره کله د نجاست جذب کولو والا وي نو په وچېدو سره پاکېږي که چېرې یې نه جذب کوي نو نه پاکېږي مګر په پریوللو سره.

**تشریح**: د اوسپنو لوښوته د ښائست لپاره چمکداره اوبه ورکول کېږي نو مصنف ﷫ وايي که چېرې اوسپنې ته نجسې اوبه ورکړل سوې نو درې واره دغه اوبه چې د ښائست لپاره ورکول کېږي چې کله پاکې اوبه ورکول سي نو دا لوښی پاک تصور کېږي، مګر صاحب کبیر لیکلي دي چې دا مسئله فقط د لمانځه په صورت کې ده، که د چا سره د لمانځه په دوران کې دا لوښی وي چې هغه نجسې اوبه ورکول سوي وي نو د هغه سره لمونځ نه دی جائز، دغه ډول که چېرې چاړې ته مثلاً نجسې اوبه ورکول سوي وي او د درې واره پریوللو وروسته په دې چاړه سره یوه میوه یا سبزي یا غوښه وغیره پرې سي نو دا شیان نه‌نجس کېږي، او په ځمکه کې یا هغه ډبرې او پخې خښتې چې په ځمکه کې‌په پاخه ډول لګېدلي وي چې کله وچې سي که په لمر وي او که په هوا سره او د نجاست هیڅ اثر نسي پاته نو پاکېږي او په دې لمونځ جائز دی، دغه ډول وچ یا شنه واښه چې کله نجس سي نو په شبنم کېدو یا وچېدو سره پاکېږي ولي چې تر څه‌وخته پورې پر ځمکه ولاړ وي د هغې تابع دي.

اَلْمَآءُ وَالتُّرَابُ اِذَا خُلِطَا وَكَانَ اَحَدُهُمَا نَجَسًا فَالطِّيْنُ نَجَسٌ وَقِيْلَ الْعِبْرَةُ لِلْمَاءِ وَقِيْلَ لِلتُّرَابِ وَقِيْلَ لِلْغَالِبِ وَالطِّيْنُ النَّجَسُ اِذَا جُعِلَ مِنْهُ الْكُوْزُ اَوِ الْقِدْرُ فَطُبِخَ يَكُوْنُ طَاهِرًا وَلَوْ اُحْرِقَتِ الْعَذِرَةُ وَالرَّوْثُ فَصَارَ رِمَادًا اَوْمَاتَ الْحِمَارُ فِي الْمَلْحِ فَصَارَ مِلْحًا اَوْ وَقَعَ الرَّوْثُ فِي الْبِئْرِ فَصَارَ حَمْاَةً زَالَتْ نِجَاسَتُهُ وَطَهُرَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ خِلَافًا لِاَبِيْ

يُوْسُفَ حَتّٰى لَوْ اُكِلَ الْمِلْحُ وَصُلِّيَ عَلٰى ذٰلِكَ الرِّمَادِ جَازَتْ وَلَوْ وُقِعَ ذٰلِكَ الرِّمَادُ فِي الْمَآءِ الصَّحِيْحِ اَنَّهٗ يَتَنَجَّسُ وَكَذَا الْاٰجُرُ يَطْهَرُ بِالْغَسْلِ ثَلٰثًا وَالْجِفَافُ ظَاهِرُهٗ حَتّٰى لَوْ وَقَعَتْ قِطْعَةٌ مِّنْهُ فِي الْمَآءِ يَتَنَجَّسُ كَذَا ذَكَرَهٗ فِي الْمُحِيْطِ.

**ژباړه:** اوبه او خاوره چي کله سره ګډ سي او د هغوی څخه يو نجس وي نو ختهه نجسه کيږي نو ځينو ويلي دي چي اوبه متعبري دي او ځينو ويلي دي چي خاوره معتبره ده، او ځينو ويلي دي چي اعتبار د غالب دی يعني چي هر يو ډېر وي، په ناپاکه ختهه سره بدنۍ يا ديګ جوړولو وروسته چي کله پاخه کړل سي، او که چېري اور ګندکي يا نجاست وسوزي او ايره سي، يا خر په مالګه باندي مړ سي او مالګه سي، يا نجاست په څاه کي ولويږي او وروسته ختمي سي او نجاست ختم سو نو دا پاک دی د امام محمد رحمه الله په نِز، بخلاف د امام ابويوسف رحمه الله تر دې پوري که چېري مالګه وخوړل سوه او يا په دې ايرې باندي لمونځ وکړل سو نو جائز دی او که چېري دا ايره په اوبو کي ولويږي نو صحيح دی چي مرداريږي، دغه ډول پخه خښته په درې واره پريوللو سره پاکيږي، او په وچ سره فقط ظاهر طرف تر دې پوري که چېري د دې يوه ټکړه په اوبو کي وليږي نو نجسه دي، دغه ډول په محيط کي ذکر سوي دي.

**تشريح:** د ختمي جوړولو لپاره خاوره او اوبه پکار دي مګر چي کله د هغو څخه يو يعني خاوره يا اوبه نجس وي نو د دې ختمي څه حکم دی؟ په دې باره کي د فقهاء کرامو مختلف اقوال دي چي هغه مصنف رحمه الله په متن کي مختصر بيان کړي دي مګر صاحب فتح القدير حافظ ابن الهمام ويلي دي چي دلته به د پاکۍ په اعتبار کولو سره د ختمي پاکولو حکم ورکول کيږي، او امام بزازي رحمه الله ويلي دي چي دغه قول د امام محمد رحمه الله دی او په دغه باندي فتوٰی هم ده، دغه ډول که چېري د نجسي ختمي څخه لوښی جوړکړل سي او هغه پوخ کړي نو په پخيدو سره دا لوښی

پاکیږي که څه هم د دوی خټه نجسه وه مګر دا ضروري دی چي د پخیدو وروسته په
هغوی باندي د نجاست اثر نه وي دغه ډول چي کله د نجاست خپل حقیقت بدل سي
مثلاً د متخلف قسمو ګندګی په سوزیدو سره ایره جوړه سي یا د مالګي په کانو کي
یا یو حیوان هلاک سي په مالګه بدل سي نو د دې مالګي خوړل او په ایرې باندي
لمونځ کول درست دي ، دغه قول مفتٰی به هم دی، د امام یوسف رحمه الله په نِز باندي نه
دی درست د دې لپاره د مصنف رحمه الله دا قول که چېري دا ایراه په اوبو کي ولویږي نو
اوبه نجسي کیږي صرف د امام یوسف رحمه الله په قول صحیح کیدی سي ولي چي د
امام محمد رحمه الله په نِز چي کله هغه ته د طهارت حکم ورکړل سو نو د پاک شي په
اوبو کي د لوېدلو سره اوبه نه مرداریږي ۔

حِمَارٌ بَالَ فِي الْمَآءِ فَاَصَابَ مِنْ ذٰلِکَ الرَّشِّ ثَوْبَ اِنْسَانٍ لَایَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلٰوۃِ حَتّٰی
یَسْتَیْقِنَ اَنَّهُ بَوْلٌ وَبِهِ اَخَذَ الْفَقِیْهُ اَبُوْ اللَّیْثِ وَفِیْ فَتَاوٰی قَاضِیْخَانَ اِذَا اَبَالَ حِمَارٌ
فِیْ مَآءٍ رَاکِدٍ فَاَصَابَ الرَّشُّ اَکْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ یَمْنَعُ وَذُکِرَ عَنْ مُحَمَّدِبْنِ
الْفَضْلِ اَنَّهُ اِذَاکَانَ فِیْ رِجْلِ الْفَرَسِ نَجَاسَةٌ نَحْوُ السِّرْقِیْنِ فَمَشٰی فِی الْمَآءِ فَاَصَابَ
ثَوْبَ الرَّاکِبِ صَارَ الثَّوْبُ نَجِسًا سَوَآءٌ کَانَ الْمَآءُ رَاکِدًا اَوْجَارِیًا وَاِنْ لَّمْ یَکُنْ فِیْ
رِجْلِهِ نَجَاسَةٌ فَلَا یَضُرُّهُ وَسُئِلَ اَبُوْ نَصْرِ الدِّبَاسِ عَمَّنْ یَغْسِلُ الدَّابَةَ فَیُصِیْبُهُ مِنْ
ذٰلِکَ الْمَآءِ اَوْمِنْ عَرَقِهَا قَالَ لَایَضُرُّهُ اَیْضًا قِیْلَ لَهُ وَاِنْکَانَتْ قَدْ تَمَرَّغَتْ فِیْ بَوْلِهَا
وَرَوْثِهَا قَالَ اِذَا جَفَّتْ وَتَنَاثَرَتْ وَذَهَبَ عَنْهَا اَثَرُهَا لَایَضُرُّهُ اَیْضًا وَذُکِرَ فِی الذَّخِیْرَۃِ
اِذَا اُلْقِیَ الْحَجَرُ الْمُتَلَطِّخُ بِالعَذْرَۃِ فِی الْمَآءِ الْجَارِیْ فَارْتَفَعَتْ قَطَرَاتٌ فَاَصَابَ ثَوْبَ

اِنْسَانٍ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ لَايَجِبُ غَسْلُهُ اِلَّا اَنْ يَّظْهَرَ فِيْهِ لَوْنُ النَّجَاسَةِ وَقَالَ نَصِيْرٌ يَجِبُ عَلَيْهِ غَسْلُهُ وَصَلّٰى وَمَعَ شَعْرُ اِنْسَانٍ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ جَازَتِ الصَّلٰوةُ وَبِهِ اَخَذَ الْفَقِيْهُ اَبُوْ جَعْفَرٍ وَاَبُوْ الْقَاسِمِ الصَّفَّارِ وَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهُ لَاتُجُوْزُ وَبِهِ اَخَذَ نَصِيْرٌ.

**ژباړه:** خر چي کله په اوبو کي بولي وکړي او څاڅکي د انسان په کالو باندي ولګيږي نو د لمانځه جواز نه منع کوي تر هغه وخته پوري چي يقين نه وي چي دا بولي دي او دا د فقيه ابوالليث فتوی ده، په فتاوی قاضي خان کي راغلي دي چي کله خر په ولاړو اوبو کي بولي وکړي او په کالو باندي د اوبو څاڅکي وسي نو منعه کوي يې د محمد بن فضل رحمه الله څخه روايت دي چي کله د آس په پښو کي نجاست وي لکه ګوبر او خوشائي او په اوبو کي تېرسي او د سپور په کالو باندي څاڅکي ولګيدل نو کالي نجس سوه که اوبه ولاړي وي او که جاري وي، که چېري د هغه په پښو کي نجاست نه وي نو بيا تاوان نه کوي، د ابو نصردباس څخه يوچا د يو سړي په باره کي پوښتنه وکړه چي يو سپور حيوان لمبه وي نو د هغه په کالو باندي دا اوبه يا د دې خوله ولګيږي نو څه حکم يې دی؟ ده ورته وويل چي دا مضر نه دی، بيا يوچا پوښتنه وکړه که چېري هغه په بولو او ګوبرو کي ختلی وي نو څه حکم يې دی؟ ده وويل چي کله وچ سي او ځان وسنډي او د هغه څخه د نجاست اثر ختم سي نو هم مضر نه دی، په ذخيره کي ذکرسوي دي چي کله يوه ګنده ډبره په جاري اوبو کي وغورځول سي او د هغه څخه څاڅکي وغورځيږي بيا د يوسړي په کالو ته د يو درهم د مقدار څخه زيات ولګيږي نو ابوبکر ويلي دي چي د هغه پريولل واجب نه دي مګر نه چي د ګندګی رنګ په کالو کي ظاهر سي، او نصير رحمه الله ويلي چي پريولل يې

واجب دي، که چېري د يوځا سره د لمانځه په دوران کي د يوه درهم مقدار څخه زيات د انسان وريښتان ورسره وي نو لمونځ جائز دی او په دغه باندي د فقيه ابوجعفر او ابو قاسم صفار فتوی ده او د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله څخه روايت دی چي نه دی جائز او په دغه قول باندي د نصير رحمه الله فتوی دی.

**تشريح**: کله چي خر په اوبه کي بولي وکړي او څاڅکي پورته سي د چا په کالو باندي ولګيږي نو د دې کالو په نجس يا په نه نجس کېدو کي د علماء وو اختلاف دی، امام فقيه ابو الليث سمرقندي رحمه الله وايي چي په دې څاڅکو سره کالي نه مرداريږي تر هغه وخته پوري چي د دې خبري يقين نه وي چي دا څاڅکی د بولو دی ولي چي کالي په يقيني ډول پاک دي او يقين په شک سره نه زائليږي او دغه مفتی به قول دی او قاضي خان ويلي دي چي کله په ولاړو اوبو کي بولي وکړي نو د هغه څخه غورځېدلي څاڅکي په هر صورت نجس دي، که په اوبو کي کله خر بولي وکړي نو هغه اوبه خپله هم نجسي کيږي، دغه ډول که چېري د لمانځه په دوران کي د چا په جيب وغيره کي د انسان وريښتان وي نو د دې سره د صحيح قول مطابق لمونځ کول جائز دی او د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه يو شاذ روايت دا هم دی چي جائز نه دی مګر دا قول صحيح نه دی ولي چي کله د مردار حيوان وريښتان هم پاک دي نو د انسان وريښتان څنګه نجس کيدی سي.

وَجِرَّةُ الْبَعِيْرِ كَسِرْقِيْنِهِ وَمِرَارَةُ كُلِّ حَيْوَانٍ كَبَوْلِهِ اِذَا وَقَعَ جِلْدُ اِنْسَانٍ فِي الْمَآءِ اِنْ كَانَ مِقْدَارُ الظُّفُرِ فَسَدَهُ وَفِيْ اَسْنَانِ الْاٰدَمِيِّ اِخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ وَفِيْ فَتَاوٰى الْبَقَّالِيِّ قِطْعَةُ جِلْدِ كَلْبٍ اِلْتَزَقَ بِجَرَاحَةٍ فِي الرَّأْسِ يُعِيْدُ مَاصَلّٰى بِهِ وَاِنْ صَلّٰى وَمَعَهُ سِنَّوْرٌ اَوْحَيَّةٌ تَجُوْزُ بِخِلَافِ جَزْوِ الْكَلْبِ وَاِذَا لَحِسَتِ الْهِرَّةُ كَفَّ رَجُلٍ يُكْرَهُ لَهُ اَنْ يَدَعَهَا

تَفْعَلُ ذٰلِکَ لِاَنَّ رِيْقُهَا مَكْرُوهٌ وَكَذَا يَكْرَهُ اَنْ يَأْكُلَ اَوْيَشْرَبَ مَابَقِيَ مِنْهَا وَذُكِرَ فِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ اَنَّهَا اِنْ لَحِسَتْ عُضْوَ اِنْسَانٍ فَصَلّٰى قَبْلَ اَنْ يَّغْسِلَ جَازَ وَالْاَوْلٰى اَنْ يَّغْسِلَهُ.

**ژباړه:** د اوښ شوخړ د هغه د خوشايو په مثل دی او د هرحيوان تګ د هغه د بولو په مثل دی که چېري د انسان پوست په اوبو کي ولوېږي که څه هم د نوک په مقدار وي نو فاسده وي يې او د انسان په غاښو کي د علماء وو اختلاف دی او په فتاوی بقالي کي راغلي دي چي د سپي پوست که چېري د سر په زخم ولګوي نو د هغه لمانځه اعاده دي وکړي که يې د هغه سره لمونځ کړي وي، که د لمانځه په وخت کي د هغه سره پیشي يا مار وي نو جائز دی، په خلاف د سپي د بچي او چي کله پيشي د انسان ورغوی وڅټي نو د هغه لپاره مکروه دی چي هغه يې د ا داکولو يعني څټلو ته پرېږدي ولي چي د هغه ناړي مکروه دي او دغه ډول د هغه پسخورده خوړل او څښل هم مکروه دي او په يو بل ځای کي مذکور دي که چېري د يوه انسان يو اندام وڅټي او د پريوللو ترمخه هغه لمونځ وکړي نو جائز دی او بهتره داده چي هغه پريولي .

**تشريح:** اوښ، غوايې، پسه او نور حيوانان چي کله خوراک کوي نو په يو ځای کي په آرامه سره په کښېنستلو سره د معدې څخه يې بيرته راوباسي او په خُله کي يې را وړي او په زامو باندي د ښه ميده کولو وروسته يې بيا خوري، دې ته په عربي کي جرة او په اُردو کي پوتها وايي، مصنف رحمه الله وايي د دې حيوانانو د ګوبر چي کوم حکم دی هغه د دوی د شوخړ هم دی، ولي چي د شوخړ هم د محل نجاست يعنی د نس له طرف څخه راځي او د پته حکم د بولو په مثل دی، يعنی نجسه دی ولي چي په دې کي فاسدي مادې يې او د انسان د غاښ په باره کي ظاهر مذهب

دغه دی چي پاک دی .

په تیرو زمانو کي د سر د زخمو یو قسم علاج دا وو چي په هغو به یي د سپي پوست لګوی نو هغه به د پلستر رنګه په هغه زخم مښتی او لږ وخت وروسته به زخم جوړ سو، اوس مصنف رحمه الله وایي که چېري چا په ډول د علاج په سر د سپي پوست کښېښووی او داپوست مدبوغ نه وي نو د نجاست په وجه د دې پوست سره لمونځ نه دی جائز او د کړي لمونځو اعاده ضروري ده، که چېري څوک د لمانځه په وخت کي پیشي یا مار را واخلي د ځان سره یې وساتي نو لمونځ جائز دی. ولي چي د هغوی ناړي نجسي نه دي او د سپي د هغه په مثل نور حیوانان د کومو ناړي چي نجسي وي په هغه سره لمونځ نه دی جائز، که چېري د پیشي سره عادت وي او د دې سره بازی کوي او د ورغوي یا د جسم بله حصه څټل شروع کړي نو پیشي څټلو ته پرېښودل مکروه دی ولي چي د دې هغه ناړي مکروه دي مګر که چېري د څټلو وروسته څوک بغیر د پرېوللو د دې سره لمونځ وکړي نو جائز دی البته پرېولل یې بهترینه خبره ده .

وَفِي الذَّخِيْرَةِ اِذَاكَانَتِ النِّجَاسَةُ فِيْ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَآءِ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ فَاسْتَجْمَرَ بِثَلٰثَةِ اَحْجَارٍ وَاَنْقَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ بِالْمَآءِ قَالَ الْفَقِيْهُ اَبُو اللَّيْثِ فِيْ فَتَاوٰهُ يَجْزِيْهِ وَبِهِ نَاْخُذُ الرَّجُلُ اِذَا اسْتَنْجٰى بِالْمَآءِ وَخَرَجَ مِنْهُ رِيْحٌ قَبْلَ اَنْ يَّيْبَسَ هَلْ يَتَنَجَّسُ مِنَ الْيَتَيْهِ الْمَوْضِعُ الَّذِىْ تَمُرُّ بِهِ الرِّيْحُ اَمْ لَا اِخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ الْاَصَحُّ اَنَّهُ لَايَتَنَجَّسُ وَذُكِرَ فِيْ مَوْضِعِ اٰخَرَ يَجِبُ عَلَيْهِ اَنْ يُّعِيْدَ الْاِسْتِنْجَآءَ لِاَنَّهُ لَمَّا خَرَجَ

مِنْهُ الرِّيْحُ يَخْرُجُ الْمَآءُ الَّذِیْ دَخَلَ وَقْتَ الْاِسْتِنْجَآءِ وَكَذَا اِذَا لَبِسَ سَرَاوِيْلَهُ مُبْتَلًّا فَخَرَجَ مِنْهُ الرِّيْحُ حَيْثُ لَايَتَنَجَّسُ السَّرَاوِيْلُ.

**ژباړه**: په ذخیره کي راغلي دي چي کله نجاست د استنجاء په ځای کي د یوه درهم څخه زیات وي بیایي په درو ډبرو سره صفایي وکړه او نه یې پریولی نو فقیه ابو اللیث سمرقندي رحمه الله په خپل فتاوی کي ویلي دي چي جائز دی او په دغه باندي زموږ عمل دی، چي کله یو سړی په اوبو استنجاء ووهي او د وچیدو ترمخه د هغه څخه هوا خارجه سي ایا د هغه د هغه ځای څخه په کوم چي هوا تیره سوي دی ناپاکیږي که نه؟ په دې کي د علماوو اختلاف دی اصح خبره داده چي نه نجس کیږي، او په دوهم ځای کي مذکوردي چي په هغه باندي واجب دی چي دوباره استنجاء ووهي ولي چي کله هوا ووزي نو هغه اوبه چي په استنجاء سره داخلي سوي وي هغه هم ووتي او دغه ډول چي کله یي لوند پرتوګ واغوستی بیا د هغه څخه هوا خارجه سوه نو په دې وخت کي پرتوګ نه مرداریږي .

**تشریح**: صاحب ذخیره د فقیه ابو اللیث سمرقندي رحمه الله دا فتوی نقل کړي ده چي که څه هم د استنجاء په ځای کي نجاست د مقدار درهم څخه زیات سی بیا هم فقط په لوټو یا ریګني ډبرو سره که چېري موضع د استنجاء صفا کړل سي نو کافي دی او په اوبو سره پرېولل په وجوبي ډول نه دي البته مستحب او ضروري دي مګر دا حکم هلته دی چي صرف معتاد فضله خارجه سي که چېري د دې څخه علاوه غیر معتاد فضله خارجه سي یعنی ګندګي لکه وینه وغیره خارج سي نو پرېولل یي واجب دي دغه ډول که چېري موضوع استنجاء په اوبو سره د پریولو وروسته د وچیدو د مخه هوا خارجه سي نو د اصح قول مطابق په کوم ځای چي هوا تیره سوي وي هغه نه مرداریږي ، څینو فقهاء کرامو دا احتمال قائمه وي چي کله دا هوا ووزي نو د

ستنجاء وهلو په وخت کي داخلي سوي اوبه هم ورسره راوزي او هغه خو نجسي
ي د دي لپاره دوباره استنجاء وهل ضروري دي مګر دا فقط يو احتمال دی ولي
چي د استنجاء په وخت کي د اوبو دومره مقدار نه داخليږي د کوم چي د هوا نسره
خروج وسي هغه خو فقط احتمال دی او يقين په شرک سره نه زائليږي نو طهارت
يقيني دی فقط په احتمال سره نه زائليږي .

وَاِذَا ارْتَفَعَ بُخَارُ الْكَنِيْفِ اَوِالْمَرْبَطِ فَاسْتَجْمَدَ فِي الْكُوَّةِ اَوْفِي الْبَابِ ثُمَّ ذَابَ فَاَصَابَ ثَوْبَهُ يَتَنَجَّسُ كَلْبٌ مَشٰى عَلَى الطِّيْنِ فَوَضَعَ رَجُلٌ قَدَمَهُ عَلٰى ذٰلِكَ الطِّيْنِ يَتَنَجَّسُ وَكَذَا اِذَا مَشٰى عَلَى الثَّلْجِ وَالثَّلْجُ رَطْبٌ وَاِنْكَانَ الثَّلْجُ جَامِدًا فَهُوَ طَاهِرٌ الْكَلْبُ اِذَا اَخَذَ عُضْوَ اِنْسَانٍ اَوْ ثَوْبَهُ لَايَتَنَجَّسُ مَالَمْ يَظْهَرْ فِيْهِ الْبَلَلُ سَوَآءٌ كَانَ الْكَلْبُ رَاضِيًا اَوْغَضْبَانَ الْكَلْبُ اِذَا اَكَلَ بَعْضَ عُنْقُوْدِ الْعِنَبِ يُغْسَلُ مَااَصَابَ فَمَهُ ثَلٰثًا وَيُؤْكَلُ وَكَذَا يُغْسِلُ بَعْدَ يُبْسِ الْعُنْقُوْدِ وَلَوْ عَصَرَ الْعِنَبَ فَاَدْمٰى رِجْلَهُ وَسَالَ الدَّمُ عَلَى الْعَصِيْرِ وَالْعَصِيْرُ يَسِيْلُ وَلَايَظْهَرُ اَثَرُ الدَّمِ فِيْهِ لَايَتَنَجَّسُ وَهٰذَا قَوْلُ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ كَمَا فِي الْمَآءِ الْجَارِيْ ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ.

**ژباړه:** چي کله د پاخانې يا د ګندګۍ بخار پورته سي په روښندان يا پر دروازه باندي جمع سی او بيا راکښته سي د هغه پر کالو باندي نو نجسي کيږي، سپی چي کله په خټو کي تېر سو او سړي په هغه کي خپل قدم کښېښووی نو نجس کيږي، دغه ډول چي کله په يخي کي تېر سي او يخی ويلي وي او که چېري يخی سخت وي نو پاک دی او سپی چي کله د انسان اندام يا کالي ونيسي نو نجس کيږي نه تر هغه وخته پوري چي په هغه کي تاثير ښکاره نه سي که سپی راضي وي او که په قهر وي،

چي کله سپی د انګورو د غونچې یو څه حصه وخوري نو ترکوم ځای پوري چي د سپی خوله رسېدلي وي نو د هغه وروسته دي درې واره پرېولي او ودي خوړل سي، دغه ډول د غونچې وچېدلو وروسته دي هم پرېولي، که چېري یي انګور وزویښل او د هغه پښه په وینو سوه او وینه د انګورو په شربت وبهیده او شربت بهیږي په هغه د ویني اثر نه وي ظاهر نو د امام ابو حنیفه رحمه الله او ابویوسف رحمه الله د قول مطابق نه نجس کیږي لکه څنګه چي دا مسئله د جاري اوبو په حکم کي هم ده، دا په محیط کي ذکرسوي دي.

**تشریح**: د انسان ګندګي یا د حیوانانو د خوشایو څخه پورته کېدونکې بُخار د جمع کیدور وروسته که چېري په بدن یا په کالو باندي ولګیږي نو چونکي د هغه ټول اجزای نجس دي د دې لپاره بدن او کالي نجس کوي چونکي د ځینو فقهاؤ په نِز سپی نجس العین دی د دې لپاره که چېري هغه په خټو یا په بل لانده شي کي تېرسي او تر هغه وروسته انسان په هغه خټو کي تیر سي یا هغه شی مسحه کړي نو هغه هم نجس کیږي، مګر د اصح قول مطابق سپی نجس العین نه دی د دې لپاره فقط د سپي د جسم په لګېدو سره دا شیان نه مرداریږي، دغه ډول که چېري سپی د انسان یو اندام یا کالي ونیسي تر هغه وخته پوري چي تاثیرېې ښکاره نه سي نو نجس نه دی ولي چي یقین په شک سره نه زائلیږي دغه ډول که چېري سپی په خوراک کي خوله واچوي نو د احنافو رحمه الله په نِز په درې واره پرېوللو سره پاکیږي او د ائمه ثلاثه وو په نِز په اووه واره پرېوللو سره چي په هغه کي یو وار په خاوري سره پرېولل ضروري دي.

وَاِنْ تَوَضَّأَ بِالْمَآءِ الْمَشْكُوْكِ اَوْبِالْمَآءِ الْمَكْرُوْهِ ثُمَّ وَجَدَ مَآءً خَالِصًا لَيْسَ عَلَيْهِ غَسْلُ مَا اَصَابَهُ وَاَمَّا مَالَزِقَ مِنَ الدَّمِ السَّآئِلِ بِاللَّحْمِ فَهُوَ نَجَسٌ وَمَابَقِيَ فِي اللَّحْمِ

لَيْسَ بِنَجَسٍ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ وَرَآيْتُ فِيْ بَعْضِ الْكُتُبِ اَلطِّحَالُ وَالْقَلْبُ إِذَا شُقَّ خَرَجَ مِنْهُ دَمٌ لَيْسَ بِسَائِلٍ فَلَيْسَ بِشَيْءٍ وَقَالَ فِي الْمُلْتَقَطِ وَلَوْ صَلّٰى وَهُوَ حَامِلُ رَجُلٍ شَهِيْدٍ وَعَلَيْ دِمَآءُهُ يَجُوْزُ صَلٰوتُهُ وَقَالَ فِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ اِمْرءَةٌ صَلَّتْ وَهِيَ حَامِلَةٌ صَبِيٍّ وَثَوْبُ الصَّبِيِّ نَجَسٌ جَازَتْ صَلٰوتُهَا اِذَا أُصْلِحَ مَصَارِيْنُ شَاةٍ مَيْتَةٍ فَصَلّٰى بِهَا جَازَتْ صَلٰوتُهُ وَلَوْ صَلّٰى وَمَعَهُ فَارَةُ مَسْكٍ يَعْنِي النَّافِجَةُ جَازَتْ صَلٰوتُهُ اِمْرَاءَةٌ صَلَّتْ وَمَعَهَا صَبِيٌّ مَيِّتٌ فَاِنْ كَانَ لَمْ يَسْتَهِلَّ عِنْدَ وَلَادَتِهِ فَصَلٰوتُهَا فَاسِدَةٌ سَوَآءٌ غُسِلَ أَوْلَمْ يُغْسَلُ وَكَذٰالِكَ اِنِ اسْتَهَلَّ وَلَمْ يُغْسَلُ وَاَمَّا اِنْ كَانَ قَدِ اسْتَهَلَّ وَغُسِلَ فَصَلٰوتُهَا تَآمَّةٌ ذَكَرَهُ فِي الْعُيُوْنِ.

**ژباړه:** که چېري په مشکوکو يا په مکروه اوبو سره اودس وکړي د هغه وروسته بي خالصي پاکي اوبه پيدا کړي نو دوهم وار د هغه ځايو پريولل دي کوم چي اول شکوکي اوبه يا مکروه اوبه وررسيدلي وي، د بهيدونکو وينو څخه کوم چي د غوښي سره پاته سي هغه نجسي نه دي، په محيط کي ذکر سوي دي چي ما په ځينو کتابو کي ليدلي دي چي تلي او زړه چي کله څيري کړل سي او د هغو څخه بهيدونکي وينه ونه وزي نو د هغه هيڅ حيثيت نسته او په ملتقط کي راغلي دي که پرلمونځ کوونکی يو شهيد اخيستی وي او په هغه باندي د هغه شهيد وينه ولګيږي نو د هغه لمونځ جائز دی، په دوهم ځای کي بې ويلي دي چي يوې ښځي د لمانځه په وخت کي د نجس کالو والا کوچنی پورته کړی وي نو د هغې لمونځ جائز دی، د مړ پسه د کولمو د پاکولو وروسته که چېري څوک په هغه سره لمونځ وکړي نو جائز دی، که د لمانځه په وخت کي د هغه سره د مشک تيل وي نو د هغه لمونځ جائز دی.

يوې ښځي لمونځ کوی او د هغې سره مړ کوچنی وو که چېري کوچنی د پيدائش په وخت کي اواز نه وي کړی نو د هغې لمونځ فاسد دی که غسل يي ورکړی وي او که نه، دغه ډول که چېري دغه کوچني اواز وکړ او غسل يي نه وي ورکړی، که چېري يې اواز کړی وو او غسل يي هم ورکړی وو نو د هغې لمونځ کامل دی او دا مسئله په عيون کي هم ذکر ده .

**تشريح**: په مشکوکو يا مکروه اوبو سره د اودس کولو وروسته که چېري خالصي اوبه يعني په کومو کي چي شک او کراهيت نه وي پيدا سي نو په دې سره دوباره اودس کول واجب نه دي البته مستحب دي، او دم مسفوح يعني هغهويني چي د رګو څخه بهيږي د دې علاوه په وينه کي پاته سوي وينه نجسه نه ده، دغه ډول د شهيد وينه چي کله د وجود مبارک سره يي متصله وي نو نجسه نه ده، که چېري دي هغه د جسم څخه علحده سي نو د نورو وينو په مثل دا هم نجسه ده، دغه ډول که چېري د نجسو کالو والا کوچنی د يو لمونځ کونکي څخه چاپېره سي نو لمونځ نه فاسديږي البته هغه خپله پورته کول جائز نه دي او صاحب محيط ذکر کړي دي چي ما په ځينو کتابو کي دا مسئله ليدلي ده چي د تلي او زړه غير سائله وينه خپله نجس نه کيدو په وجه نور شيان هم نه نجسه وي، او اصلي مشک د اوسۍ په نوه کي د وينو جمع کيدو څخه جوړيږي نو چونکي د هغه اصلي وينه ده او وينه نجسه ده د دې لپاره مصنف رحمه الله د دې وهم په ليري کولو سره يې وويل چي مشک نه دي نجس بلکي پاک دي، نو چي کله مشک خپله پاک وي نو د هغې نُو هم نه دي نجس.

وَذُكِرَ فِي نَوَادِرِ اَبِي الْوَفَاءِ قَالَ يَعْقُوْبُ لَوْصَلّٰى فِيْ جِلْدِ خِنْزِيْرٍ مَدْبُوْغٍ جَازَ وَقَدْ اَسَاءَ وَقَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٌ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهُ فِيْهِ وَلَايَطْهَرُ بِالدِّبَاغَةِ وَلَوْ صَلّٰى وَمَعَهُ بَيْضَةٌ قَدْ صَارَ مَحُّهَا دَمًا تَجُوْزُ صَلٰوتُهُ وَلَوْ صلى وَمَعَهُ قَارُوْرَةٌ فِيْهَا بَوْلٌ لَاتَجُوْزُ رَجُلٌ

مَلّٰى فِىْ ثَوْبٍ مَحْشُوٍ فَلَمَّا اَخْرَجَ حَشْوَهٗ وَجَدَ فِيْهِ فَارَةً مَيْتَةً يَابِسَةً يَنْظُرُ اِنْكَانَ فِىْ ذٰلِكَ الثَّوْبِ خِرْقٌ اَوْ ثَقْبٌ يُعِيْدُ صَلَوٰتِ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ وَلَيَالِيْهَا وَاِلَّا يُعِيْدُ جَمِيْعَ مَاصَلّٰى بِذٰلِكَ الثَّوْبِ.

**ژباړه:** په نوادر ابی الوفاء کي راغلي دي چي يعقوب ويلي دي که چېري د خنزير په دباغت کړل سوي پوست باندي لمونځ وکړي نو جائز دی مګر ګناهګار دی، امام ابوحنيفه رحمه الله او محمد رحمه الله وايي چي په دې کي لمونځ نه دی جائز لو په دباغت سره نه پاکيږي او که چېري د لمانځه په وخت کي د هغه سره داسي اګی وي چي د هغې ژړ وينه سوي وي نو د هغه لمونځ جائز دی او که چېري لمونځ وکړي او د هغه سره چيښه وي په کوم چي بولي وي نو جائز نه دی، يو سړي د پومبو په کالو کي لمونځ وکړ چي کله يې د هغه څخه پومبه راويستله نو په هغه کي يې مړ موږک وليدی که چېري په دې کالو کي سوری يې يا څيري وي نو د درو ورځو او شپو لمونځونه دي را وګرځوي که چېري نه وي نو هغه ټوله لمونځه چي په دې کالو کي يې کړي وي را ودي ګرځوي.

**تشريح:** يعقوب اصلي نوم دی د امام يوسف رحمه الله او ابويوسف د هغه کنيت دی. نو د ابويوسف رحمه الله په نِز د خنزير پوست په دباغت سره پاکيږي د دې لپاره که چېري په هغه کي لمونځ وکړل سي نو جائز دی او د طرفينو رحمهم الله تعالى په نِز د خنزير پوست په دباغت سره هم نه پاکيږي د دې لپاره په هغه کي لمونځ نه دی جائز او د ظاهر روايت مطابق دغه مذهب د امام يوسف رحمه الله هم دی او اول روايت شاذ دی. که چېري د اګی ژړ وينه سي او د يوچا هغه په جيب کي وي او لمونځ ورسره وکړي نو جائز دی ولي چي ژړ که څه هم وينه جوړه سوي ده مګر تر اوسه پوري هغه ته د نجاست حکم نه سي ورکول کېدی، د دې لپاره نجاست تر څه وخت پوري چي په خپل

معدن کي وي تر هغه وخته پوري د نجاست حکم نه اخلي چي کله يې د خپل معدن څخه خروج وکړ نو بيا پر هغه باندي د نجاست احکام مرتب کيږي، مګر څنګه چي مصنف رحمه الله ورسره دا مسئله بيان کړي ده که چيري يې په جيب کي داسي بوتل وي چي په هغه کي بولي وي نو لمونځ نه دی جائز که څه هم داګی ژر په بوتل کي محفوظ دي ولي چي د بولو خروج د خپل معدن څخه سوی دی.

وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ مَايَزِيْلُ بِهِ النِّجَاسَةُ صَلّٰى مَعَهَا وَلَمْ يَعِدْ يَعْنِيْ اِذَاكَانَ عَلٰى جَسَدِهٖ نِجَاسَةٌ وَهُوَ مُسَافِرٌ وَلَيْسَ مَعَهُ مَآءٌ اَوْكَانَ مَعَهُ مَآءٌ وَهُوَ يَخَافُ الْعَطْشَ يَجُوْزُ لَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ بِهَا وَاِنْكَانَتُ النِّجَاسَةُ بِالثَّوْبِ اِنْكَانَ اَقَلَّ مِنْ رُبُعِ الثَّوْبِ طَاهِرًا فَهُوَ بِالْخِيَارِ اِنْ شَآءَ صَلّٰى بِهٖ وَاِنْشَآءَ صَلّٰى عُرْيَانًا وَاِنْكَانَ رُبُعُهُ طَاهِرًا وَثَلٰثَةُ اَرْبَاعِهِ نَجِسًا لَمْ تَجِزِ الصَّلٰوةُ عُرْيَانًا بَلْ يُصَلِّيْ بِهٖ بِلَا خِلَافٍ وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يُصَلِّيْ بِهٖ فِي الْوَجْهَيْنِ وَاِنْ صَلّٰى عُرْيَانًا يُصَلِّيْ قَاعِدًا يُؤْمِيْ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ ثُمَّ اِذَا صَلّٰى فَكَيْفَ يَقْعُدُ قَالَ بَعْضُهُمْ كَمَا يَقْعُدُ فِي الصَّلٰوةِ وَقَالَ فِي الذَّخِيْرَةِ يَقْعُدُ وَيَمُدُّ رِجْلَيْهِ اِلَى الْقِبْلَةِ وَيَضَعُ يَدَيْهِ عَلٰى عَوْرَتِهِ الْغَلِيْظَةِ سَوَآءٌ صَلّٰى نَهَارًا اَوْفِيْ لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ اَوْفِي الْبَيْتِ اَوْفِي الصَّحْرَآءِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَاِنْ صَلّٰى قَائِمًا اَجْزَاهُ وَالْاَوَّلُ اَفْضَلُ.

**ژباړه:** چي چا ته دا سي شی نه سي پيدا چي په هغه سره نجاست زائل کړي نو د هغه سره دي لمونځ وکړي او اعاده دي نه کوي چي کله د هغه پر بدن باندي نجاست وي او هغه مسافر وي او د هغه سره اوبه نه وي مګر د تندي څخه ييريږي نو هغه ته جائز دی چي د هغه سره لمونځ وکړي که چيري دا نجاست په کالو باندي وي او د دې کالو څلورمه حصه پاکه وي نو هغه ته اختيار دی که په دغه کي لمونځ وکړي او

که يي لڅ وکړي، که چېرې څلورمه حصه پاکه وي او دريمه د څلورمي پاکه وي نو لمونځ جائز دی بغير د خلاف په هغه کي دې لمونځ وکړي، د محمد رحمه الله په نِز په دواړو صورتو کي په هغه کي دې لمونځ وکړي، که چېرې لڅ لمونځ کوي نو په ناستي سره په رکوع او سجده کي دې په اشاره سره لمونځ وکړي نو څه ډول دې کښيني؟ ځيني علماؤ ويلي دي چي څه ډول په لمانځه کي کښيني او په ذخيره کي يې ويلي دي چي په ناسته دې د قبلې و طرف ته پښې وغوړه وي او خپل دواړه لاسونه دې په عورت غليظه باندي کښيږدي که لمونځ په ورځ کي او که تاريکه شپه کي وي يا په کور کي يا په صحرا کي وي او دا صحيح دی، که چېرې په ولاړه سره لمونځ وکړي نو جائز دی مگر اول افضل دی.

**تشريح**: شريعت مطهره هر انسان د خپل وس (وسعت) مطابق مکلف کړی دی، نو چي کله چاته د نجاست زائلولو اسباب نه سي پيدا نو د نجاست په موجودگۍ هم لمونځ جائز دی، د دې کړل سوو لمونځو اعاده واجبه نه ده، په دې باندي په تفريع کولو سره مصنف رحمه الله وايي چي کله د يوه مسافر سره اوبه نه وي نو يا په را روان سفر کي خپله هغه ته يا د هغه سورلۍ د تيژۍ د غلبې پېش راتلو خوف وي نو په هغه باندي نجاست په دې اوبو سره ليري کول واجب نه دي که چېرې نجاست د بدن پرځای په کالو باندي وي نو د شيخينو رحمهما الله په نِز دا دي وکتل سي که چېرې د هغه کالو يوه د څلورمي پاکه وي نو پر هغه لازمه ده چي په دغه کالو کي لمونځ وکړي، ولي چي شرعاً يوه د څلورمي د کل قائم مقامه کيدی سي لکه د سر په مسحه کي، نو په دې حالت کي برهنه لمونځ کول نه دی جائز که چېرې يوه د څلورمي هم نه وي پاکه نو لمونځ کونکي ته اختيار دی چي لڅ لمونځ وکړي يا په دې نجس کالو کي، د امام محمد بن حسن شيباني رحمه الله په نِز په هر صورت که يوه د څلورمي پاکه وي او که نه وي په دغه نجسو کالو کي لمونځ کول ضروري دی ولي چي په

نجسو کالوَ کي لمونځ کولو سره فقط يو فرض يعني د کالو طهارت فوت کيږي او په برهنه کولو سره څو فرائض پاتيږي، لکه ولاړه، رکوع، سجده نو د يوڅو په مقابل کي د يوه فرض پريښودل بهتر دي د دې لپاره اکثرو علماؤ د امام محمد رحمه الله قول اختيار کړی دی مګر که چيري څوک د شيخينو قول اختيار کولو سره لڅ لمونځ وکړي نو څومره چي ممکن وي د ستر د عورت لحاظ دي وساتي او په ناسته سره دي د قبلې و طرف ته پښې خلاصي کړي دواړه لاسونه دي په عورت باندي کښيږدي او د سجدې لپاره فقط د سر په اشارې سره لمونځ کول افضل دی.

وَلَوْ قَامَ عَلٰى شَيْءٍ نَجِسٍ وَصَلّٰى لَايَجُوْزُ وَلَوْ صَلّٰى عَلٰى شَيْءٍ مُبَطَّنٍ فِيْ بَاطِنِهٖ قِذْرٌ اِنْ كَانَ مَخِيْطًا لَاتَجُوْزُ وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ مَخِيْطًا جَازَتْ وَلَوْ سَجَدَ عَلٰى شَيْءٍ نَجِسٍ تَفْسُدُ صَلٰوتُهٗ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ اِنْ اَعَادَ حِيْنَ عَلِمَ عَلٰى شَيْءٍ طَاهِرٍ لَاتَفْسُدُ وَاِنْكَانَ مَوْضِعُ قَدَمَيْهِ وَرُكْبَتَيْهِ طَاهِرًا وَمَوْضِعُ جَبْهَتِهٖ وَاَنْفِهٖ نَجِسًا عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهٗ يَسْجُدُ عَلٰى اَنْفِهٖ وَتَجُوْزُ صَلٰوتُهٗ خِلَافًا لَّهُمَا وَاِنْ كَانَ مَوْضِعُ جَبْهَتِهٖ وَاَنْفِهٖ نَجِسًا وَسَآئِرُ الْمَوَاضِعِ طَاهِرًا جَازَ بِلَاخِلَافٍ وَذَكَرَ شَمْسُ الْاَئِمَّةَ السَّرَخْسِيُّ اِنْ كَانَتِ النَّجَاسَةُ فِيْ مَوْضِعِ الْكَفَّيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ وَقَالَ فِي الْعُيُوْنِ هٰذِهٖ رِوَايَةٌ شَاذَّةٌ وَالصَّحِيْحُ اَنْ يُّقَالَ اِنْكَانَ فِيْ مَوْضِعِ رُكْبَتَيْهِ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهٗ وَاِنْكَانَ مَوْضِعُ اِحْدٰى قَدَمَيْهِ نَجِسًا لَاتَجُوْزُ اِذَاكَانَ قَدْ وَضَعَهَا وَاِنْكَانَ تَحْتَ كُلِّ قَدَمٍ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ فَلَوْ جُمِعَ يَصِيْرُ اَكْثَرَ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ يَمْنَعُ كَمَا يَمْنَعُ اِذَاكَانَ فِيْ ثَوْبٍ ذِيْ طَاقَيْنِ.

**ژباړه:** که چيري په يو نجس شي باندي په ولاړه سره لمونځ وکړي نو جائز دی که

چېري په داسي پیوند کالو باندي لمونځ وکړي چي کوم لاندي ګندګي وي که چېري ګنډلي وي نو جائز دی که چېري نه وي نو نه دی جائز، که یي په نجس شي باندي سجده وکړه نو د هغه لمونځ فاسد دی او امام یوسفرحمه الله ویلي دي که چېري د معلومات وروسته په یو پاک شي باندي اعاده وکړي نو نه فاسدیږي، که د قدمو او د ځنګنو ځای پاک وي او د تندي او پوزي ځای نجس وي نو د حضرت امام ابوحنیفهرحمه الله څخه روایت دی چي صرف په پوزه دي سجده وکړي او د هغه لمونځ جائز دی په خلاف د صاحبینو، که چېري صرف د پوزي ځای نجس وي باقي ټول پاک وي نو بلاخلاف جائز دی او شمس الائمه سرخسيرحمه الله ذکر کړي دي که چېري نجاست د ورغوو او ځنګنو په ځای کي وي نو د هغه لمونځ جائز دی او په عیون کي راغلي دي چي دا روایت شاذ دی او صحیح دادی چي وویل سي که چېري د ځنګنو ځای وي نو د هغه لمونځ نه دی جائز که د یوه قدم ځای نجس وي نو نه دی جائز چي کله یې قدم په هغه باندي ایښی وي او د هر قدم لاندي تر یوه درهم کم وي او په جمع کیدو سره د مقدار درهم څخه زیات سي نو منعه کوي یې لکه په پیوند کالو کي.

**تشریح:** په نجس ځای باندي په ولاړي سره لمونځ نه دی جائز ولي چي د ځای پاکوالی د لمانځه د شرطو څخه دی دغه ډول که څوک په پیوند کالو کي لمونځ وکړي او په داسي حالت کي چي د هغه په مابینځ کي ګندګی وي نو به کتل کیږي که چېري دا کالي ګنډل سوي وي نو د یووالي په کیدو د حکم په وجه پر هغه لمونځ جائز دی لکه څنګه چي په نجسه مځکه باندي پاک کالي واچول سي او په هغه باندي لمونځ وکړل سي، که چېري د لمونځ کونکي سجده په نجس ځای باندي واقع سي نو د صحیح قول مطابق چونکي د لمانځه یو رکن بغیر د طهارت مکان په وجه سره لمونځ فاسدیږي، که فقط د پوزي په ځای کي نجاست وي نو بالاتفاق لمونځ

جائز دی ولي چي صرف په تندي باندي اقتصار کول د ټولو علماؤ په نز جائز دی او د صحيح قول مطابق که چېري د ځنګنو ځای نجس وي نو لمونځ نه دی جائز دغه ډول که چېري يو قدم په نجاست باندي واقع سي نو لمونځ نه دی جائز البته که چېري يې د نجاست څخه قدم پورته ايښی وي او صرف په يوه قدم ولاړ وي نو د هغه لمونځ مع الکراهت جائز دی.

وَاِنِ افْتَتَحَ الصَّلٰوةَ فِیْ مَکَانٍ طَاهِرٍ ثُمَّ نَقَلَ قَدَمَيْهِ عَلٰی شَیْءٍ نَجِسٍ وَقَامَ اِنْ لَّمْ يَمْكُثْ مِقْدَارَ مَا يُؤَدِّیْ رُكْنًا جَازَتْ وَاِلَّا فَلَا وَكَذَا اِنْ رَفَعَ نَعْلَيْهِ وَعَلَيْهِمَا قَدْرٌ مَانِعٌ اِنْ اَدّٰی مَعَهُمَا رُكْنًا فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ وَفِیْ فَتَاوٰی اَهْلِ سَمَرْقَنْدَ اِذَا سَجَدَ يَقَعُ ثِيَابُهُ عَلٰی شَیْءٍ نَجِسٍ جَازَتْ صَلٰوتُهُ اِذَا كَانَتْ يَابِسَةً وَفِی اخْتِلَافِ زُفَرَ وَيَعْقُوْبَ اِذَا كَانَتِ النِّجَاسَةُ عَلٰی بَاطِنِ اللِّبْنَةِ اَوِ الْاٰجُرَةِ وَهُوَ عَلٰی ظَاهِرِهِمَا قَائِمٌ يُّصَلِّیْ لَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهُ وَبِمِثْلِهٖ اِذَا حَلَّتِ النِّجَاسَةُ بِخَشَبَةٍ فَقَلَّبَهَا اِنْ كَانَتْ غُلْظَةُ الْخَشَبَةِ تَقْبَلُ الْقَطْعَ تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ وَاِلَّا فَلَا وَاِذَا اَصَابَتِ الْاَرْضَ نِجَاسَةٌ فَفَرَشَهَا بِطِيْنٍ اَوْ جَصٍّ فَصَلّٰی عَلَيْهِ جَازَتْ وَلَيْسَ هٰذَا كَالثَّوْبِ وَلَوْ فَرَشَهَا بِالتُّرَابِ وَلَمْ يُطَيِّنْ اِنْ كَانَ التُّرَابُ قَلِيْلًا بِحَيْثُ لَوِاسْتَشَمَّهٗ يَجِدُ رَآئِحَةَ النِّجَاسَةِ لَا تَجُوْزُ وَاِلَّا تَجُوْزُ وَلَوْ كَانَ عَلَی اللِّبَدِ نَجَاسَةٌ فَقَلَّبَ وَصَلّٰی عَلَی الْوَجْهِ الثَّانِیْ تَجُوْزُ وَقَالَ اَبُوْ يُوْسُفَ لَا تَجُوْزُ وَبِهٖ اَخَذَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ وَهٰذَا كُلُّهٗ مَذْهَبُ مُحَمَّدٍ مَذْكُوْرٌ فِی الْمُحِيْطِ وَلَوْ بَسَطَ الْمُصَلِّیْ عَلٰی شَيْیٍٔ نَجِسٍ رَطْبٍ اَوْ جَلَسَ عَلٰی اَرْضٍ نَجِسَةٍ رَطْبَةٍ اَوْ لَفَّ الثَّوْبَ الْيَابِسَ الطَّاهِرَ

فِيْ ثَوْبٍ نَجِسٍ رَطْبٍ فَاَثَّرَتِ الرُّطُوْبَةُ فِيْ ثَوْبِهٖ اَوْفِيْ مُصَلَّاهُ يَنْظُرُ اِنْكَانَ بِحَالٍ لَوْ عُصِرَ الثَّوْبُ اَوِالْمُصَلّٰى تَتَقَاطَرُ مِنْهُ شَيْئٌ يَتَنَجَّسُ وَاِلَّا فَلَا وَقَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ الْحَلْوَانِيُّ لَوْكَانَ بِحَالٍ لَوْ وَضَعَ يَدَهُ تَبْتَلُّ يَصِيْرُ نَجَسًا وَاِلَا فَلَا وَهٰذَا قَرِيْبٌ مِّنَ الْاَوَّلِ.

**ژباړه:** که يي په پاک ځای باندي لمونځ شروع کړ بيا يو نجس شي يې قدم ته ور نقل سو که چېري د يوه رکن په مقدار باندي دغه نجاست نه موجود وو نو جائز دی او که موجود وو نو نه دی جائز، دغه ډول که چېري يي چوتې (څپلۍ) پورته کړي او په هغه باندي د يوه مقدار مانع موجود وو نو که د هغه سره يي رکن ادا کړ نو د هغه لمونځ فاسد دی او په فتاوٰی اهل سمرقند کي راغلي چي کله د سجدې په کولوسره د هغه کالي په نجس شي باندي واقع سي نو د هغه لمونځ جائز دی که نجاست وچ وي، په" کتاب اختلاف زفر ويعقوب "کي راغلي دي چي کله نجاست په کچه يا د پخې خښتې په باطن کي وي او هغه د مصلی په ظاهر ولاړ وي نو لمونځ نه فاسديږي، دغه ډول چي کله په لرګي باندي نجاست ولګيږي او هغه چپه کړل سي که چېري د لرګي پراخوالی د پرېکولو قابل وي نو لمونځ جائز دی که نه وي نو نه دی جائز، او چي کله په مځکه باندي نجاست ولګيږي او بيا دغه مځکه ګل سي په خټو سره يا په چونه سره نو په هغې باندي لمونځ وکړل سي نو جائز دی او دا په حکم کي د کالو په ډول نه دی، که يې خاوره فقط په هغه نجس ځای باندي واچوله او ګل يې نه کړه نو که خاوره دومره کمه وي چي بوی يې کړي نو د نجاست بوی راځي نو لمونځ نه دی جائز او که بوی يې نه راتلی نو جائز دی، که چېري د وړې په کمبلي نجاست وي بيا يي چپه کړه د هغې په دا بل طرف يي لمونځ وکړ نوجائز دی او ابو

یوسف رحمه الله ویلي دي چي نه دی جائز او په دغه باندي د ځینو علماؤ فتوی ده او دا قول د محمد رحمه الله مذهب دی چي په محیط کي ذکرسوی دی، که یې مصلی یعني هغه شی چي لمونځ باندي کوي په یوه نجس شي باندي اواره کړه یا په نجسي لندې مځکي کښې نستی یا یې وچه کالي په نجس لانده کالو کي ونغښته نو لوندوالی په مصلی یا په کالو کي تاثیر وکړ نو ودي کتل سي که چېري په داسي حالت کي وي چي کله کالي یا مصلی ونیستېږل سي نو د هغو ځخه یوڅه بهیږي نو مرداریږي که نه وي نو نه مردارېږي، شمس الائمه حلوانی رحمه الله ویلي دي که چېري داسي سي چي په هغو باندي لاس کښېږدي نو لندیږي نو بیا نجس دی که لاس نه لندېدی نو نه دی نجس، او دا د اول قول سره نژدې دی.

**تشریح**: په پاک ځای باندي د لمونځ شروع کولو وروسته که چېري د ضرورت پر بناء باندي د دې ځای ځخه قدم بل ځای ته لیري کړي او هغه ځای نجس وي نو د یوه رکن اداکولو په مقدار که چېري په هغه ځای باندي ودریږي نو د هغه لمونځ فاسدیږي که چېري فوراً د هغه ځای ځخه لیري سو نو لمونځ نه فاسدیږي. دغه ډول که چېري په بغل کي ځپلی ونیسي او په هغو کي د یوه مقدار درهم ځخه زیات نجاست غلیظه موجود وي نو لمونځ فاسد دی او په فتاوی کي ذکرسوي دي که چېري په لمونځ کولو سره د یوچا په کالو باندي وچ نجاست ونوښتي چي په هغه کي د نجاست لګیدو بیره نه وي نو لمونځ جائز دی ولي چي د طهارت مکان شرط پوره دی دغه ډول که چېري د خښتي یو طرف نجس او بل طرف یې پاک وي نو په پاک طرف باندي لمونځ جائز دی او د لرګي پراخوالی که چېري دومره وي چي بنه یې دربدی سي نو هغه هم د خښتي په حکم کي کیدو سره د هغه په بل طرف باندي لمونځ کیدی سي. او د پاکو کالو په نجسو کالو کي د راتولولو تحقیق په فصل فی الاسار کي تیر سوی دی. د دې د رطوبت ځخه مراد د نجسو اوبو رطوبت دی نه:

عين نجاست رطوبت لکه بولي يا داسي بل شی، شمس الائمه عبدالعزيز بن احمد
حلواني رحمه الله وايي چي کله دا رطوبت دومره غالب سي چي د لاس ايښولو په
وخت کي لاس هم د هغه څخه لوند سي نو په پاکو وچو کالو باندي هم د نجاست
حکم لګول کيږي. د شمس الائمه رحمه الله دا قول او اول قول يعني په نيستيږلو سره چي
برخه توی سي په خپل منځ کي معناً سره نژدي دي، که د چټايي يا کمبلي يو سر پاک
او بل نجس وي نو په پاک سر باندي لمونځ جائز دی ولي چي د لمانځه د ځای د
پاکېدو سره د طهارت مکان شرط پوره دی، که چېري يو څوک د څپليو يا جرابو سره
د جنازې لمانځه يا د نورو لمنځو لپاره په نجاست باندي ودريږي نو لمونځ نه دی
جائز که څه هم څپلی او جرابي خپله پاکي وي ولي چي څپلی او جرابي خپله د
مصلي تابع دي، البته که يې د پښو څخه وباسي او په هغو باندي ودريږي نو جائز
دی د دې لپاره چي اوس دا دواړه د جلا پاک شي په حکم کي دي.

**(شرط ثالث)**

فَهُوَ سَتْرُ الْعَوْرَةِ وَالْعَوْرَةُ مِنَ الرَّجُلِ مَاتَحْتَ السُّرَّةِ مِنْهُ اِلَى الرُّكْبَةِ وَالرُّكْبَةُ عَوْرَةٌ اَيْضًا
لٰكِنْ مِنْ غَيْرِهٖ لَامِنْ نَفْسِهٖ وَهُوَ الْمُخْتَارُ وَرَوٰى مُحَمَّدُ بْنُ شُجَاعٍ عَنْ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَاَبِيْ
يُوْسُفَ نَصًّا قَالَ اِذَا كَانَ مَحْلُوْلُ الْجَيْبِ فَنَظَرَ اِلٰى عَوْرَتِهٖ لَاتَفْسُدُ صَلٰوتُهٗ وَبَعْضُ
الْمَشَائِخِ جَعَلُوْا سَتْرَ الْعَوْرَةِ مِنْ نَفْسِهٖ اَيْضًا شَرْطًا حَتّٰى قَالُوْا اِنْ كَانَ كَثِيْفَ اللِّحْيَةِ تَجُوْزُ
صَلٰوتُهٗ وَاِنْ كَانَ خَفِيْفَ اللِّحْيَةِ لَاتَجُوْزُ حَتّٰى لَوْ فَرَضَ اَنَّهٗ نَظَرَ فِيْ جَيْبِهٖ وَرَاٰى عَوْرَتَهٗ
فَصَلٰوتُهٗ فَاسِدَةٌ وَبِهٖ يُفْتِيْ بَعْضُ الْمَشَائِخِ وَكَذَا لَوْصَلّٰى عُرْيَانًا فِيْ بَيْتٍ فِيْ لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ
وَلَهٗ ثَوْبٌ طَاهِرٌ وَهُوَ قَادِرٌ عَلَى اللُّبْسِ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهٗ بِالْاِجْمَاعِ.

**ژباړه:** هغه ستر د عورت دی چي د سړي عورت د نو څخه لاندي تر ځنګنو پوري

وي، او ځنګون هم عورت دی د بل چا لپاره نه د خپل ځان لپاره او دغه مختار دی، محمد بن شجاع رحمه الله او امام ابوحنیفه رحمه الله او د ابویوسف رحمه الله څخه صراحتاً روایت سوی دی چي که څوک د پراخ ګریوان والا وي او خپل عورت ته وګوري نو لمونځ نه فاسدیږي او ځینو علماؤ ستر د عورت د خپل ځان څخه هم شرط کړی شمارلی دی تر دې پوري که ږیري د ګڼي ږیري والا وي نو لمونځ جائز دی او که د سپکي ږیري والا وي نو لمونځ نه دی جائز، که دا فرض کړل سي چي هغه د خپل ګریوان وطرف ته نظر وکړي او خپل عورت ته يي وکتل بیا د هغه لمونځ فاسد دی او په دغه باندي ځینو علماؤ فتوٰی ورکړي ده او دغه ډول که څېري په لڅه سره په توره شپه کي په کمره (خونه) کي دننه لمونځ وکړي اود هغه سره پاک کالي وه او د هغه په اغوستلو يي هم قدرت درلودی نو بالاتفاق د هغه لمونځ نه دی جائز.

**تشریح**: د امانځه لپاره ستر د عورت بالاجماع فرض دی د عورت لفظ په لغت کي د نقصان او خلل لپاره هم مستعمل دی او د انسان هغه اندام کوم چي د حیاء په وجه پټیږي هغه ته هم عورت ویل کیږي، په شریعت مطهره کي د انسان هغه اعضاء کوم د لمانځه په وخت کي پټول فرض دي هغه ته عورت ویل کیږي، د یوه نارینه انسان لپاره د نو څخه بیا لاندي تر دواړو ځنګنو په شمول دا ټوله حصه پټول فرض دي، او د صحیح قول مطابق ځنګون هم په عورت کي شمار دی، لکه څنګه چي د حضرت علی کرم الله وجهه څخه روایت دی او ستر د عورت د لمانځه د فرائضو څخه دی د دې لپاره که څېري څوک د شپې په تاریکه او په کمره کي دننه لمونځ وکړي او د هغه سره پاک کالي موجود وي او په اغوستلو يي هم قادر وي مګر د هغه باوجود لڅ لمونځ کوي نو د هغه لمونځ نه دی جائز که څه هم د تاریکی په وجه د هغه هیڅ عورت په نظر نه راځي نو د ستر عورت فرضیت که څه هم فقط د انسان د عورت په نظر راتلو د وجي کیږي نو په دې صورت کي لمونځ جائز کیږي مګر د

نږيکي باوجود لځ لمونځ بغير د څه عذره نه دی جائز.

وَبَدَنُ الْمَرْءَةِ الْحُرَّةِ كُلُّهَا عَوْرَةٌ اِلَّاوَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا وَقَدَمَيْهَا وَلٰكِنْ فِى الْقَدَمَيْنِ اِخْتِلَافُ الْمَشَائِخِ وَذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ اَنَّ الْاَصَحَّ اَنَّهُمَا لَيْسَا بِعَوْرَةٍ وَفِى الْخَاقَانِيَّةِ الصَّحِيْحُ اَنَّ اِنْكِشَافَ رُبُعِ الْقَدَمِ يَمْنَعُ وَذِرَاعَاهَا عَوْرَةٌ كَبَطْنِهَا فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ وَرُوِىَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ عَنْ اَبِيْحَنِيْفَةَ اَنَّ ذِرَاعَيْهَا لَيْسَا بِعَوْرَةٍ وَالْاَوَّلُ هُوَ الصَّحِيْحُ اَمَّا الشَّعْرُ الْمُسْتَرْسَلُ فَقَدْ قَالَ الْفَقِيْهُ اَبُو اللَّيْثِ اِنِ انْكَشَفَ رُبُعُ الْمُسْتَرْسَلِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهَا كَذَا ذَكَرَهُ فِيْ اَكْثَرِ الْفَتَاوٰى وَقَالَ فِى الْفَتَاوٰى الْخَاقَانِيَّةِ اَلْمُعْتَبَرُ فِيْ اِفْسَادِ الصَّلٰوةِ اِنْكِشَافُ مَافَوْقَ الْاُذُنَيْنِ وَكَذَا الْاُذُنَانِ حَتّٰى لَوِانْكَشَفَ رُبُعُ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلَاةِ وَهُوَ الصَّحِيْحُ.

**ژباړه:** د آزادي ښځي ټوله بدن عورت دی مګر د هغې مخ، لاسونه او دواړي پښي نه دي عورت، مګر په قدمو کي د علماؤ اختلاف دی او په محيط کي ذکر دي چي زيات صحيح دادی چي پښي عورت نه دي او په خاقانيه کي يې ويلي دي چي دا صحيح ده چي د قدم څلورمه حصه ظاهريدل لمونځ منع کوي او په ظاهر روايت کي دی چي د ښځي دواړه لاسونه عورت نه دي او اول قول صحيح دی او د لاندي ايله وريښتانو په باره کي په فقيه ابوالليث کي ويلي دي که چېري د ايله وريښتانو څلورمه حصه ښکاره سي نو د هغې لمونځ فاسد دی دغه ډول په اکثرو فتاوٰی وو کي ذکر دي، او په فتاوٰی خاقانيه کي ذکرسوي دي چي د لمانځه په فساد کي د غوږو څخه پورته د وريښتانو د ښکاره کېدو اعتبار دی او دغه ډول دواړه غوږونه هم په عورت کي داخل دي، تر دې پوري که چېري د دې دواړو څخه د يوه څلورمه

حصه ښکاره سي نو د لمانځه جواز منع کوي ·

**تشريح**: د حضرت عبدالله بن مسعودﷺ د يوه روايت مطابق د حُرّي ښځي ټوله بدن عورت دی مګر د ضرورت پر بناء باندي د هغې مخ او لاسونه د ټولو فقهاؤ په نِز نه په لمانځه کي او نه د لمانځه څخه خارج په عورت کي داخل دي تر دې پوري چي مخ يا لاسوته بغير شهوته کتل مباح دي البته په فتنه کي د مبتلا کيدو په خوف سره بغير ضرورته د کتلو څخه احتياط لازم دی، د پښو په باره کي که څه هم د فقهاء کرامو يو څه اختلاف دی مګر د صحيح قول مطابق قدم هم په عورت کي نه دی داخل، ولي لکه څنګه چي په نکاح وشهادت وغيره کي مخ او په کار کي لاس بالامر مجبوري ښکاره کيږي، دغه ډول په ځينو مواقعو کي د قدم په نه ښکاره کېدو سره هم د انسان لاچاري کيږي، د سر لاندي ايله وريښتان هم د صحيح قول مطابق په عورت کي شمارل کيږي که د غوږو پورته وي او که لاندي ، په غسل کي د ايله وريښتانو پريولل فرض نه دي چي په دې کي حرج دی که څه هم د سر په اجزاء کي داخل دي نو چي د سر شمار په عورت کي دی نو د هغه ټوله اجزاء په عورت کي شمارل کيږي ·

اَمَّا الْخَصِيَتَانِ مَعَ الذَّكَرِ قَالَ بَعْضُهُمْ كِلَاهُمَا عِضْوٌ وَاحِدٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يُعْتَبَرُ كُلُّوَاحِدٍ مِّنْهُمَا عُضْوًا عَلٰحِدَةٍ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَكَذَا اخْتَلَفُوْا فِي الرُّكْبَةِ مَعَ الْفَخِذِ فَقَالَ بَعْضُهُمْ كُلٌّ مِّنْهُمَا عُضْوٌ عَلٰحِدَةٍ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اَلرُّكْبَةُ مَعَ الْفَخِذِ عُضْوٌ وَاحِدٌ وَلَوْ صَلّٰى وَرُكْبَتَاهُ مَكْشُوْفَتَانِ وَالْفَخِذُ مُغَطًّى جَازَتْ صَلٰوتُهُ اِمْرَءَةٌ صَلَّتْ وَرُبْعُ سَاقِهَا مَكْشُوْفٌ تُعِيْدُ صَلٰوتَهَا وَاِنْكَانَ اَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ لَاتُعِيْدُ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ اِنْكِشَافُ مَادُوْنَ النِّصْفِ لَايَمْنَعُ وَعَنْهُ فِي النِّصْفِ رِوَايَتَانِ فِيْ رِوَايَةٍ لَايَمْنَعُ وَفِيْ

رِوَايَةٍ يَمْنَعُ وَالْحُكْمُ فِي الشَّعْرِ الْمُسْتَرْسَلِ وَالْبَطْنِ وَالظَّهْرِ مِنَ الْمَرْءَةِ وَالْفَخْذِ كَالْحُكْمِ فِي السَّاقِ.

**ژباړه:** خُصيتين او ذکر ځينو علماوو ويلي دي چې دا دواړه يو اندام دي او ځينو ويلي دي د دوی څخه هر يو جلا جلا دی او دا صحيح دی، دغه ډول اختلاف يې کړی دی چې په ځنګون کې د ورانه سره نو ځينو ويلي دي چې هر يو د دوی څخه جلا اندام دی او ځينو ويلي دي چې ځنګون د ورانه سره يو اندام دی که چېرې يې لمونځ وکړ او دواړه ځنګونه يې ښکاره وي او ورنونه يې پټ وي نو د هغه لمونځ جائز دی، که يو ښځه لمونځ وکړي او د هغې د بجلکو څلورمه حصه ښکاره وه نو لمونځ به بيرته راګرځوي که چېرې د دې څخه کم وي نو نه به يې راګرځوي، ابويوسف رحمه الله ويلي دي که د نيمی څخه کم ښکاره وي نو نه يې منع کوي او د دغه څخه په نيمی کې دوه روايتونه دي په يوه روايت کې يې نه منع کوي او په يوه روايت کې يې منع کوي، او ايله ورېښتان، نس او ملا د ښځي د بجلکو په حکم کې دي.

**تشريح:** د ځينو علماوو په نِز د خصيتينو او ذکر حکم د يوه اندام دی. ولې چې د دواړو ګټه يوه ده چې توالد او تناسل دی نو چې کله د دواړو څلورمه حصه ښکاره سي لمونځ نه دی جائز او صحيح قول هم دادی ولې چې ديت هم د دواړو جلا جلا دی. دغه ډول د صحيح قول مطابق ځنګون هم د ورانه تابع دی او جلا اندام نه شمارل کيږي په دې باندې په تفريح کولو سره مصنف رحمه الله وايي که چېرې ځنګون ښکاره وي او ورنونه پټ وي نو لمونځ جائز دی ولې چې ځنګونه د ورنو د څلورمي حصې برابر نه دی او د دغه څخه دا مسئله معلوميږي چې بجلکه د پنډۍ تابع ده نو که چېرې د يوې ښځي په لمانځه کې بجلکه ښکاره سوه نو لمونځ جائز دی

ولي چي دا د پنډۍ د څلورمي حصې برابر نه دی.

وَاَمَّا حُكْمُ الْعَوْرَةِ الْغَلِيْظَةِ وَهِيَ الْقُبُلُ وَالدُّبُرُ فَهُوَ عَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ يَعْنِيْ اِذَا انْكَشَفَ مِنْ اَحَدِهِمَا رُبْعُهُ يَمْنَعُ عِنْدَهُمَا خِلَافًا لِاَبِيْ يُوْسُفَ وَهٰذَا الْخِلَافُ مَذْكُوْرٌ فِي الزِّيَادَاتِ وَاَمَّا ثَدْيُ الْمَرْءَةِ فَاِنْ كَانَتْ مُرَاهِقَةً فَهُوَ تَبْعٌ لِلصَّدْرِ وَاِنْ كَانَتْ كَبِيْرَةً فَالثَّدْيُ اُصُلٌ بِنَفْسِهِ وَفِيْ شَرْحِ الْاِمَامِ السَّرَخْسِيِّ اِذَاكَانَ الثَّوْبُ رَقِيْقًا يَصِفُ مَاتَحْتَهُ لَايَحْصِلُ بِهِ سَتْرُ الْعَوْرَةِ وَمَنْ صَلّٰى بِقَمِيْصٍ لَيْسَ عَلَيْهِ غَيْرُ فَلَوْ نَظَرَ اِنْسَانٌ مِنْ تَحْتِهِ رَاٰى عَوْرَتَهُ فَهٰذَا لَيْسَ بِشَيْءٍ وَذُكِرَ فِي الزِّيَادَاتِ لَوْ اَنَّ امْرَءَةً صَلَّتْ وَهِيَ تَقْدِرُ عَلَى الثَّوْبِ الْجَدِيْدِ فَلَبِسَتْ ثَوْبًا خَلِقًا فَانْكَشَفَ مِنْ شَعْرِهَا شَيْءٌ وَمِنْ فَخِذِهَا شَيْءٌ وَمِنْ سَاقِهَا شَيْءٌ وَكَانَ لَوْ جُمِعَ يَبْلُغُ رُبْعَ السَّاقِ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهَا.

**ژباړه:** هر څه چي د عورتِ غليظه حکم دی چي مخ او شاه ده هغه هم په دې خلاف باندي دی يعني چي کله د دې دواړو څخه څلورمه حصه ښکاره سي نو د طرفينو په نز لمونځ منع کوي بخلاف د ابويوسف رحمه الله دا خلاف په زيادات کي ذکرسوی دی او د ښځي تِيَان که چېري بلوغ ته نژدې وي نو د سينې تابع دی او که غټه وي نو تيان خپله عورت دی، په شرحه امام سرخسی رحمه الله کي راغلي دي چي کالي نرم وي دا سي نرم چي د هغه څخه لاندي اعضاء ښکاره کيږي نو په هغه سره ستر نه سي کيدی او چي صرف په يوه قميص کي لمونځ وکړي او د دغه څخه علاوه په هغه باندي هيڅ نه وي نو که چېري يو سړی په لاندي کتلو سره دا عورت ته وګوري نو دا بې معنې خبره ده او په زيادات کي ذکر دي که چېري يوې ښځه لمونځ وکړ او هغې په دا کالو باندي د قدرت باوجوده زاړه کالي اغوستي وي بيا د هغې وړيښتان ې

رونه يا په پنډه کي يو څه ښکاره سي نو د هغې لمونځ نه دی جائز.

**تشريح:** مصنف رحمه الله وايي چي د انسان د عورت غليظه حکم يعني د مخ او شاه هم د پنډه په مثل دی چي کله د پوره عورت غليظه څخه څلورمه حصه ښکاره سي نو لمونځ فاسد دی او قاضي ابو يوسف رحمه الله د نصف حصې قائل دی او په دې کي هم د علماؤ اختلاف دی چي دُبره سره د کوناټو يو اندام دی يا دواړه جلا جلا دي مګر د صحيح قول مطابق هر يو کوناټی جلا جلا دی او دُبره د هغو علاوه په جلا حيثيت سره عورت ده، د ښځي تيان که چېري راپورته وي نو په يوه حيثيت سره عورت دی که چېري د کم عمرۍ په وجه نه وي راپورته نو د سيني تابع دي نو د ښکاره کيدو په صورت کي د سينې سره د څلورمي حصې اعتبار کول کيږي، دغه ډول که چېري يو څوک داسي باريک کالي واغوندي چي د هغه څخه لاندي د انسان پوست رنګ صفا ښکاره په نظر راسي نو په دې کالو کي ستر د عورت موجود نه دی لهذا لمونځ نه دی جائز التبه که چېري د تنګۍ په وجه په دې کالوکي د انسان اعضاء په هغه کي ښه راپورته په نظر راسي نو که څه هم لمونځ جائز دی مګر داسي لباس په دين او اسلام کي خوښ نه دی او خصوصاً ښځو ته د داسي لباس اغوستلو څخه ځان ژغورل پکار دي او په حديث پاک کي راغلي دي چي دغسي تنګ او باريک کالي اغوستلو والا عليه السلام د "کاسيات عاريات" په الفاظو سره ياد کړي دي چي دا ښځي د کالو اغوستلو باوجوده هم لڅي دي، ابليس لعين د جنت په مبارک سرزمين زموږ مور او پلار يعني حضرت آدم او حواء عليهما السلام په زړو کي د ګناه چي کومه وسوسه اچولي وه چي د هغه په نتيجه کي هغوی د ممنوعه ونې څخه خوراک وکړ نو د دې ګناه په نتيجه کي هغه دواړه په جنت کي دننه لڅ سول نن هم هغه ابليس لعين د دې خبري لپاره تيار دی چي په څه ډول کيدی چي اشرف المخلوقات لڅ کړي تر دې پوري چي د نړۍ په تاريخ کي د داسي تحريکونو

ذکر راځي په کوم کي چي په دې خبره باندي زور ورکړی دی چي لڅ ګرځيدل د انسان د نورو حيوانانو په مثل يو بنيادي حق دی او کوم راز چي نبي کريم عليه السلام ويلي دي چي د جال اثر به په ښځوباندي زيات کيږي نو نن صبا دا نيم لڅ لباسونه هم د جالي فتنو يوه نمونه(ذريعه) معلوميږي، خداوندِ قدوس دي موږ ټوله د دې جالي فتنو څخه محفوظ کړي، آمين.

اَمَّا الْعَوْرَةُ مِنَ الْاَمَةِ فَمَا هِيَ عَوْرَةٌ مِنَ الرَّجُلِ وَبَطْنُهَا وَظَهْرُهَا عَوْرَةٌ اَيْضًا وَمَاعَدَا ذٰلِکَ فَلَيْسَ بِعَوْرَةٍ وَالْمُدَبَّرَةُ وَاُمُّ الْوَلَدِ وَالْمُکَاتَبَةُ بِمَنْزِلَةِ الْاَمَةِ وَاِنْ انْکَشَفَ عُضْوٌ فَسَتَرَ مِنْ غَيْرِ لَبْثٍ لَا يَضُرُّهُ وَاِنْ اَدّٰى مَعَهُ رُکْنًا يُفْسِدُ صَلٰوتُهُ وَاِنْ لَّمْ يُؤَدِّرُکْنًا وَلٰکِنْ مَکَثَ مِقْدَارَ مَايُؤَدّٰى فِيْهِ رُکْنًا بِسُنَّتِهٖ فَلَمْ يَسْتُرْ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ وَکَذَا اِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ لِلْمُزَاحَمَةِ فِيْ صَفِّ النِّسَآءِ اَوْ وَقَعَ اَمَامَ الْاِمَامِ اَوْ رَفَعَ نَجَاسَةً ثُمَّ اَلْقٰى فَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ وَمَنْ لَّمْ يَجِدْ مَايَسْتُرُبِهِ الْعَوْرَةَ صَلّٰى قَاعِدًا بِاِيْمَاءٍ کَمَا ذَکَرْنَا.

**ژباړه:** د مينځي عورت دومره دی لکه د نر عورت، مګر د مينځي نس او ملا هم عورت دي او د دې څخه علاوه نور جسم يې عورت نه دی، مدبره، ام ولده او مکاتبه هم د مينځي په مثل ده، که چيري يو اندام ښکاره سي او بغير د څه انتظار يې فوراً پټ کړي نو ضرر نه کوي که د هغه سره يو رکن ادا کړي نو د هغې لمونځ فاسدوي که چيري يې يو رکن ادا نه کړ مګر دومره مقدار يې انتظار وکړ په کوم کي چي په طريقه سنت يو رکن ادا کيدی سي او پټ يې نه کړ نو د ابو حنيفه رحمه الله او ابويوسف رحمه الله په نِز د هغې لمونځ فاسد دی بخلاف د امام محمد رحمه الله، دغه ډول

که چړي يو سړی د ښځو په صف کي د رَش په وجه سره ودريږي يا د امام په مخ کي ودريدی يا يي څه ګندګي پورته کړه او بيا يي وغورځوله نو په دغه باندي هم اختلاف دی، هغه څوک چي يو داسي شی نه کړي پيدا چي په هغه سره ستر د عورت کوی سي نو دي لمونځ په ناسته په اشاره سره وکړي لکه چي يې موږ مخ کي يادونه وکړه.

**تشريح**: د جهاد په مال غنيمت کي چي کوم د کفارو نران او ښځي قيداني سي د مسلمانانو په لاس راسي نو د هغوی نران غلامان او ښځي يې مينځي بلل کيږي او د هغوی څخه د خدمت کار اخيستل کيږي او مينځي بغير د نکاح صرف ملک يميني سره وطي کول جائز دي چي د هغه پوره تفصيل د فقهي په کتابونو کي ذکرسوی دی، نو چونکي مينځي د خپل مالک د اهل و عيال په خدمت کي هر وخت مصروفه وي نو د دې لپاره هغه د آزادي ښځه په مثل هر وخت با پرده نه سي پاتـه کيدی او په شريعت مطهره کي د دې لپاره د پردې په احکامو کي لږ دا ډول تخفيف دی چي په ستر عورت کي هغه د نر په مثال ده مګر د هغې نس او ملا چونکي د فتنې سبب کيدی سي د دې لپاره د هغې ستر هم ضروري دی او په يوه روايت کي دی چي حضرت عمر رضي الله عنه يوه مينځه د آزادي ښځي په مثل په مکمله پرده کي وليدله نو ده وويل چي " خپلي مينځي د آزادو ښځو سره مه مشابه کوئ " مدبره هغه مينځه ده چي هغې ته خپل مالک دا ووايي چي ته زما د مرګ وروسته آزاده يي، مکاتبه هغه مينځه ده چي د هغې سره خپل مالک عقد کتاب کړی وي يعني چي کله څوک د خپل مينځي د يو معلوم رقم ادا کولو وروسته د آزادولو وعده ورسره وکړي نو دا مينځه مکاتبه ده، او أم ولده هغه مينځه ده چي د هغې څخه خپل مالک دعوه کړي وي چي دا اولاد زما دی نو دا مينځه د خپل مالک د مرګ وروسته خود بخود آزاديږي.

اوس مصنف رحمه الله وايي چي دا درې سره قسمونه يعني مدبره، مکاتبه او ام ولده

د ستر عورت په حکم کي د اصلي مينځي په مثل دي چي د هغو د اندامو په لمانځه کي د نر او ښځي پټول ضروري دي که چېري د دوی ځخه په لمانځه کي د دننه يو اندام ښکاره سي نو دي وکتل سي که چېري دا اندام د دومره وختـه پوري ښکاره وي په کوم کي چي يو رکن په سنت طريقه سره ادا کېدی سي د کوم مقدار چي فقهاء کرامو په نِز د درو تسبيحات ويلو پوري دی نو دا لمونځ فاسد دی که چېري د دومره انتظار کولو ځخه تر مخه ستر د عورت وسي نو لمونځ نه فاسدېږي دغه ډول که چېري ځوک د ښځو په صف کي ودرېږي يا د امام ځخه د مخه ووزي يا يوه ګندګي په لمانځه کي پورته کي او وې غورځوي په دې درو صورتو کي که چېري د يوه رکن مقدار ناوخته سي نو فاسد دی که نه وي نو لمونځ جائز دی او په دې ټولو مسائلو کي د حضراتو شيخينو رحمهماالله مذهب مختار دی ځيني فقهاء وو فقط په پرتوګ کي لمونځ کولو ته مکروه ويلي دي.

## (شرط رابع)

فَهُوَ اِسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ فَمَنْ كَانَ بِحَضْرَةِ الْكَعْبَةِ يَجِبُ عَلَيْهِ اِصَابَةُ عَيْنِهَا وَمَنْ كَانَ غَائِبًا عَنْهَا فَفَرْضُهُ جِهَةُ الْكَعْبَةِ وَقَالَ الْجُرْجَانِيُّ فَرْضٌ لِلْغَآئِبِ اِصَابَةُ عَيْنِهَا وَثَمَرَةُ هٰذَا الْخِلَافِ تَظْهَرُ فِي النِّيَّةِ وَقَالَ الشَّيْخُ الْاِمَامُ اَبُوْبَكْرٍ مُحَمَّدُ ابْنُ حَامِدٍ لَايَشْتَرِطُ نِيَّةُ الْكَعْبَةِ مَعَ الْاِسْتِقْبَالِ لِلْكَعْبَةِ وَقَالَ الشَّيْخُ اَبُوْبَكْرٍ مُحَمَّدُبْنُ الْفَضْلِ يَشْتَرِطُ ذٰلِكَ وَبَعْضُ الْمَشَايِخِ يَقُوْلُ اِنْ كَانَ يُصَلِّيْ اِلَى الْمِحْرَابِ فَكَمَا قَالَ الْحَامِدِيُّ وَاِنْ كَانَ يُصَلِّيْ فِي الصَّحْرَآءِ فَكَمَا قَالَ الْفَضْلِيُّ.

**ژباړه:** څلورم شرط قبلې ته مخ کول دي، کوم ځوک چي کعبې تـه حاضر وي هغه ته په کعبې سيده درېدل واجب دي او کوم ځوک چي د هغې ځخه غائب وي نو ~

هغه باندي فرض دي چي د کعبې طرف ته مخ کړي، او جرجانی رحمه الله ويلي دي چي د غائب لپاره عين د کعبي په برابر کيدل فرض دي او د دې خلاف فائده په نيت کي ښکاره کيږي، شيخ الاسلام ابوبکر محمد بن حامد رحمه الله ويلي دي چي د قبيلي رخ کولو سره نيت د کعبې شرط نه دی او شيخ ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله ويلي دي چي شرط دی او ځيني علماء وايي که چيري په محراب کي لمونځ کوي نو د حامدي قول او که چيري په صحرا کي لمونځ کوي نو د فضلي قول معتبر دی.

**تشريح**: ۱ د لمانځه د شرائطو څخه يو شرط دادی چي د لمانځه په وخت کي که فرض لمونځ وي او که نفل قبلې ته مخامخ کيدل ضروري دي او لمونځ کونکی د دوو حالتو څخه خالی نه دی که چيري هغه د کعبې سره موجود وي او خانه کعبه په نظر راځي نو په لمانځه کي خاص و کعبې ته مخ کول ضروري دی که چيري چا د حطيم و طرف ته مخ کړ نو لمونځ نه دی جائز.

۲: که چيري په داسي ځای کي وي چي هلته کعبه په نظر نه سي را نو صرف و وطرفته د کعبې مخ کول فرض دي ولي چي عين د کعبې په برابر کي درېدل اوس معتذر دي که څه هم د مکې معظمې پر ځمکه باندي وي لکه څنګه چي صاحب د نورالايضاح په دې باندي تصريح کړي ده او وطرفته د کعبې مسئلې مصنف رحمه الله په را روان عبارتو کي په تفصيل سره بيانوي.

وَقِبْلَةُ اَهْلِ الْمَشْرِقِ هِيَ جِهَةُ الْمَغْرِبِ عِنْدَنَا وَذُكِرَ فِيْ اَمَالِ الْفَتَاوٰى حَدُّ الْقِبْلَةِ فِيْ بِلَادِنَا يَعْنِيْ سَمَرْقَنْدَ مَابَيْنَ الْمَغْرِبَيْنِ مَغْرِبَ الشِّتَاءِ وَمَغْرِبَ الصَّيْفِ فَاِنْ صَلّٰى اِلٰى جِهَةٍ خَرَجَتْ مِنْ حَدِّ الْمَغْرِبَيْنِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ وَاِنْ كَانَ مَرِيْضًا لَايَقْدِرُ عَلَى التَّوَجُّهِ اِلَى الْقِبْلَةِ وَلَيْسَ مَعَهُ اَحَدٌ يُوَجِّهُهُ اَوْكَانَ صَحِيْحًا يَخَافُ مِنْ عَدُوٍّ اَوْسَبُعٍ يُصَلِّيْ اِلٰى

اَيِ جِهَةٍ قَدَرَ وَكَذَا اِذَا صَلَّى الْفَرِيْضَةَ بِالْعُذْرِ عَلَى الدَّابَّةِ اَوِ النَّافِلَةِ بِغَيْرِ عُذْرٍ فَلَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ اِلٰى اَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَهُ.

**ژباړه**: زموږ په نز د اهل مشرق قبله د مغرب په طرف ده او په امال الفتاوٰی کي ذکرسوي دي چي زموږ په ښار يعني په سمرقند کي د قبلې حد د مغربينو يعني د يخ مغرب او د ګرم مغرب په منځ کي دی که چېري يي لمونځ وکړ داسي طرف ته چي د مغربينو د حد څخه وتلی وو نو د هغه لمونځ فاسد دی او که چېري ناروغه وي او په توجه د کعبي قادر نه وي او د هغه سره داسي څوک وي چي هغه وقبلې ته مخ کړي يا تندرست وي مګر د دښمن يا د يوحيوان څخه ييريږي نو لمونځ دي وکړي په کوم طرف چي قادر وي، دغه ډول که چېري د عذر د وجي څخه په سواري فرض يا بغير د عذره نفل وکړي نو د هغه لپاره جائز دي چي کوم طرف ته په مخ کولو سره لمونځ وکړي.

**تشريح**: د قبلې لغوي معنٰی د جهت ده او د استقبال معنٰی مخ کول مګر په اصطلاح کي د شريعت قبله هغه خاص جهت او طرف دی چي د هغه و طرف ته لمونځ کول کيږي کوم چي د مځکي څخه بيا تر اووم آسمانه پوري منل سوي ده، د هجرت څخه د مخه په مکه مکرمه کي د سکونت په وخت کي نبی کريم صلی الله عليه سلم به لمونځ داسي کوی چي بيت المقدس او خانه کعبه دواړو جانبو ته به يي مخ مبارک کېدی د دې لپاره د مسلمانانو په دې کي اختلاف دی چي په هغه زمانه کي قبله بيت المقدس وو او که خانه کعبه البته مدينې منوري ته په رسيدو سره تقريباً ١٧ مياشتو پوري بيت المقدس د مسلمانانو قبله وه او د هغه وروسته په ١٥ م رجب د دوشنبې په ورځ د الله تعالی حکم نازل سو، او د هميشه لپاره کعبه مشرفه يي قبله جوړه کړه او چي کوم څوک د مرض يا د بل عذر په وجه قبلې ته په مخ کولو قادر نه

وي نو د الله تعالى د قول مبارک (أينما تولوا فثم وجه الله) د عذر په وجه چې يې په
کوم طرف مخ کړنو لمونځ يې جائزدی.

وَاِنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ وَلَيْسَ بِحَضْرَتِهِ مَنْ يَسْئَلُهُ عَنْهَا اِجْتَهَدَ وَتَحَرّٰى وَصَلّٰى فَاِنْ عَلِمَ اَنَّهُ اَخْطَا بَعْدَ مَاصَلّٰى فَلَا اِعَادَةَ عَلَيْهِ وَاِنْ عَلِمَ ذٰلِكَ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ اِسْتَدَارَ اِلَى الْقِبْلَةِ وَبَنٰى عَلَيْهَا وَسَوَاءٌ اِشْتَبَهَتْ فِي الْمَفَازَةِ اَوْفِي الْمِصْرِ وَسَوَآءٌ كَانَ ذٰلِكَ فِيْ لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ اَوْفِيْ نَهَارٍ وَاِنْ تَحَرّٰى وَصَلّٰى اِلٰى غَيْرِ جِهَةِ التَّحَرِّيْ يُعِيْدُهَا وَاِنْ اَصَابَ الْقِبْلَةَ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ اِنْ اَصَابَ لَايُعِيْدُهَا رَجُلٌ صَلّٰى اِلٰى غَيْرِ الْقِبْلَةِ مُتَعَمِّدًا فَوَافَقَ ذٰلِكَ الْقِبْلَةَ قَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ هُوَ كَافِرٌ بِاللّٰهِ تَعَالٰى وَكَذَا الصَّلٰوةُ بِغَيْرِ طَهَارَةٍ وَكَذَا الثَّوْبُ النَّجِسُ وَالْمُخْتَارُ اَنْ يُّكْفَرَ فِي الصَّلٰوةِ بِغَيْرِ طَهَارَةٍ وَلَايُكْفَرَ فِي الثَّوْبِ النَّجِسِ اَوْاِلٰى غَيْرِ الْقِبْلَةِ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْفَتَاوٰى.

**ژباړه:** که چېرې په يوسړي باندې قبله مشتبه سي او د هغه سره داسې څوک نه وي چې د هغه څخه پوښتنه وکړي نو د ښه سوچ او فکر وروسته يې لمونځ وکړ وروسته څرګنده سوه چې غلطي يې کړې ده نو پر هغه اعاده نسته که چېرې په لمانځه کې دننه دا غلطي معلومه سوه نو د قبلې وطرف ته دې وګرځي او په دغه دې بنا وکړي که د قبلې شک په صحرا کې که په آبادۍ کې او که دا شک په تاريکه ماښام کې وي يا په ورځ کې، که يې فکر کړی وي د سوچ او فکر علاوه يې و بل طرف ته لمونځ وکړ نو دې اعاده وکړي که څه هم د قبلې وطرف ته راګرځېدلی وي، ابويوسف رحمه الله ويلي دي که چېرې صحيح وي نو اعاده دې نه کوي، يو سړي ته دا معلومه وه مګر د قبلې د طرف څخه علاوه يې بل طرف ته لمونځ وکړ او د قبلې

موافق سو نو ابو حنيفه رحمه الله ويلي دي چي هغه کافر دی په الله سره، دغه ډول بې اودسه لمونځ کولو سره او دغه مثل په نجسو کالو کي او مختار قول دادی چي صرف بغير د طهارت لمونځ کولو سره کافر کيږي او په نجسو کالو يابغير د وطرف ته د کعبې لمونځ کولو سره نه کافر کيږي دغه ډول په فتاوٰی کي ذکرسوي دي.

**تشريح**: کوم چا ته چي په طرف د کعبې کي شک وي او هغه په خپل سوچ او فکر سره يو طرف متعين کړي اود هغه وطرف ته لمونځ وکړي نو لمونځ جائز دی او د هغه دوباره قضا نسته لکه څنګه چي په ځينو رواياتو کي د صحابه کرامو رضی الله تعالی عليهم اجمعين څخه دغه ډول قول او نقل سوی دی چي يو وخت په سفر کي په هغوی باندي قبله مشتبه سوه نو خپله پر خپل سوچ او فکرسره هر يوه د خپل سوچ او فکر سره د قبلې طرف متعين کړ بيا عليه السلام وهغوی ته وويل"قد اجيزت صلاتُکم" صاحب منيه په خپل عبارت کي ويلي دي چي دا حکم به هلته وي چي کله د هغو خلګو سره داسي څوک موجود نه وي چي هغو ته د قبلې د طرف په باره کي پوره خبر ورکړي، د دې مطلب دادی يعني د يوه باخبره انسان په موجودګۍ کي به د هغه په خبره باندي عمل کيږي، خپل سوچ او فکر په دې باره کي کافي نه دی البته که چيري د لمانځه په دوران کي معلوم سي چي زموږ مخ د قبلې څخه وبل طرف ته دی نو فوراً د قبلې وطرف ته په لمانځه کي مخ کول ضروري دي او غير د قبلې وطرف ته چي يې څومره لمونځونه کړي وي پر هغه دي بنای وکړي د سره د شروع کولو ضرورت نسته لکه څنګه چي امام مسلم روايت کړی دی چي اهل قباء د سهار په لمانځه کي د رکوع په حالت کي وه چي د بنو سليم يو سړی دلته تيرېدی نو هغه اواز وکړ چي په عليه السلام باندي پروند مابنام قران نازل سو او قبله بدله سوه نو هغوی د لمانځه په حالت کي مخونه واړول او په اول کي د هغوی مخونه د شام يعني بيت المقدس وطرف ته وه.

وَلَوِ اشْتَبَهَتْ وَلَمْ يَتَحَرّٰى فَشَرَعَ وَصَلّٰى لَايَجُوْزُ وَاِنْ عَلِمَ اَنَّهُ اَصَابَ الْقِبْلَةَ اسْتَقْبَلَ الصَّلٰوةَ وَلَوِ اشْتَبَهَتْ اِنْ كَانَ بِحَضْرَتِهٖ مَنْ يَّسْاَلُهُ عَنْهَا فَلَمْ يَسْاَلْهُ وَتَحَرّٰى وَصَلّٰى فَاِنْ اَصَابَ الْقِبْلَةَ جَازَتْ وَاِلَّا فَلَاوَكَذَا الْاَعْمٰى وَلَوْسَئَلَ فَلَمْ يُخْبِرْهُ حَتّٰى تَحَرّٰى وَصَلّٰى ثُمَّ اَخْبَرَهُ لَايُعِيْدُ مَاصَلّٰى وَلَوْشَكَّ فَتَحَرّٰى وَصَلّٰى رَكْعَةً اِلٰى جِهَةٍ ثُمَّ شَكَّ وَتَحَرّٰى وَوَقَعَ تَحَرِّيْهِ عَلٰى جِهَةٍ اُخْرٰى ثُمَّ وَثُمَّ حَتّٰى اَنَّهُ اِذَاصَلّٰى كَذٰلِكَ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ اِلٰى اَرْبَعَ جِهَاتٍ بِالتَّحَرِّىْ جَازَ كَذَافِى الْفَتَاوٰى الْخَاقَانِيَّةِ وَذُكِرَ فِىْ اَمَالِى الْفَتَاوٰى اِنْ عَلِمَ اَنَّ قِبْلَتَهُ الْكَعْبَةُ وَلَمْ يَنْوِهَا جَازَوَفِى الْخَاقَانِيَّةِ اِنْ نَوَى الْمُصَلِّىْ اَنْ قِبْلَتَهُ مِحْرَابُ مَسْجِدِهٖ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهُ لِاَنَّهُ عَلَامَةٌ وَلَيْسَ بِقِبْلَةٍ وَلَوْ حَوَّلَ صَدْرَهُ عَنِ الْقِبْلَةِ بِغَيْرِ عُذْرٍ وَلَوْظَنَّ اَنَّهُ اَحْدَثَ فَتَحَوَّلَ عَنِ الْقِبْلَةِ ثُمَّ عَلِمَ اَنَّهُ لَمْ يُحْدِثْ قَبْلَ اَنْ يَّخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ لَمْ تَفْسُدْ صَلٰوتُهُ وَاِنْ عَلِمَ بَعْدَ الْخُرُوْجِ فَسَدَتْ.

**ژباړه:** که چېري د مشتبه کېدو وروسته يي بغير د سوچ او فکر لمونځ وکړ نو نه دی جائز که چېري دا معلومه سي چي د قبلې وطرف ته وو نو بيا جائز دی،که د مشتبه کېدلو وروسته داسي څوک موجود وي د کوم څخه چي پوښتنه کولی سي مګر پوښتنه يې نه وکړه او وروسته د سوچ يي لمونځ وکړ نو که چېري د قبلې وطرفته سيده وي نو جائز دی که نه وي نه دی ، دغه ډول حکم د ړانده هم دی که چېري پوښتنه وکړي او هغه خبر نه ورکړي تر دې پوري چي په فکر کولو سره لمونځ وکړي د هغه وروسته يي خبر ورکړ نو سوی لمونځ دي نه راګرځوي که چېري په شک د واقع کېدو سره يي يو رکعت وکړ په شک کي يې فکر وکړ نو د هغه فکر بلي خوا ته واقع سو دغه ډول څو واره وسوه تر دې پوري چي هغه څلور رکعاته لمونځ په

ځلورو سمتو کې وکړ نو جائز دی دا راز په فتاوٰی خاقانیه کې ذکرسوی دی ، او په امالي فتاوٰی کې ذکر سوی دي چې د دې معلومیدو باوجود چې د هغه قبله کعبه ده د هغه نیت یې نه وکړ نو جائز دی، په خاقانیه کې راغلي دي که چېري لمونځ کوونکی نیت وکړي چې د هغه قبله محراب د مسجد دی نو د هغه لمونځ نه کیږي ولي چې هغه محراب صرف د قبلې علامه ده، که چېري د قبلې څخه سینه واړه وي بغیر د څه عذره نو د هغه لمونځ فاسدیږي که چېري یې مخ واړوی نو پر هغه لازم دی چې فوراً په یوه کړي کې د قبلې و طرف ته مخ کړي او لمونځ نه فاسدیږي مګر مکروه دی که چېري چا د بې اودسی خیال وکړ او د قبلې څخه واوښتی بیا د مسجد څخه د وتلو تر مخه معلومه سوه چې بې اودسه سوی نه دی نو د هغه لمونځ نه سو فاسد که چېري د وتلو وروسته معلوم سو نو فاسد دی .

**تشریح**: که چېري قبله مشکوکه سي او څوک بغیر د سوچ وفکره لمونځ وکړي او وروسته دا معلومه سي چې که څه هم دا لمونځ بغیر د سوچ وفکر کړی دی په دې طرف کې قبله صحیح وه نو بیا هم دا لمونځ نه دی جائز او د دې مثال فقهاء کرامو دا بیان کړی دی که چېري څوک په داسي کالو کې لمونځ وکړي چې د هغه په‌اړه د چا دا خیال وي چې دا کالي نجس دي او وروسته معلوم سي چې هغه پاک وه یا یو څوک د دې په‌خیال سره لمونځ کوي چې زما اودس نسته مګر وروسته معلومه سوه چې اودس یې سته نو په دې دواړو صورتو کې لمونځ نه دی جائز، دغه حکم د هغه سړي دی چې بېله سوچه او فکره د قبلې وطرف ته درست ودریږي که چېري د مقامو خلکو په موجودګی کې یو څوک بغیر پوښتني په خپل فکر سره د قبلې طرف متعین کړي نو که صحیح ولاړ وي نو لمونځ جائز دی که نه وي نو نه‌دی جائز، د شروع څخه به د لمانځه اعاده کوي که یې د یوچا څخه پوښتنه وکړه مګر هغه په ښوولو کې انتظار وکړاو لمونځ کوونکي لمونځ وکړ وروسته خبر ورکړل سو چې د قبلې څخه

غلط طرف ته لمونځ کړی دی نو د دې لمانځه اعاده نسته، که چېري څوک په لمانځه کي د قبلې څخه سينه واړه وي او څه عذر يي هم نه وي نو لمونځ يې فاسد دی او که يواځي مخ واړوي نو لمونځ مع الکراهت جائز دی ولې چي امام ابوداود و نسائي رحمهما الله روايت کړی دی چي عليه السلام وويل چي تر څه وخته پوري بنده په لمانځه کي وي نو الله تعالی په هغه باندي په رحمت سره متوجه کيږي تر هغه پوري چي هغه بل طرف ته التفات نه وکړي چي کله التفات کوي نو الله تعالی د هغه څخه اعراض وکړي، دغه ډول د ترمذي شريفي په روايت کي حضرت انس رضي الله عنه وايي چي نبی عليه السلام ما ته وويل چي ای زويه خپل ځان په لمانځه کي د التفات څخه وساته ولي چي په لمانځه کي التفات هلاکت دی.

**(شرط خامس)**

هُوَ الْوَقْتُ اَوَّلُ وَقْتِ الْفَجْرِ اِذَاطَلَعَ الْفَجْرُ الثَّانِيْ وَهُوَ الْبَيَاضُ الْمُسْتَطِيْرُ فِي الْاُفُقِ فَبِطُلُوْعِ الْفَجْرِ الْاَوَّلِ الْكَاذِبِ وَهُوَالْبَيَاضُ الْمُسْتَطِيْلُ لَايَخْرُجُ وَقْتُ الْعِشَاءِ وَلَايَدْخُلُ وَقْتُ الْفَجْرِ وَفِي الْمُحِيْطِ اَمَّا الْفَجْرُ الْكَاذِبُ وَهُوَ اَنْ يَرْتَفِعَ الْبَيَاضُ الْكَاذِبُ فِيْ نَاحِيَةٍ وَّاحِدَةٍ ثُمَّ يَتَلَاشٰى وَاٰخِرُوقْتِهَا قُبَيْلُ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَاخْتَلَفُوْا فِيْ الْوَقْتِ الَّتِيْ لَايُبَاحُ فِيْهَا الصَّلٰوةُ اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ مُحَمَّدُبْنُ الْفَضْلِ مَادَامَ الْاِنْسَانُ يَقْدِرُ عَلَى النَّظَرِ اِلٰى قُرْصِ الشَّمْسِ فَهِيَ فِي الطُّلُوْعِ لَايُبَاحُ فِيْهِ الصَّلٰوةُ فَاِذَا عَجَزَ عَنِ النَّظَرِ يُبَاحُ الصَّلٰوةُ فِيْهِ وَفِيْ كِتَابِ مُحَمَّدٍ اِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ قَدْرَ رُمْحٍ اَوْ رُمْحَيْنِ يُبَاحُ الصَّلٰوةُ وَاِلَّا كَذَا ذُكِرَ فِيْ خُلَاصَةِ الْفَتَاوٰى

**ژباړه:** د سهار د لمانځه اول وخت هغه دی چي کله د همي سفيدي را وخيږي او

هغه د آسمان په کنارو باندي غوړېدلي سفيدي دي، اولي سفيدۍ د کاذب طلوع ځنځه چي اوږدې سفيدي دي په هغه سره د ماخستن وخت نه وزي او د سهار وخت نه داخلیږي او په محيط کي راغلي دي چي فجر کاذب دادی چي د آسمان په يوه طرف کي سفيدي پورته سي او بيا ختمي سي، او د سهار د لمانځه آخري وخت دادی چي کله لمر را وخيژي د هغه ځنځه لږ مخکي لمونځ قضا کيږي او د علماؤ د دې وخت په باره کي اختلاف دی چي په هغه کي لمونځ نه دی جائز چي کله لمر راوخيژي، امام ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله ويلي دي چي تر څه وخته پوري انسان و لمر ته په کتلو قدرت لري نو هغه په راختلو کي دی او لمونځ نه دی روا، چي کله د ليدلو سره عاجزه سي نو لمونځ په دې وخت کي روا کيږي، دامام محمد رحمه الله په کتاب کی دی چي کله لمر د يوې يا دوو نيزو برابر راپورته سي نو په دې وخت کي لمونځ مباح دی دغه ډول په خلاصة الفتاوی کي هم ذکر سوي دي .

**تشريح**: د لمانځ د شپږو شرائطو ځنځه پنځم شرط د وخت داخليدل دي لکه څنګه چي په قرآن پاک کي راغلي دي (اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَت عَلَى المُؤمِنِينَ كِتَابًا مَّوقُوتًا) يعني لمونځ په مومنانو باندي په خپل خپل وختو کي دننه فرض سوی دی، د شپې په آخري حصه کي په آسمان کي يو اوږدې سفيدۍ شرقا غرباً راځي او بيا ختميږي دې ته صبح کاذب ويل کيږي، د دې وروسته د آسمان په کنارو کي سفيدي راځي او زياتيږي دې ته صبح صادق ويل کيږي .

اوس صاحب منية المصلي وايي چي د صبح کاذب په روښنايي سره نه د ماخستن وخت ختميږي او نه د صبح صادق وخت داخليږي، چونکي د لمر راختلو په وخت کي ترهغه وخته پوري چي د لمر رڼا ښه نه سي تيزه لمونځ کول مکروه دي، ځيني علماؤ ويلي دي چي رڼا ته نه کتل کيږي نو هغه وخت د لمانځه کراهت ختميږي، زموږ په دور کي د ساعت په حساب سره د طلوع افتاب ځنځه تقريبًا پنځلس (۱۵) دقيقې وتلو

وروسته د اشراق لمونځ کول جائز دي .

وَاَوَّلُ وَقْتِ الظُّهْرِ بَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ وَاٰخِرُ وَقْتِهَا عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ اِذَا صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ سِوٰى فَيْءِ الزَّوَالِ وَقَالَ اِذَا صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ وَاَوَّلُ وَقْتِ الْعَصْرِ اِذَا خَرَجَ وَقْتُ الظُّهْرِ عَلَى الْقَوْلَيْنِ وَاٰخِرُ وَقْتِهَا مَالَمْ تَغْرُبِ الشَّمْسُ وَاَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ اِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَاٰخِرُ وَقْتِهَا مَالَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ وَهُوَ الْبَيَاضُ الَّذِىْ فِى الْاُفُقِ بَعْدَ الْحُمْرَةِ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا الْحُمْرَةُ وَاَوَّلُ وَقْتِ الْعِشَاءِ اِذَا غَابَ الشَّفَقُ عَلَى الْقَوْلَيْنِ وَاٰخِرُهُ مَالَمْ يَطْلُعُ الْفَجْرُ الثَّانِىْ وَوَقْتُ الْوِتْرِ مَاهُوَ وَقْتُ الْعِشَاءِ اِلَّا اَنَّهُ مَامُوْرٌ بِتَقْدِيْمِ الْعِشَاءِ عَلَيْهِ حَتّٰى لَوْاَنَّ رَجُلًا صَلَّى الْعِشَاءَ بِثَوْبٍ وَصَلَّى الْوِتْرِ بِاٰخَرَ ثُمَّ ظَهَرَ اَنَّ الثَّوْبَ الَّذِىْ صَلَّى الْعِشَاءَ بِهٖ كَانَ نَجَسًا يُعِيْدُ الْعِشَآءَ دُوْنَ الْوِتْرَ عِنْدَ اَبِىْ حَنِيْفَةَ خِلَافًا لَهُمَا.

وَيَسْتَحِبُّ فِى الْفَجْرِ الْاِسْفَارُ عِنْدَنَا فِى الْاَزْمِنَةِ كُلِّهَا اِلَّا يَوْمَ النَّحْرِ بِمُزْدَلِفَةَ وَالْاِبْرَادُ بِالظُّهْرِ فِى الصَّيْفِ وَتَقْدِيْمُهَا فِى الشِّتَآءِ وَتَاخِيْرُ الْعَصْرِ مَالَمْ تَتَغَيَّرَ الشَّمْسُ وَتَعْجِيْلُ الْمَغْرِبِ وَتَاخِيْرُ الْعِشَاءِ اِلٰى مَاقَبْلَ ثُلُثِ اللَّيْلِ مُسْتَحَبٌّ وَاِلٰى مَابَعْدَهُ اِلٰى نِصْفِ اللَّيْلِ مُبَاحٌ وَاِلٰى مَابَعْدَهُ اِلٰى طُلُوْعِ الْفَجْرِ مَكْرُوْهٌ اِذَاكَانَ بِغَيْرِ عُذْرٍ وَاَمَّا فِى الْوِتْرِ اِنْ كَانَ لَايَثِقُ بِالْاِنْتِبَاهِ اَوْتَرَ قَبْلَ النَّوْمِ وَاِنْكَانَ يَثِقُ بِالْاِنْتِبَاهِ

فَتَاخِيْرُهُ اِلٰى اٰخِرِ اللَّيْلِ اَفْضَلُ وَاِذَاكَانَ الْيَوْمُ يَوْمَ غَيْمٍ فَالْمُسْتَحَبُّ فِى الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ وَالْمَغْرِبِ تَاْخِيْرُهَا يَعْنِىْ عَدَمُ التَّعْجِيْلِ وَفِى الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ تَعْجِيْلُهَا.

**ژباړه:** د ماپښين اول وخت د زوال شمس وروسته يعني چي کله لمر تر سر کښته سي او پر دې باندي اتفاق دی، د ماپښين د لمانځه په آخري وخت کي اختلاف دی. حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله وايي چي د اصلي سايې څخه علاوه چي کله د هر شي سايه دوچنده سي نو د ماپښين وخت ختم سو د ماځيګر وخت داخليږي چي کله د هر شي سايه (د زوال څخه ماسوا) د هغه په مثل سي، سايه اصلي يعني فى الزوال معلومولو طريقه داده چي د مځکي سطحه داسي هواره سي چي په هغه کي هيڅ پورته کښته نه سي پاته بيا يو لرګی جګ کړل سي او تر کومه پوري چي د دې شي سايه ورسيږي نو هلته دي يو نښان دي ولګول سي نو تر کوم ځای پوري چي دا سايه کميږي نو دا د زوال څخه ترمخه وخت دی مګر چي کله کميږي کميږي او د هغه شي په بيخ کي ودريږي نو دا فى الزوال يعني اصلي سايه ده او چي کله دا سايه د مشرق و طرفته روانه سي نو پوه سه چي لمر کم سو، او د ماپښين د لمانځه وخت شروع سو، د ماځګير اول وخت د ماپښين وروسته وخت په دومثله باندي ختم سي لکه څنګه چي د امام صاحب رحمه الله قول دی يا په يوه مثل باندي ختم سي لکه څنګه چي د صاحبينو قول دی او د ماځيګر آخري وخت د لمر د لوېدو څخه تر مخه پوري دی، د ماښام وخت د لمر لويدو وروسته شروع کيږي او د غروب شفق پوري يي، زموږ د آئمه کرامو د شفق په تعين کي اختلاف دی، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز شفق هغه سفيدي دي چي د سرخي وروسته د آسمان په کنارو ښکاره کيږي او په دليل کي د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت پيشوي چي عليه السلام وويل د ماښام د لمانځه آخر وخت چي کله أفق طور سي او دا خبره ښکاره ده چي په افق باندي د سفيدي

ختميدولو وروسته تورواله راځي، صاحبين وايي چي د دې سرخي نوم شفق دی او د هغو دليل د عليه السلام مبارک قول دی چی (الشفق الحمدة) اکثرو علماؤ د صاحبينو په قول فتوٰی نقل کړي ده لهٰذا په افق باندي د سرخي ختميدو وروسته د ماخستين اول وخت شروع کيږي او د صبح صادق پوري وي، د ماخستن د لمانځه او وترو يو وخت دی البته د ماخستن څلور رکعات فرض په وترو باندي مخکي کول ضروري دي، صاحبين حضرات د وتر د لمانځه د قول د وجوب قائل نه دي، د دې لپاره که چېري چا د ماخستن لمونځ په نجسو کالو کي وکړ او د وتر لمونځ يي په پاکو کالو کي ادا کړ نو د صاحبينو په نِز وتر لمونځ د سنت په وجه د فرض په تابع کيدو سره به دوباره کول کيږي او د امام ابوحنيفهؒ په نِز چونکي وتر لمونځ علٰحده عملي فرض دی د دې لپاره د ماخستن د تابع نه کيدو په وجه د هغه اعاده به نه کول کيږي.

اَمَّا الْاَوْقَاتُ الَّتِیْ تَكْرَهُ فِيْهَا الصَّلٰوةُ فَخَمْسَةٌ ثَلٰثَةٌ مِّنْهَا يَكْرَهُ فِيْهَا الْفَرْضُ وَالتَّطَوُّعُ وَذٰلِكَ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوْبِهَا اِلَّا عَصْرَ يَوْمِهٖ وَوَقْتُ الزَّوَالِ وَرُوِیَ عَنْ اَبِیْ يُوْسُفَ اَنَّهٗ جَوَّزَ التَّطَوُّعَ وَقْتَ الزَّوَالِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلَايُصَلِّیْ فِيْهَا صَلٰوةَ جَنَازَةٍ وَلَايَسْجُدُ لِلتِّلَاوَةِ وَلَايَسْجُدُ فِيْهَا لِلسَّهْوِ وَلَوْ قَضَا فِيْهَا فَرْضًا يُعِيْدُهَا وَاِذَا تَلَا فِيْهَا اٰيَةَ سِجْدَةٍ فَالْاَفْضَلُ اَن لَّايَسْجُدَهَا فَاِنْ سَجَدَهَا لَايُعِيْدُهَا وَاَمَّا الْوَقْتَانِ الْاٰخَرَانِ فَاِنَّهٗ يَكْرَهُ فِيْهِمَا التَّطَوُّعُ وَلَايَكْرَهُ فِيْهِمَا الْفَرْضُ يَعْنِیْ الْفَوَائِتَ وَصَلٰوةَ الْجَنَازَةِ وَسَجْدَةَ التِّلَاوَةَ وَهُمَا مَابَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ اِلٰی اَنْ تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ اِلَّا سُنَّةَ الْفَجْرِ وَمَابَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰی غُرُوْبِ الشَّمْسِ.

**ژباړه**: زموږ په نِز د سهار په لمانځه کي هر وخت که ګرمي وي او که يخ اسفار

مستحب دی یعني په یوڅه رڼا کي د سهار لمونځ کول مستحب دی، مګر په یوم نحر کي د مزدلفې په مقام کي اود ګرمۍ په موسم کي، د ماپښین لمونځ په یخه سایه کي کول، او په یخ کي د ماپښین لمونځ وختي کول مستحب دي، او د لمر د تغیر څخه ترمخه د ماځیګر لمونځ وروسته کول او د ماښام په لمانځه کي تلوار کول او د شپې تر دریمي حصې پوري د ماخستن لمونځ وروسته کول مستحب دي د هغه وروسته د نیمي شپې پوري مباح دی او د هغه وروسته د صبح صادق پوري مکروه دی چي کله بېله عذره وي، او د وترو په باره که چېري څوک د شپې په راپورته کیدو باندي یقیني نه وي نو تر بیدیدو تر مخه دي وتر وکړي او که چېري یې د خوب څخه په را پورته کیدو یقین وي نو تر آخر د شپې پوري وروسته کول افضل دي، چي کله د وریزي ورځ وي نو سهار، ماپښین، او په ماښام کي وروسته والی یعني عدم تعجیل په ماځیګر او ماخستن کي تلوار مستحب دی.

**تشریح**: مصنف رحمه الله چي کله مطلقِ د لمانځه د وختو څخه فارغه سو نو اوس د مستحب وختو ذکر کوي، چي د احنافو په نزِ د سهار لمونځ په رڼا کي کول مستحب دی، یعني د سفیدو د غوړیدو وروسته لمونځ د مسنون قرآئت سره کولای سي او که چېري چاته د اودس یا بل شي ضرورت پیښ سي نو د هغه لپاره د اودس کولو وروسته د لمر ختلو څخه ترمخه د سهار لمونځ کول ممکن دی، امام طحطاوي رحمه الله چي په احنافو کي مشهور محدیث دی دی وایي چي د سهار لمونځ دي په تاریکه کي شروع کړل سي او په سفیدو باندي دي ختم کړل سي نو دا ډول د اوږد قرآئت په ذریعه سره په ټولو روایاتو باندي به عمل ممکن سي.

د ګرمۍ په موسم کي د ماپښین لمونځ په سایه کي ادا کول او د یخ په موسم کي په اول وخت کي ژر ادا کول مستحب دي، د ماځیګر لمونځ په هر موسم کي وروسته کول مستحب دي، ولي چي د ماځیګر د لمانځه په وروسته والي کي د نوافلو د زیادت

موقع ده، د دې لپاره چي د ماښيګر د لمانځه وروسته نفل کول مکروه دي مګر د دومره تاخير څخه ځان ساتل پکار دي چي لمر ژړ سي او د ماښيګر لمونځ په مکروه وخت کي وکړي، د ماښام په لمانځه کي تلوار مستحب دی ولي چي په وروسته والي کي د يهودو سره مشابهت دی او عليه السلام ويلي دی چي زما امت به هميشه په خير وي تر هغه وخته پوري چي هغوی په ماښام کي ژر او په ماخستن کي وروسته والی کوي، د ماخستن لمونځ د دريمي د شپې پوري مؤخر کول مستحب دي، په اشرف الهدايه کي د ځينو فقهاؤ په حواله سره يې ليکلي دي چي د ګرمۍ په موسم کي د ماخستن لمونځ ژر ادا کول مستحب دي ولي چي د ګرمۍ په موسم کي شپه کوچنۍ وي نو خلک ژر پريوزي نو بيا به د جماعت خلک لږ وي، د وتر لمانځه په باره کي فقهاؤ ويلي دي چي د چا د تهجد لمونځ کول عادت وي نو هغه ته مستحب دا ده چي د تجهد وروسته د شپې په آخري حصې کي لمونځ وکړي که چېري د پورته کيدو باوريې نه وي او د تهجد ګذار هم نه وي نو دا سړی دي د پريوتلو څخه ترمخه وتر وکړي.

اَمَّا الْاَوْقَاتُ الَّتِيْ تَكْرَهُ فِيْهَا الصَّلٰوةُ فَخَمْسَةٌ ثَلٰثَةٌ مِّنْهَا يَكْرَهُ فِيْهَا الْفَرْضُ وَالتَّطَوُّعُ وَذٰلِكَ عِنْدَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ وَعِنْدَ غُرُوْبِهَا اِلَّا عَصْرَ يَوْمِهٖ وَوَقْتُ الزَّوَالِ وَرُوِیَ عَنْ اَبِيْ يُوْسُفَ اَنَّهٗ جَوَّزَ التَّطَوُّعَ وَقْتَ الزَّوَالِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَلَايُصَلِّيْ فِيْهَا صَلٰوةَ جَنَازَةٍ وَلَايَسْجُدُ لِلتِّلَاوَةِ وَلَايَسْجُدُ فِيْهَا لِلسَّهْوِ وَلَوْ قَضَا فِيْهَا فَرْضًا يُعِيْدُهَا وَاِذَا تَلَا فِيْهَا اٰيَةَ سِجْدَةٍ فَالْاَفْضَلُ اَنْ لَّايَسْجُدَهَا فَاِنْ سَجَدَهَا لَايُعِيْدُهَا وَاَمَّا الْوَقْتَانِ الْاٰخَرَانِ فَاِنَّهٗ يَكْرَهُ فِيْهِمَا التَّطَوُّعُ وَلَايَكْرَهُ فِيْهِمَا الْفَرْضُ يَعْنِيْ الْفَوَائِتَ وَصَلٰوةَ الْجَنَازَةِ وَسَجْدَةَ التِّلَاوَةَ

وَهُمَا مَابَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ اِلٰى اَنْ تَرْتَفِعَ الشَّمْسُ اِلَّا سُنَّةَ الْفَجْرِ وَمَابَعْدَ صَلٰوةِ الْعَصْرِ اِلٰى غُرُوْبِ الشَّمْسِ.

**ژباړه:** هغه وختونه چي په هغه وختو کي لمونځ کول مکروه دي هغه پنځه دي، درې وختونه هغه دي چي په هغه کي فرض نفل ټوله مکروه دي او دا د لمر د راختلو او لمر لوېدلو په وخت کي مګر د دغې ورځي د ماځیګر لمونځ مکروه نه دی او په وخت د زوال یعني په غرمه کي چي لمر پر سر ولاړ وي، د ابو یوسف رحمه الله څخه روایت سوی دی چي هغه د جمعې په ورځ په وخت د زوال نفل جائز ګڼي، او په دې وختو کي د جناې لمونځ، سجده د تلاوت او سجده سهوه دي هم نه کوي که چېري یي لمونځ قضاء کړ نو د لمانځه اعاده دي وکړي که په دې وختو کي یې ایت د سجدې تلاوت کړ نو بهتره داده چي سجده نه وکړي او که چېري یي سجده وکړه نو د هغې اعاده دي نه کوي .

د دغو درو وختونو څخه ماسوای هغه نور دوه وختونه چي په هغه دوو وختو کي نفل مکروه دي او په هغو کي فرض یعني قضا سوي فرائض، د جنازې لمونځ او سجده د تلاوت مکروه نه دي، او هغه دواړه د صبح صادق څخه بیا تر لمر د لوړېدو مګر د سهار سنت مکروه نه دي او د ماځیګر د لمونځ کولو وروسته تر لمر لوېدو پوري .

**تشریح:** د اوقات مستحبه د بیان د فراغت څخه وروسته مصنف رحمه الله د اوقاتو مکروه بیان کوي او وایي چي د لمر د راختلو په وخت کي او نصف النهار یعني غرمه او د لمر لوېدو په وخت کي صرف د دغه ورځي علاوه بل فرض یا نفل لمونځ نه دی جائز ، د امام ابویوسف رحمه الله په نز د جمعې په ورځ د ولاړه شمس په وخت نفل کول جائز دي، د امام یوسف رحمه الله دلیل هغه حدیث دی چي هغه ابوهریره او ابوسعد خدری رضی الله تعالی عنهما روایت کړی دی چي (اِنَّ رسول الله صلی الله علیه

مسلم نهى الصّلاة نصفُ النَهارِ حتّى تَزولُ الشّمسِ الاّ يَومَ الجُمعَة)

**ژباړه**: يعني نبي عليه السلام په نصف النهار كي د لمانځه كولو څخه منع كړي ده ترڅو دې پوري چي لمر كښته سي مگر د جمعې په ورځ او د سهار د لمانځه وروسته د لمر تر راختلو پوري او د مازيگر وروسته د لمر لوېدلو پوري نفل كول مكروه دي، دليل د ابن عباس رضي الله عنه حديث دى چي ماته د بندگانو حق خوښ شهادت راكړى دى په قوم كي چي زما په نِز زيات خوښ دى چي هغه حضرت عمر رضي الله عنه دى، عليه السلام د سهار د لمانځه وروسته د لمانځه څخه منع وكړه تر هغه وخته پوري چي لمر را وخيژي او وروسته تر مازيگر د لمانځه چي لمرَ ولوېږي.

وَمَابَعْدَغُرُوْبِ الشَّمْسِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ اَيْضًا مَكْرُوْهٌ لِتَاخِيْرِ الْمَغْرِبِ وَكَذٰلِكَ يَكْرَهُ التَّطَوُّعُ اِذَا خَرَجَ الْاِمَامُ لِلْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَكَذَا عِنْدَ الْاِقَامَةِ فَاِنْ شَرَعَ ثُمَّ خَرَجَ الْاِمَامُ لَايَقْطَعُهَا وَكَذَا قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيْدَيْنِ وَعِنْدَ خُطْبَتِهِمَا وَكَذَا عِنْدَ خُطْبَةِ الْكُسُوْفِ وَالْاِسْتِسْقَآءِ.

**ژباړه**: د لمر لوېدو وروسته د ماښام د لمانځه څخه تر مخه هم نفل مكروه دي ولي چي په دې كي د ماښام د لمانځه تاخير كيږي، دغه ډول نفل كول مكروه دي چي كله په ورځ د جمعې امام د لمانځه لپاره ولاړ سي او د هغه راز په دوران كي د اقامت وروسته كه چېري د شروع كول وروسته امام ووزي نو دي قطع نه كوي، دغه ډول د اختر د لمونځو څخه ترمخه او دواړو خطبو په وخت كي ، دغه ډول د كسوف او استقاء د خطبې په وخت كي.

**تشريح**: د ماښام د لمانځه څخه ترمخه هم د احنافو په نِز په نوافلو كي مشغوليدل مكروه دي ولي چي په دې سره د ماښام په لمانځه كي تاخير لازم راځي او د ماښام

په لمانځه کي تلوار مستحب دی، مګر په داسي مواقعو باندي چېري چي جماعت مقدم کول ستا د وس کار نه وي لکه څنګه چي په حرمينو شريفينو کي کيږي نو د بنده ناچيز پر ناقص فکر دا به بهتره وي چي دوه رکعاته نفل وکړي، فقيه النفس علامه حنيف احمد ګنګوهي رحمه الله په غاية السعايه کي په دې موضوع کي بحث کړی دی او ليکلي يې دي چي د ماښام تر لمانځه وروسته دوه رکعاته لمونځ کولو ته په عامو حنيفي کتابو کي مکروه ويل سوي دي، مګر شيخ ابن الهمام په فتح القدير کي په دې مسئله باندي د مفصل بحث کلام وروسته مباح شماريلي دي (حَيْثُ قَالَ ثُمَّ الثَّابِتُ بَعْدَ هٰذَا هُوَ نَفْيُ الْمَنْدُوْبِيَّةِ اَمَّا ثُبُوْتُ الْكِرَاهَةِ فَلاَ) دغه بهتر او معتمد قول دی، د دې څخه علاوه د خطبو په وخت کي هم په نوافلو باندي د مشغوله کېدو په صورت کي د خطبو اورېدل نه سي کيدی او په متن کي ذکر سوي دي چي د ټولو خطبو اورېدل ضروري دي.

وَلَوْ شَرَعَ فِي التَّطَوُّعِ فِي الْاَوْقَاتِ الثَّلٰثَةِ فَالْاَفْضَلُ اَنْ يَّقْطَعَهَا ثُمَّ يَقْضِيْهَا وَلَوْلَمْ يَقْطَعْ فَقَدْ اَسَآءَ وَلَاشَيْءَ عَلَيْهِ وَلَوْ شَرَعَ فِي النَّافِلَةِ فِي الْوَقْتَيْنِ ثُمَّ اَفْسَدَهَا لِزَمَهُ الْقَضَآءُ وَلَوِافْتَتَحَ النَّافِلَةَ فِيْ وَقْتٍ مُسْتَحَبٍ ثُمَّ اَفْسَدَهَا لَايَقْضِيْهَا بَعْدَ الْعَصْرِ قَبْلَ الْغُرُوْبِ وَلَوْ اَفْسَدَ سُنَّةُ الْفَجْرِ لَايَقْضِيْهَا بَعْدَ مَا صَلَّى الْفَجْرَ وَقِيْلَ يَقْضِيْهَا وَلَوْشَرَعَ فِيْ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ قَبْلَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ فَلَمَّا صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ طَلَعَ الْفَجْرُ ثُمَّ قَامَ وَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ تَنُوْبُ عَنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ عِنْدَهُمَا وَهُوَ اِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَفِي الذَّخِيْرَةِ وَلَوْ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ عَلٰى ظَنٍّ اَنَّهُ لَمْ يَطْلَعِ الْفَجْرُ وَقَدْ تَبَيَّنَ اَنَّهُ

قَدْ طَلَعَ الْفَجْرُ فَعِنْدَ الْمُتَاَخِّرِيْنَ تَجْزِيْهِ عَنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ وَلَوْشَكَّ لَاتَجْزِيْهِ عَنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ بِالاِتِّفَاقِ وَاِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ حَتّٰى ارْتَفَعَتْ قَدْرَ رُمْحَيْنِ اَوْقَدْرَ رُمْحٍ تُبَاحُ الصَّلٰوةُ وَلَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ فِيْ خِلَالِ الْفَجْرِ تَفْسُدُ صَلٰوةُ الْفَجْرِ وَلَوْ غَرَبَتِ الشَّمْسُ فِيْ خِلَالِ الْعَصْرِ لَاتَفْسُدُ.

**ژباړه:** كه يو څوک په دغه تېر سوو درو وختو كي نفل شروع كړي نو بهتره داده چي د قطع كيدلو وروسته بيا قضاء راوړي كه چېري يي قطع نه كړل نو ګنهګار دی، مګر پر هغه هيڅ قضاء نسته او كه چېري هغه په مكروه وختو كي د نفل شروع كولو وروسته يي فاسد كړل نو پر هغه باندي قضاء لازمه ده او په مستحب وختو كي كه يې نفل شروع كړل او بيا يي فاسد كړه نو د ماځيګر تر لمانځه وروسته دي د هغه قضا نه راوړي، كه يي د سهار د لمانځه سنت فاسد كړل نو د سهار د فرض كولو وروسته دي د هغو قضا نه راوړي او ځينو ويلي يې دي چي قضا دي راوړي، كه چا د صبح صادق څخه تر مخه څلور ركعاته نفل شروع كړل نو چي كله يي دوه ركعات وكړل نو د سهار وخت سو بيا ودريدی او دوه ركعاتونه يي وكړل نو د صاحبينو په نِز دا دوه ركعاته د سهار د سنتو قائم مقام دي او د غه يو روايت د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه هم دی، په ذخيره كي راغلي دي كه چېري يي دوه ركعاته په دې خيال سره ادا كړل چي تر اوسه پوري سهار نه دی او بيا ثابته سوه چي د سهار وخت سوی دی نو د متاخرينو په نِز دوه ركعاته د سهار د سنتو پر ځای دي، كه چېري په شک كي وي نو بالاتفاق د سهار د سنتو په ځای كي كافي نه دي، او چي كله د لمر تر راختلو وروسته د يوې يا دوو نيزو په مقدار لمر لوړ سي نو لمونځ مباح سو او كه چېري د سهار د لمونځ كولو په منځ كي لمر راوخيژي نو د سهار لمونځ فاسد دی او كه د ماځيګر د

لمانځه په منځ کې لمر ډوب سي نو لمونځ نه فاسدیږي.

**تشریح**: په مکروه وختو کې د لمونځ کولو څخه په احادیثو مبارکه وو کې نهي راغلي دي، د دې لپاره که چېري څوک په دې اوقاتو کې لمونځ شروع کړي نو بهتره داده چي لمونځ مات کړي وروسته بیا په یو غیر مکروه وخت کې د هغه لمانځه قضا راوړي نو دا لمونځ په ثواب کې دکاملیدلو سره بغیر د کراهت به ثابت سي که څه هم د اول لمانځه په قطعه کولو کې یو عمل باطلول لازم راځي مګر دا ابطال برائي اکمال دی د دې لپاره چي لمونځ د کراهت د حد څخه ووزي د کامل ثواب ذریعه جوړ سي لکه څنګه چي څوک په انفرادي ډول لمونځ ادا کوي، د جماعت لپاره چي اقامت وویل سي نو بهتره داده چي په انفرادي فرض قطع کولو سره د جماعت فضیلت حاصلولو لپاره په دې کي شریک سي، مګر که چېري په اوقاتو مکروهه کي د لمونځ شروع کولو وروسته قطعه کول مکمل نه دی نو د هغه لمونځ مع الکراهت درست دی او په هغه باندي هیڅ قضا لازمه نه ده البته ګنهګار ضرور دی په دې باندي استغفار کول لازم دي، که چېري څوک په اوقاتِ مستحبه کي د نوافلو شروع کولو وروسته د څه عذر پر بنا باندي یي فاسد کړي نو وروسته د صبح صادق څخه بیا د لمر د پورته کیدو پوري او د ماځیګر د لمانځه وروسته تر لمر لویدو پوري د هغوی قضاء دي نه راوړي ولي چي دا قضاء اوس که څه هم واجب ده مګر في نفسه دا نفلي لمونځ دی او په دې وختو کي نوافل کول مکروه دي، که څه هم د فرائضو قضاء په دې وختو کي مکروه ده، که چېري چا د تهجد په وخت کي څلور رکعاته نفل شروع کړل مګر د دوو رکعاتو پوره کولو وروسته فجر طلوع سو یعني د صبح صادق وخت داخل سو اوس باقي دوه رکعاته که څه هم د تهجد په نیت سره دي مګر د امام ابویوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نِز دا دوه رکعاته د سهار د سنتو قائم مقام دي. مګر که چېري په سهار کیدو کي یي شک وي چي فجر طلوع سوی دی که

نه نو په مشکوک وخت کړل سوي دوه رکعاته د سهار د سنتو قائم مقام نه سي کیدی.

چونکي د طلوع الشمس څخه د ارتفاع شمس پوري نفل کول مکروه دي مګر د ارتفاع شمس کوم کوم علامات دي، په دې باره کي د علماؤ اقوال مختلف دي چي د هغو معنی نیژدې نیژدې یوه یوه ده، امام ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله وایي چي تر څه وخته پوري د لمر رڼا د کمزوری په وجه انسان ورته په کتلو قادري وي تر هغه وخته پوري لمونځ نه دی جائز چي کله انسان د کتلو څخه عاجزه سي نو لمر لوړ سو او اوس لمونځ کول جائز دی.او ځینو علماؤ لکه څنګه چي په متن کي ذکرسوي دي یوې یا دوو نیزو ختلو پوري مقدار بیان کړی دی کوم چي د طلوع وروسته تقریباً د پنځلس دقیقې په تیرېدولو سره ممکن دی نو د هغه وروسته لمونځ کولای سي.

والله تعالی اعلم وعلمه اتم

## (شرط سادس النیت)

اَلْمُصَلِّیْ اِذَاکَانَ مُتَنَفِّلًا یَکْفِیْهِ مُطْلَقُ نِیَّةُ الصَّلٰوةِ وَفِی التَّرَاوِیْحِ اِخْتَلَفَ بَعْضُ الْمَشَایِخِ الْمُتَقَدِّمِیْنَ قَالُوْا اَلْاَصَحُّ اَنَّهٗ لَایَجُوْزُ بِمُطْلَقِ النِّیَّةِ وَذَکَرَ الْمُتَاَخِّرُوْنَ اَنَّ التَّرَاوِیْحَ وَسَآئِرِ السُّنَنِ یَتَاَدّٰی بِمُطْلَقِ النِّیَّةِ وَلَاصَحُّ اَنَّهٗ لَاتَجُوْزُ بِمُطْلَقِ النِّیَّةِ وَالاِحْتِیَاطُ فِی التَّرَاوِیْحِ اَنْ یَّنْوِیَ التَّرَاوِیْحَ اَوْ سُنَّةَ الْوَقْتِ اَوْقِیَامِ اللَّیْلِ وَفِی السُّنَّةِ اَنْ یَّنْوِیَ السُّنَّةَ وَلَوْ نَوٰی فِی الْوِتْرِ اَوِ الْجُمُعَةِ اَوِ الْعِیْدِ یَنْوِیْ صَلٰوةَ الْوِتْرِ وَصَلٰوةَ الْجُمُعَةِ وَصَلٰوةَ الْعِیْدِ وَفِیْ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ یَنْوِی الصَّلٰوةَ لِلّٰهِ تَعَالٰی وَالدُّعَاءَ لِلْمَیِّتِ وَالْمُفْتَرِضُ الْمُنْفَرِدُ لَایَکْفِیْهِ نِیَّةُ الْفَرْضِ مَالَمْ یَقُلِ الظُّهْرِ اَوِ الْعَصْرِ فَاِنْ نَوٰی

فَرْضَالْوَقْتِ وَلَمْ يُعَيِّنْ اَجْزَاَهُ اِلَّا فِي الْجُمُعَةِ وَلَايَشْتَرِطُ نِيَّةُ اَعْدَادِ الرَّكْعَاتِ وَلَوْ نَوَى الْفَرْضَ وَالتَّطَوُّعَ جَازَ عَنِ الْفَرْضِ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ (رح)

**ژباړه**: د منتفل لمونځ کوونکي لپاره صرف د لمانځه نيت کافي دی او په تراويحو کي ځيني متقدمينو علماؤ اختلاف کړی دی وايي چي اصح داده چي هغه په مطلق نيت سره نه دی جائزي او متاخرينو علماؤ ويلي دي چي تراويح او ټوله سنت په مطلق نيت سره ادا کيږي او اصح داده چي په مطلق نيت سره جائز نه دي او د تراويحو په باره کي احتياط په دې کي دی چي يا خو تراويح يا وختي سنت يا د ولاړه الليل نيت وکړي او په سنت کي د سنت نيت وکړي، که چېري د وتر يا جمعه يا د اختر نيت کوي نو د وتر په لمانځه کي داختر د لمانځه نيت دي وکړي د جنازې په لمانځه کي د لمانځه نيت د الله لپاره او دعاء دي د مړي لپاره وکړي، په خپله يوازي د فرض کولو والا لپاره صرف د فرض نيت کافي نه دی تر څه وخت پوري چي ماپښين يا مازيګر نه ووايي، که چېري د وختي فرض نيت وکړي او متعين يې نه کړي نو د هغه لپاره کافی نه دی مګر په جمعه کي او د تعداد رکعاتو نيت شرط نه دی، که چېري يي د فرض او نفل يوځای نيت وکړ نو د امام يوسف رحمه الله په نز فرض جائز دي خلافا لمحمد رحمه الله.

**تشريح**: د لمانځه شپږم شرط نيت دی په لغت کي نيت صرف د ارادې نوم دی او په شريعت کي د يوه مشروع فعل کولو قصد کول نيت دی ځيني علماؤ ليکلي دي چي د نيت په باره کي صرف دومره کافي دي چي هغه خيال او د سوچ په يوځای کولوسره اراده وکړي، د خاص الفاظو ادا کول ضروري نه ده بلکي ځينو علماؤ دې ته بدعت ويلی دی البته متاخرينو دې ته جائز او ځينو مستحسن ورته ويلي دي ، د دې لپاره چي په زړه او ژبي دواړو کي موافقت راسي، حقيقت دادی چي نيت د ژبو

فعل نه دی بلکي دا د زړه فعل دی د دې تعلق صرف د زړه څخه دی، لمونځ کونکی چي کله لمونځ کوي که سنت مؤکده وي یا یو بل نفل وي نو بغیر د څه تعین صرف د لمانځه نیت کافي دی او دا ضروري نه دی چي په نیت کي د سهار یا ماپښین تعین وکړل سي البته د تراویحو په باره کي صاحب د منیة المصلي د مقتدمینو علماء اختلاف په نقل کولو سره ویلي دي چي زیات صحیح قول دادی چي تراویح د نورو سنتو په مثل په مطلق نیت د لمانځه سره کول جائز نه دي بلکي د هغوی لپاره ضروري دی چي یا خو په صریح ډول د تراویحو نیت وي یا د سنت وقتي یا د ولاړه اللیل نیت وکړي د دې لپاره چي د علماء وو د اختلاف بغیره لمونځ وکړي او متاخرین علماء وایي چي د نورو سنتو په مثل تراویح هم په مطلق نیت سره کول درست دي، دغه قول صاحب هدایي اختیار کړی دی، که چېري څوک فرض لمونځ په خپل وخت کي ادا کولو سره د هغه وخت فرض کولو نیت وکړ او دایې معین نه کړ چي ماپښین دی یا مازیګر نو د هغه لمونځ جائز دی بغیر د جمعي ولي چي د جمعې په ورځ که چېري د ماپښین په وخت کي یې د فرائضو وقتیه نیت وکړ نو هغه د ماپښین څلور رکعاته دي د جمعې لمونځ نه دی، د دې لپاره د احنافو رحمهم الله په نِز که چېري څوک د جمعې د لمانځه د فوتیدو څخه تر مخه د ماپښین څلور رکعاته وکړه نو صحیح دی، یا د لمانځه په نیت کي تعداد د رکعاتو ښکاره کول ضروري نه دي ولي چي په نوافلو کي هم شفع شفع متعین دي، د پنځه وخته فرائضو تعین د شریعت له طرفه څخه سوی دی چي کله اظهار د شریعت له طرفه څخه سوی یي نو د بنده له طرف څخه اظهار هیڅ اهمیت نه لري، که چېري په یوه نیت سره فرائض او نوافل دواړه شروع کړل سي نو قاضي امام یوسف رحمه الله وایي چي چونکي فرائض د نوافلو په نسبت قوي دي د دې لپاره دا نیت به صرف د فرائضو لپاره معتبر وي او په نوافلو کي لغو دی او امام محمد رحمه الله وایي چي دا نیت بالکل باطل دی ولي

چي په يوه لمانځه کي دوه وصف يعني فرض او نفل نه سي جمع کيدی نو چي کله اوله نيت باطل سو نو دا اول نه سي صحيح کيدی لعدم النية.

وَلَوِ افْتَتَحَ الْمَكْتُوْبَةَ ثُمَّ ظَنَّ تَطَوُّعٌ فَصَلّٰى عَلٰى نِيَّةِ التَّطَوُّعِ حَتّٰى فَرَغَ تِلْكَ الْمَكْتُوْبَةُ فَهِيَ تِلْكَ الْمَكْتُوْبَةِ وَلَوْ كَبَّرَ يَنْوِي التَّطَوُّعَ ثُمَّ كَبَّرَ يَنْوِي الْفَرْضَ يَصِيْرُ شَارِعًا فِي الْفَرْضِ وَلَوْ صَلّٰى رَكْعَةً مِّنَ الظُّهْرِ ثُمَّ افْتَتَحَ الْعَصْرَ اَوِ التَّطَوُّعَ بِتَكْبِيْرَةٍ فَقَدْ نَقَضَ الظُّهْرَ وَصَحَّ شُرُوْعُهُ فِيْمَا كَبَّرَ وَكَذَا اِذَا شَرَعَ فِي الْمَكْتُوْبَةِ ثُمَّ كَبَّرَ يَنْوِي الشُّرُوْعَ فِي النَّافِلَةِ اَوْكَانَ فِي الْمَكْتُوْبَةِ مُنْفَرِدًا فَكَبَّرَ يَنْوِي الْاِقْتِدَاءَ بِالْاِمَامِ يَصِيْرُ شَارِعًا فِيْمَا كَبَّرَ وَاِنْ صَلّٰى رَكْعَةً مِّنَ الظُّهْرِ ثُمَّ كَبَّرَ يَنْوِي الظُّهْرَ فَهِيَ وَهٰذَا اِذَا نَوٰى بِقَلْبِهٖ وَكَبَّرَ بِلِسَانِهٖ وَيَجْتَزِئُ بِتِلْكَ الرَّكْعَةِ حَتّٰى اَنَّهٗ لَوْكَانَ مُقِيْمًا وَصَلّٰى اَرْبَعًا بَعْدَ ذٰلِكَ عَلٰى ظَنِّ اَنَّ الْاُوْلٰى قَدِ انْتَقَضَتْ وَلَمْ يَقْعُدْ عَلٰى رَاْسِ الرَّابِعَةِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهٗ وَلَوْنَوٰى مَكْتُوْبَتَيْنِ مَعًا فَهِيَ لِلَّتِيْ دَخَلَ وَقْتُهَا وَلَوْنَوٰى فَائِتَتَيْنِ فَهِيَ لِلْاُوْلٰى مِنْهُمَا وَلَوْنَوٰى فَائِتَةً وَوَقْتِيَّةً فَهِيَ لِلْفَائِتَةِ اِلَّا اَنْ تَكُوْنَ فِيْ اٰخِرِ وَقْتِ الْوَقْتِيَّةِ فَهِيَ لِلْوَقْتِيَّةِ.

**ژباړه**: که چېري د فرضو د شروع کولو وروسته يي خيال پيدا سو چي دا خو نفل دي نو د نفلو په نيت سره يي لمونځ وکړ تر دې پوري چي فارغه سو نو دا هغه فرض دي او که چېري د نفل په نيت سره يې تکبير ووايه بيا يي تکبير وکړ د فرض نيت يې وکړ نو په فرض کي د شروع کولو والا سو که چېري په ماپښين يو رکعت کولو وروسته په ماځيگر يا نفل کي په تکبير سره شروع کړي نو د هغه ماپښين مات سو او د دې شروع صحيح ده د کوم لپاره چي يي تکبير ووايه او دغه ډول چي کله په

فرائضو کي شروع وکړي او بيا تکبير ووايي نوافل شروع کولو نيت وکړي يا په فرائضو کي منفرد وي بيا يې په تکبير ويلو سره د امام شاته د اقتداء نيت کړی وي نو چي د کوم لپاره يي تکبير ووايه په هغه کي شروع کونکی سو، چي کله د ماپښين په يوه رکعت کولو کي وروسته بيا تکبير ويلو سره د ماپښين نيت وکړي نو هغه د ماپښين فرض دي او دا هغه وخت دی چي کله په زړه سره نيت او په ژبه سره تکبير ويلي وي او هغه سوی رکعات کافي دی تر دې پوري چي کله مقيم وي او تر هغه وروسته خلور رکعاته په دې ګمان سره وکړي چي اول رکعات باطل دی د څلورو رکعاتو په آخر کي د ناستي آخيري لپاره نه کښينستی نو د هغه لمونځ فاسد دی که چيري د دوو فرضو لپاره يوځای نيت وکړي نو د هغه لپاره دی د کوم چي وخت وي که چيري د دوو فوت شده لپاره يي نيت وکړ نو د هغو څخه د اول لپاره دی که چيري د فوت شده او وقتي دواړو لپاره نيت وکړي نو د فوت شده لپاره دی مګر دا چي دا وقتيه په اخري ساعاتو کي وي نو دا وقتيه دی .

**تشريح**: که چيري د فرض لمانځه لپاره ولاړ سو او د لمانځه د يوځه حصي کولو وروسته يي دا خيال سو چي نفل کوم نو د لمانځه د فراغت څخه وروسته د هغه د ذمې څخه فرض ساقط سوه ولي چي د هغه، هغه اول خيال معتبر دی او وروسته د هغه خيال لغوه دی البته کي چيري صراحتاً په خپل زړه کي نيت بدل کړي لکه څنګه چي صاحب د کتاب وايي چي د نفل لپاره د نيت کولو وروسته باراده خود د فرض لپاره نيت کولو سره تکبير ووايي نو په فرض کي د هغه شروع درسته ده او د نفل نيت باطل سو، دغه ډول د يوه فرض مثلاً د ماپښين لپاره د نيت کولو وروسته د ماځيګر نيت يي وکړ يا د فرضو څخه علاوه د نفلو نيت وکړي نو اول باطل سو هغه لمونځ صحيح دی د کوم لپاره چي په دوهم وار نيت کولو سره يي تکبير ووايه البته چي کله د هغه لمانځه لپاره دوباره نيت وکړي د کوم نيت چي د اول سره کړی دی

مثلاً ماپښين لمونځ يي يو رکعات وکړ بيا د هغه لپاره يې د نيت ورسره ورسره دوهم وار تکبير ووايه نو د هغه ماپښين لمونځ درست دی او د اول تکبير سره کړی رکعت هم په لمانځه کي حسابيږي ولي چي باطل نه سو تر درو پوري که چيري چا يو رکعت په باطل ګڼلو سره په بزعم خود د څلورم رکعات لپاره ولاړ سو نو د شيخينو رحمهما الله په نز د دې لمانځه وصف فرضيت باطليدو سره نفل سو او د امام محمد رحمه الله په نز اصل لمونځ يي باطل سو الغرض باالاتفاق د لمانځه اعاده کول لازم دي، که چا د دوو فرائضو ادا کولو لپاره يوځای نيت وکړ نو د کوم لمانځه چي وخت وي دا وخت د هغه لپاره معتبر دی مثلاً د ظهر او عصر لپاره چي کله يوځای نيت وکړل سي او وخت د ظهر وي نو دا نيت د ظهر لپاره کافي دی، که چيري د فوت شده او وقتي لمانځه نيت وکړي نو دا نيت د فوت شده په حق کي معتبر دی يعني فائته په وقتي باندي تقدم حاصل دی که څه هم صاحب ترتيب نه وي.

وَلَايَحْتَاجُ الْاِمَامُ اِلٰى نِيَّةِ الْاِمَامَةِ اِلَّا فِىْ حَقِّ النِّسَآءِ وَاَمَّا الْمُقْتَدِىْ فَيَنْوِى الْاِقْتِدَآءَ وَلَايَكْفِيْهِ نِيَّةُ الْفَرْضِ وَالتَّعَيُّنِ وَاِنْ نَوٰى الْاِقْتِدَآءَ بِالْاِمَامِ وَلَمْ يُعَيِّنِ الصَّلٰوةَ يُجْزِيْهِ وَكَذَا اِذَاقَالَ نَوَيْتُ اَنْ اُصَلِّيَ مَعَ الْاِمَامِ يَجُوْزُ وَاِنْ نَوٰى صَلٰوةَ الْاِمَامِ وَلَمْ يَنْوِى الْاِقْتِدَآءَ بِهِ لَايُجْزِيْهِ وَكَذَا اِذَاقَالَ نَوَيْتُ اَنْ اُصَلِّيَ مَعَ الْاِمَامِ وَاِنْ نَوٰى الشُّرُوْعَ فِىْ صَلٰوةِ الْاِمَامِ فَقَدِاخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ يُجْزِيْهِ وَاِنْ نَوٰى الْجُمُعَةَ وَلَمْ يَنْوِى الْاِقْتِدَآءَ جَازَ عِنْدَ الْبَعْضِ وَاِنْ نَوٰى الْاِقْتِدَآءَ بِالْاِمَامِ وَلَمْ يَخْطُرْ بِبَالِهِ مَنْ هُوَ صَحَّ وَاِنْ نَوٰى الْاِقْتِدَآءَ بِالْاِمَامِ وَهُوَ يَظُنُّ اَنَّهُ زَيْدٌ فَاِذَا هُوَ عَمْرٌ

وَصَحَّ اِلَّا اِذَاقَيَّدَ وَقَالَ اِقْتَدَيْتُ بِزَيْدٍ اَوْنَوَى الْاِقْتِدَاء بِزَيْدٍ فَاِذَا هُوَ عَمْرٌ فَاِنَّهُ لَايَصِحُّ.

**ژباړه**: امام ته د ښځو څخه علاوه د نیت د امامت حاجت نسته او مقتدی به د اقتداء نیت کوي، د دې لپاره د فرض نیت او تعین کافی نه دی که چېرې یې فقط د امام د اقتداء نیت وکړ او لمونځ معین نه کړي نو جائز دی، دغه ډول چې کله دا روایې چې ما نیت کړی دی چې د امام سره لمونځ کوم نو جائز دی که چېرې یې فقط د صلوٰة امام نیت وکړ او د هغه د اقتداء نیت نه وکړي نو کافی نه دی او که چېرې د امام سره د لمانځه د شروع کولو نیت وکړي نو په دې کې د علماء وو اختلاف دی او اصح داده چې کافي کیږي که څه هم د جمعې نیت یې وکړ او د اقتداء نیت یې نه وکړ نو د ځینو علماؤ په نِز جائز دی که چېرې یې د اقتداء بالامام نیت وکړ بغیر د پرواه کولو چې دا څوک دی نو صحیح دی، که چېرې اقتداء بالامام په نیت کولو کې یې دا خیال وکړ چې هغه امام زید دی مګر هغه عمر وو نو صحیح دی مګر دا چې اقتداء یې داسې مقیده کړي وي چې ما د زید اقتداء وکړه یا په یقیني ډول د زید داقتداء نیت وکړي نو هغه عمر وي نو دا نه دی درست.

**تشریح**: د امام لپاره د لمانځه د نیت څخه علاوه د امامت نیت جلا کولو ضرورت نسته تر دې پورې که چېرې څوک په منفرد ډول لمونځ وکړي او څوک د هغه اقتداء وکړي نو جائز دی مګر د ښځو لپاره په خاص ډول یا په عمومي ډول چې زه د هر مرد او عورت امام یم لازم دی ولې چې د ښځې په لمانځه کې د شمولیت په وجه کله کله د محاذاة په صورت کې د نر لمونځ باطلیږي، اوس دا یو ضرر دی او د امام د نیت بغیر په دې باندې د دې ضرر لزوم نه سي کیدی، البته د مقتدي لپاره دوه نیته ضروري دي چې یو د لمانځه او بل د امام د اقتداء که چېرې د لمانځه د نیت بغیر

فقط داسي ووايي چي د امام سره لمونځ کوم نو د ځينو علماء وو په نز جائز دی مصنف رحمه الله دغه قول اختيار کړی دی او صاحب کبيري په حواله د قاضيخان عدم جواز ته ترجيح ورکړي ده که چېري د جمعي په لمانځه کي بغير د اقتداء د نيت يکښي داخل سو نو د مختار قول مطابق جائز دی ولي چي د نماز جمعه تصور بغير د امام څخه نسي کېدی نو صرف د جمعي نيت اقتداء مستلزم دی، د کوم سړي شاته چي اقتداء کيږي د هغه معلومول ضروري نه دي البته که چېري يو سړی د يو خاص سړي د اقتدا کولو په نيت ودرېدی مګر وروسته معلومه سوه چي دا هغه سړی نه دی د کوم د اقتدا چي ما نيت کړی وو نو دا لمونځ د ده لپاره جائز نه دی چي نيت د يو داسي سړي سره مقيد دی چي حقيقتًا د هغه امام نه دی نو دا سړی د موجود امام مقتدی نه سو ثابت.

وَالْاَفْضَلُ اَنْ يَّنْوِیَ الْاِقْتِدَآءَ بَعْدَ مَاقَالَ الْاِمَامُ اَللهُ اَکْبَرُ لِيَصِيْرَ مُقْتَدِيًا بِمُصَلٍّ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَلَوْنَوَى الْاِقْتِدَآءَ حِيْنَ وَقَفَ الْاِمَامُ مَوْقِفَ الْاِمَامَةِ جَازَ وَلَوْنَوَى الشُّرُوْعَ فِیْ صَلٰوةِ الْاِمَامِ وَكَبَّرَ عَلٰی ظَنٍّ اَنَّهُ قَدْ شَرَعَ وَهُوَ لَمْ يَشْرَعْ بَعْدُ لَمْ يَجُزْ شُرُوْعُهُ وَمَنْ صَلّٰی سِنِيْنَ وَلَمْ يَعْرِفِ النَّافِلَةَ مِنَ الْفَرِيْضَةِ اِنْ ظَنَّ اَنَّ الْكُلَّ فَرِيْضَةٌ جَازَوَاِنْ لَّمْ يَعْلَمْ لَايَجُوْزُ وَاِنْكَانَ الرَّجُلُ شَاكًّا فِیْ بَقَآءِ وَقْتِ الظُّهْرِ فَنَوٰى ظُهْرِ الْوَقْتِ فَاِذَا الْوَقْتُ كَانَ قَدْ خَرَجَ يَجُوْزُ بِنَاءً عَلٰی اَنَّ الْقَضَاءَ بِنِيَّةِ الْاَدَآءِ وَالْاَدَآءُ بِنِيَّةِ الْقَضَاءِ يَجُوْزُ وَهٰذَا هُوَ الْمُخْتَارُ كَذَا ذَكَرَهُ فِي الْمُحِيْطِ وَلَوْنَوٰى فَرْضَ الْيَوْمِ يَجُوْزُ بِلَا خِلَافٍ وَاِنْ لَمْ يَعْلَمْ بِخُرُوْجِ الْوَقْتِ وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ وَنَوٰى اَنَّ هٰذَا مِنْ ظُهْرِ يَوْمَ الثُّلٰثَآءِ فَتَبَيَّنَ اَنَّ ذٰلِكَ مِنْ يَوْمِ الْاَرْبَعَاءِ جَازَ ظُهْرُهُ وَالْغَلَطُ فِیْ تَعْيِيْنِ

الوَقْتِ لَایَضُرُّ وَلَوْ شَرَعَ فِیْ صَلٰوةٍ مَّاعَلَیْهِ بِظَنٍّ اَنَّهَا سَبْتِیَّةٌ فَاِذَاهِیَ اَحَدِیَّةٌ لَاتَصِحُّ وَلَوْشَرَعَ فِیْ صَلٰوةٍ عَلٰی ظَنٍّ اَنَّهَا اَحَدِیَّةٌ فَاِذَاهِيَ سَبْتِیَّةٌ تَصِحُّ.

**ژباړه:** بهتره داده چي د اقتداء نیت د امام د الله اکبر د ویلو وروسته وکړي د دې لپاره چي د لمونځ کونکي شاته د اقتداء کولو والا سي دغه ډول په محیط کي ذکر دي، که چېري د اقتداء نیت د امام په موقف کي د درېدلوپه وخت کي وکړي نو جائز دی که یې د امام د لمانځه د شروع کولو په وخت کي نیت وکړ او په دې خیال یې تکبیر ووایه چي امام شروع کړي ده او هغه تر اوسه پوري شروع نه وه کړي نو د مقتدي شروع نه ده جائز، او کوم چا چي په کلو کلو لمونځ وکړ او د نوافلو فرق د فرائضو څخه یې نه سوی کوی که چېري یې دا ګمان وي چي دا ټول فرائض دي نو جائز دی او که دا نه پیژني نو جائز نه دی، که د چا د ماپښین د لمانځه په باره کي شک وي چي وخت پاته دی بیا یې د ماپښین نیت وکړ مګر وخت وتلی وو نو بناء د دې لپار ه جائز دی چي د قضاء اداء په نیت سره او د اداء قضاء په نیت سره جائز دی او دغه مختار قول دی، دغه ډول په محیط کي ذکرسوئ دي که چېري د دغه ورځي د فرائضو کولو نیت یې وکړ نو بلا اختلافه جائز دی که څه هم د وخت وتل معلوم نه وي او چاچي د ماپښین لمونځ په دې نیت سره وکړ چي دا د سي شنبې د ورځي ماپښین دی مګر وروسته معلومه سو چي دا د چارشنبې د ورځي ماپښین دی نو د هغه د ماپښین لمونځ جائز دی، او د وخت په تعین کي غلطي تاوان نه کوي، که چېري په ذمه باندي لازم شده لمونځ یې په دې خیال سره شروع کړ چي دا د هفتې د ورځي لمونځ دی مګر هغه د یک شنبې د ورځي لمونځ وو نو درست نه دی، که چېري یې په دې ګمان سره وکړ چي د یک شنبې د ورځي لمونځ دی او هغه د هفتې د ورځي وو نو جائز دی.

**تشریح**: د صاحبینو رحهما الله د قول په بیان کولو سره مصنف رحمه الله وایي چي بهتره داده چي د امام د تکبیر د فراغت څخه وروسته مقتدی تکبیري تحریمه ووایي مگر حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله وایي چي د مقتدي تکبیر د امام سره پیوست پکار دی یعنی چي کله امام تکبیر شروع کړي نو مقتدي دي هم د دې سره سره خپل ځان د تکبیر څخه فارغه کړي، البته که چا په دې گمان سره د امام شروع کړی ده او حقیقتا تر اوسه امام شروع نه وه کړي نو د دې مقتدي لمونځ نه دی جائز، که چېري څوک د لاعلمي په وجه سره په فرائضو او نوافلو کي فرق نه سي کولای او صرف د خلگو په لیدلو سره د هغوی په مثل لمونځونه ادا کوي مثلاً چي کله خلگ په ماپښین کي شپږ رکعاته سنت مؤکده او څلور رکعاته فرض ادا کوي نو دی هم د هغوی سره لس رکعاته لمونځ پوره کوي نو اوس به کتل کیږي که چېري دا ټوله رکعاتونه د فرض په نیت سره کوي نو جائز دی ولي چي د فرض څخه علاوه نوافل هم د فرائضو په نیت سره ادا کیږي که چېري بالکل په دې رکعاتو کي د فرائضو او نوافلو فرق نه سي کولای یا ټوله د نفل په نیت سره کوي نو جائز نه دی او د دې ټولو لمنځو اعاده کول فرض ده، که چېري څوک وختي لمونځ کوي او د هغه وخت تیر سوی وي د لمونځ او د لمانځه د پوره کولو وروسته معلوم سو چي وخت ختم سوی دی نو د لمانځه قضاء سوه دغه ډول که چېري د لمانځه په مابینځ کي معلوم سي نو بیا دي هم په سوي رکعاتو باندي بنا وکړي د دې لپاره أداء د قضاء د نیت کول او قضاء د اداء په نیت کول جائز دی، که چېري څوک په وخت کي دننه لمونځ ادا کوي مگر د فرض لمانځه د نیت سره سره هغه ورځ یې متعینه کړه چي د هغې لمونځ چي کوي مثلاً د ماپښین د څلور فرض رکعاتو نیت یې داسي وکړ چي زه نن په ورځ د سي شنبې په وخت د ماپښین څلور رکعاته فرض لمونځ ادا کوم مگر وروسته معلومه سوه چي نن خو چار شنبه ده بیا هم دا لمونځ جائز دی ولي چي د

ورځي تعين د نيت څخه نه دی، البته که چېري په فوت شده لمونځو کي د ورځي په تعين کي يي داسي غلطي وکړه چي لمونځ يي مثلاً د يک شنبې ادا کوی مګر نيت يي د هفتې وکړ نو صحيح نه دی ولي چي هغه د داسي ورځي و طرف ته اضافت وکړ چي په هغه ورځ کي د هغه لمانځه وجوب نه وو.

اَلْمُسْتَحَبُّ فِي النِّيَّةِ اَنْ يَّنْوِىَ بِقَلْبِهِ وَيَتَكَلَّمَ بِلِسَانِهِ وَهٰذَا هُوَ الْمُخْتَارُ وَلَوْنَوٰى بِالْقَلْبِ وَلَمْ يَتَكَلَّمَ بِاللِّسَانِ جَازَ بِلَا خِلَافٍ وَالْاَحْوَطُ اَنْ يَّنْوِىَ مُقَارِنًا لِلتَّكْبِيْرِ وَمُخَالِطًا لَهُ كَمَاهُوَ مَذْهَبُ الشَّافِعِيِّ وَذُكِرَ فِي الْاَجْنَاسِ اَنَّ مَنْ خَرَجَ مِنْ مَنْزِلِهِ يُرِيْدُ الْفَرْضَ بِالْجَمَاعَةِ فَلَمَّا اَنْتَهٰى اِلَى الْاِمَامِ كَبَّرَ وَلَمْ تَحْضُرْهُ النِّيَّةُ فِيْ تِلْكَ السَّاعَةِ اِنْكَانَ بِحَالٍ لَوْقِيْلَ لَهُ اَيَّ صَلٰوةٍ تُصَلِّيْ اَمْكَنَهُ اَنْ يُّجِيْبَ مِنْ غَيْرِ تَاَمُّلٍ تَجُوْزُ صَلٰوتُهُ وَاِلَّا فَلَا وَاِنْ تَاَخَّرَتِ النِّيَّةُ وَنَوٰى بَعْدَ التَّكْبِيْرِ لَاتَصِحُّ.

**ژباړه:** په نيت کي مستحب دادی چي په زړه کي نيت او په ژبه تلفظ وکړي او دا بهتره ده که چېري يي صرف په زړه کي نيت وکړ او په ژبه يي تلفظ نه وکړ نو بيا هم بلا خوفه جائز دی او ښه دادی چي د تکبير سره متصل يو ځای نيت وکړي لکه څنګه چي د امام شافعي رحمه الله مذهب دی او په اجناس کي ذکرسوي دي کوم څوک چي د فرض لمانځه په جماعت سره د ادا کولو په نيت ووتی چي کله تر امام پوري ورسيدی نو هغه وخت يي ذهن په نيت کي حاضر نه وو که چېري دا ډول وي چي يو څوک د هغه څخه پوښتنه وکړي چي ته کوم لمونځ کوي نو بغير د څه سوچ او فکر څخه جواب ورکولای سي نو جائز دی که نه وي نو نه دی که چېري د نيت په مؤخر کولو سره د تکبير وروسته يې نيت درست کړ نو صحيح نه دی.

**تشريح:** مصنف رحمه الله وايي چي د نيت په باره کي بهتره داده چي په زړه کي د

مضبوطي ارادې سره په ژبه هم الفاظ ادا کړي مثلاً چي زه د فلاني وخت فرض یا سنت کومه، صاحب هدايي هم دا ډول ویل ښه لیکلي دي که څه هم د علیه السلام مبارک څخه د احرام حج یا عمرې په نورو عباداتو کي په ژبي نیت کول منقول نه دي مگر د نن په دور کي په زړه کي ډېر مشاغل وي نو د ژبي په ذکر سره دلجمعي نصیب کیږي لکه څنگه چي په کبیري کي یې لیکلي دي چي بهتره داده چي زړه په نیت ژبه په ذکر او لاس په رفعي مشغول وي.

وَاَمَّا فَرَائِضُ الصَّلٰوةِ فَثَمَانٍ مِنْهَا سِتَّةٌ عَلَى الْوِفَاقِ وَثِنْتَانِ عَلَى الْخِلَافِ وَهِيَ تَكْبِيْرَةُ الْاِفْتِتَاحِ وَالْقِيَامُ وَالْقِرَاءَةُ وَالرُّكُوْعُ وَالسُّجُوْدُ وَالْقَعْدَةُ الْاَخِيْرَةُ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ وَاَمَّا الْخُرُوْجُ مِنَ الصَّلٰوةِ بِصُنْعِهِ فَفَرْضٌ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ خِلَافًا لَهُمَا وَتَعْدِيْلُ الْاَرْكَانِ فَرْضٌ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ لِحَدِيْثِ بْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاتَجْزِئُ صَلٰوةٌ لَايُقِيْمُ الرَّجُلُ فِيْهَا ظُهْرَهُ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ.

**ژباړه:** د لمانځه فرضونه اته دي د هغوی څخه شپږ اتفاقي او ۲ اختلافي دي او هغه تکبیر تحریمه، ولاړه، قرآئت، رکوع، سجوده او د تشهد په مقدار اخیره ناسته ده او خروج بفعل المصلی د ابوحنیفه رحمه الله په نز فرض دي په خلاف د صاحبینو او تعدیل د ارکانو د امام ابویوسف رحمه الله په نز بنا برحدیث ابن مسعود رضي الله عنه وه، دی وایي چي علیه السلام ویلي دي چي هغه لمونځ نه دی کامل چي په هغه کي انسان خپل ملا په رکوع او سجودو کي نه برابره وي.

**تشریح:** د لمانځه ارکان د کومو څخه چي د لمانځه وجود مرکب دی هغه اته ۸ دي او د هغو څخه شپږ ٦ زموږ د آئمه کرامو په مابینځ کي اتفاقي دي او په دوو کي د هغوی په مابینځ کي اختلاف دی، مصنف رحمه الله اول په اجمالي توگه ټوله بیان کړي

دي يا د هر ركن جلا جلا تفصيل بيانوي البته دا خبره قابل ذكر ده چي كه څه هم ډيرو مصنفينو تكبيري تحريمه په اركانو كي ذكر كړي ده مګر زيات صحيح دادی چي دا ركن نه دی بلكي د لمانځه د شرائطو څخه دی په دغه باندي صاحب هدايي تصريح كړي ده د امام شافعي رحمه الله په نِز هم تكبيري تحريمه ركن دی، فايده د اختلاف دا ده چي زموږ په نِز تكبري تحريمه د شرط په وجه د فرض په تحريمي سره نفل ادا كول جائز دي او د امام شافعي رحمه الله په نِز د ركن كيدو په وجه د فرض په تحريمي سره نفل ادا كول نه دي جائز.

وَلَادُخُولَ فِي الصَّلٰوةِ اِلَّا بِتَكْبِيْرَةِ الْاِفْتِتَاحِ وَهِيَ قَوْلُهُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَوِاللّٰهُ الْاَكْبَرُ اَوِ اللّٰهُ الْكَبِيْرُ اَوِ اللّٰهُ كَبِيْرٌ وَاِنْ قَالَ بَدَلاً عَنِ التَّكْبِيْرِ اَللّٰهُ اَجَلُّ اَوْ اَعْظَمُ اَوِالرَّحْمٰنُ اَكْبَرُ اَوْلَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ اَوْتَبَارَكَ اللّٰهُ اَوْ غَيْرُهُ مِنْ اَسْمَآءِ اللّٰهِ تَعَالٰى اَجْزَاهُ ذٰلِكَ عَنِ التَّكْبِيْرِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ وَاَبِيْحَنِيْفَةَ وَلَوِافْتَتَحَ بِاَللّٰهُمَّ اَوْقَالَ يَااللّٰهُ يَصِحُّ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ اَوْ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ اَوْقَالَ اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ اَوْ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَوْلَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ اَوْمَاشَآءَ اللّٰهُ لَايَصِحُّ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُ يَصِيْرُ شَارِعًا عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَفِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ لَايَصِيْرُ شَارِعًا وَاِنْ قَالَ اَللّٰهُ اَكْبَارُ لَايُصِيْرُ شَارِعًا وَاِنْ قَالَ فِيْ خِلَالِ الصَّلٰوةِ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ لِاَنَّهُ اسْمُ الشَّيْطَانِ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُ اَكْبَرُ بِالْكَافِ الضَّعِيْفِ اِخْتَلَفَ فِيْهِ الْبَصْرِيُّوْنَ وَالْكُوْفِيُّوْنَ وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ يَصِيْرُ بِهٖ شَارِعًا وَلَوْ اَدْخَلَ الْمَدَّفِيْ اَلِفِ اَللّٰهُ كَمَا فِيْ قَوْلِهٖ تَعَالٰى ءٰ اللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ عِنْدَ اَكْثَرِ الْمَشَايِخِ وَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ اِنْكَانَ لَايُمَيِّزُ بَيْنَهُمَا لَاتَفْسُدُ.

**ژباړه:** په لمانځه کي صرف په تکبیري تحریمي سره داخلیدل دي او هغه د لمونځ کونکي قول الله اکبر، الله اکبر، الله الکبر یا الله کبیر دی که چېري د تکبیر په بدل کي د نورو نومو څخه یې یو ذکر کړ نو د دې لپاره د طرفینو رحهماالله په نِز د تکبیر سره کافي دی.

او که چېري اللهم یا الله یي ووایه نو صحیح دی او که اللهم اغفرلی یا اللهم ارزُنی یا اَستَغفِرُالله یا اعوذ بالله یا لاحول ولا قوة الابالله یا ما شاء الله یي ووایه نو صحیح نه دی او که چېري یي الله ووایه نو د ابوحنیفه‌رحمه‌الله په نِز شروع کونکی او په ښکاره مذهب کي شروع کونکی نه دی او که چېري یي الله اکبار ووایه نو شروع کونکی نه سو، که یي د لمانځه په مابینځ کي وویل نو لمونځ فاسد سو ولي چي دا د شیطان نوم دی او که چېري الله اکبر په کافِ ضعیف سره ووایي نو په دې کي د بصریانو او کوفیانو اختلاف دی او اصح دادی که چېري شروع کونکی د الله اکبر په الف کي یي مداخل کړ لکه څنګه چي د الله تعالی په قول" اللّٰهُ اَذِنَ لَکُم "کي دی نو د اکثرو علماؤ په نِز د هغه لمونځ فاسدیږي او محمد بن مقاتل‌رحمه‌الله ویلي دي که چېري داسي وي چي په مد او بغیر د مد کي فرق نه سي کولای نو نه فاسدیږي.

**تشریح:** په دې عبارت کي د افتتاح د الفاظو بیان دی چنانچي د طرفینو په نِز په هر هغه لفظ سره لمونځ شروع کول جائز دی چي د الله تعالی په تعظیم باندي دلالت کوي، او امام ابو یوسف رحمه‌الله وایي که چېري په ښه ډول تکبیر ویلو باندي قادر وي نو صرف په درو الفاظو" الله اکبر، الله الاکبر، الله الکبیر "څخه د یوه لفظ سره شروع کول جائز دی تر دې علاوه په هیڅ لفظ سره نه دی جائز، البته که چېري د الله اکبر الفاظ نه سي ویلای نو چي څه راز د هغه سره کیږي د تعظیم معنیٰ دي ادا کړي ولي چي دا سړی د الفاظو څخه علاوه صرف په معنٰی باندي قادر دی، د طرفینو

رحهما الله دليل دادی چي په لغت کي د تکبير معنٰی د تعظيم ده د هغو تهولو الفاظو سره ادا کيږي چي په عظمت الهی باندي دلالت کوي د دې برخلاف که چېري اللهم اغفرلی يا په متن کي مذکوري د نورو دعاوو سره يي لمونځ شروع کړ نو نه دی جائز ولي چي دا الفاظ د هغه د حاجت سره مخلوط دی او خالصتاً د تعظيم لپاره نه دی د دې لپاره په هغوی سره لمونځ شروع کول نه دی جائز، د الله اکبر ب مع الالف ويل جائز نه دی مګر چېري يو لمونځ کونکی ووايي نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی چي لمونځ فاسد سو که نه، صاحب کتاب بار د شيطان د نوم په شمارلو سره د لمانځه د فساد حکم کړی دی صاحب کبرٰی هم دغه قول اصح ګڼلی دی او ځينو علماؤ دا الف الاشباع په ګڼلو سره لمونځ صحيح ګڼلی دی.

وَلَوِ افْتَتَحَ مَعَ الْاِمَامِ وَفَرَغَ مِنْ قَوْلِهِ اَللّٰهُ قَبْلَ فَرَاغِ الْاِمَامِ مِنْ قَوْلِهِ اَللّٰهُ لَايُصِيْرُ شَارِعًا وَلَوْ قَالَ اللّٰهُ مَعَ قَوْلِ الْاِمَامِ اَللّٰهُ اَوْ بَعْدَ وَفَرَغَ مِنْ قَوْلِهِ اَكْبَرُ قَبْلَ فَرَاغِ الْاِمَامِ مِنْ اَكْبَرَ لَايَجُوْزُ اَيْضًا لِاَنَّهُ اِنَّمَا يَصِيْرُ شَارِعًا بِالْكُلِّ فَيَقَعُ الْكُلُّ فَرْضًا وَلَوْ كَبَّرَ قَبْلَ الْاِمَامِ مُقْتَدِيًّابِهِ لَايَصِيْرُ شَارِعًا فِيْ صَلٰوةِ الْاِمَامِ اِتِّفَاقًا وَلَافِيْ صَلٰوةِ نَفْسِهِ وَقِيْلَ يَصِيْرُ شَارِعًا فِيْ صَلٰوةِ نَفْسِهِ وَلَوْ اَنَّهُ كَبَّرَ بَعْدَ مَا كَبَّرَ الْاِمَامُ يَعْنِيْ كَبَّرَ ثَانِيًا وَنَوَى الشُّرُوْعَ وَالْاِقْتِدَآءَ بِهِ يَصِيْرُ شَارِعًا وَقَاطِعًا لِمَا كَانَ فِيْهِ قَبْلَهُ وَالْاَفْضَلُ اَنْ يُكُوْنَ تَكْبِيْرَةَ الْمُقْتَدِيْ مَعَ تَكْبِيْرَةَ الْاِمَامِ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَا يُكَبِّرُ بَعْدَ تَكْبِيْرُ الْاِمَامِ وَاِذَا شَكَّ الْمُقْتَدِيْ اَنَّهُ هَلْ كَبَّرَ قَبْلَ الْاِمَامِ اَوْ بَعْدَ يُحْكَمُ بِاَكْبَرِ رَأْيِهِ فَاِنِ اسْتَوَى الظَّنَّانِ فَاِنَّهُ يَجْزِيْهِ حَمْلًا لِاَمْرِهِ عَلَى الصَّوَابِ.

**ژباړه:** که چېري يې د امام سره افتتاح وکړه او د امام د لفظ الله څخه د فارغيدو

ترمخه هغه د لفظ الله څخه فارغه سو نو په لمانځه کي شروع کونکی نه دی، او که چېري د امام د لفظ الله سره یا وروسته فارغه سو مګر د لفظ اکبر څخه د امام لفظ اکبر ویلو وروسته فارغه سو نو بیا هم لمونځ نه دی جائز ولي چي هغه د دې تولو د الله اکبر څخه د شروع کونکی دی نو دا پوره قول فرض واقع کېږي او که چېري یې د امام څخه ترمخه تکبیر ووایه او د هغه شاته د اقتداء کولو والا سی نو بالاتفاق نه د امام په لمانځه کي شروع کونکی دی او نه هغه په خپل لمانځه کي شروع کونکی دی، او ویلي یې دي چي په خپل لمانځه کي شروع کونکی سو، که شروع د اقتداء په نیت سره د امام د تکبیر ویلو وروسته دوهم واريې تکبیر ووایه نو اوس د امام په لمانځه کي شروع کونکی او د اول لمانځه قطعه کونکی دی، او افضل دادی چي د مقتدي تکبیر د امام د تکبیر سره سو د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزاو صاحبین وایي چي د امام د تکبیر وروسته افضل دی او چي کله مقتدی په شک کي سي چي هغه د امام څخه دمخه تکبیر ویلی دی یا وروسته نو په غالب ګمان باندي به فیصله کېږي که چېري دواړه طرفه ګمان برابر وي نو په درستګی باندي د حمل کولوسره د هغه لپاره کافي دی.

**تشریح**: مصنف رحمه الله وایي که چېري مقتدی د امام څخه په تکبیر ویلو کي مخکي والی وکړي او د تکبیر الفاظ د امام د فارغیدلو څخه ترمخه ادا کړي نو د هغه لمونځ د امام په اقتدا کي نه دی جائز او نه په خپل لمانځه کي بغیر د اقتداء د هغه لمونځ جائز دی تر هغه وخته پوري که چېري په دې دوران کي هغه قهقه وکړه نو د هغه لمونځ نه سو فاسد ولي چي دا سړی د لمانځه څخه خارج دی او قهقه خارج از نماز ناقص نه ده که چېري دوباره د اقتداء په نیت سره یي تکبیر ووایه نو لمونځ یې صحیح سو ولي چي اول تکبیر یي د امام څخه دمخه ویلی وو او هر فرض چي د امام څخه دمخه ادا کړل سي نو هغه معتبر نه دی د لمانځه څخه نه شمارل کېږي او په

تکبير ويلو کي د امام الهمام ابو حنيفه رحمه الله په نز بهتر دادی چي د مقتدی تکبير د تکبير سره متصل وي ولي چي په دې کي د عبادت وطرف ته ژر او لږ مشقت دی د دې لپاره افضل دی او صاحبين وايي چي بهتر دادی چي د امام د تکبير ورسته مقتدی تکبيري تحريمه ووايي ځکه چي په زړه کي يې څه شک نه سي پاته چي داسي نه وي چي زما د تکبير څخه د مخه د امام تکبير واقع سوی يي که چېري په شک کي ووليږي چي زما تکبير د امام څخه دمخه واقع سوی دی که ورسته نو په غالب گمان دي فيصله وکړي مگر د غالب گمان په ناموجودگی کي ښه دادی چي دوهم وار تکبير ووايي چي شک قطعه سي، دا مسئله هم ذهن نشين کول پکار ده که چېري امام د رکوع لپاره کښته سو نو مقتدی چي په دې وخت کي د امام په جماعت کي شريکېدل غواړي د هغه لپاره په رکوع باندي د کښته کېدلو تر مخه په سيده ولاړه باندي تکبيري تحريمه ادا کول شرط دی که چېري د رکوع لپاره دکښته کېدلو ورسته يي وويل نو لمونځ جائز نه دی البته که چېري د کښته کېدو په وخت کي و ولاړه ته نژدې وو نو تحريمه ادا سوه که چېري دومره کښته سو چي د هغه لاس د ځنگنو پوري ورسيدی نو هغه ته رکوع ته قريب ويل کيږي او که چېري يي لاس و ځنگنو ته نه ورسيدی او په دې صورت کي که چېري دويم تکبير چي رکوع ته تللی وو هغه يي نه ووايه نو بيا هم د هغه لمونځ کيږي ولي چي د رکوع تکبير سنت دی او د هغه په پاته کيدلو سره لمونځ نه فاسديږي، صاحب کبيري ليکلي دي چي کله يو سړی د امام د تکبير ويلو ورسته د سورة فاتحي د ويلو تر مخه اول اول د هغه سره په لمانځه کي شريک سي نو هغه ته د تکبير اولی ثواب حاصل دی.

وَالثَّانِيَةُ الْقِيَامُ وَلَوْ صَلَّى الْفَرِيْضَةَ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ لَايَجُوْزُ وَاِنْ عَجَزَ الْمَرِيْضُ عَنِ الْقِيَامِ يُصَلِّيْ قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ فَاِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ الرُّكُوْعَ وَالسُّجُوْدَ

اَوْمٰی بِرَاْسِهٖ لَهُمَا اِیْمَاءً وَجَعَلَ السُّجُوْدَ اَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوْعِ وَلَا يَرْفَعُ اِلٰی وَجْهِهٖ شَيْئًا
يَسْجُدُ عَلَيْهِ لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِمَرِيْضٍ اِذَا قَدَرْتَ اَنْ تَسْجُدَ عَلَى الْاَرْضِ فَاسْجُدْ
وَاِلَّا فَاَوْمِ بِرَاْسِكَ وَلَوْكَانَتِ الْوِسَادَةُ عَلَى الْاَرْضِ فَسَجَدَ عَلَيْهَا جَازَ وَفِي الذَّخِيْرَةِ
فَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُوْدَ اِسْتَلْقٰی عَلٰی ظَهْرِهٖ وَجَعَلَ رِجْلَيْهِ اِلَى الْقِبْلَةِ فَاَوْمٰی بِهِمَا وَاِنِ
اسْتَلْقٰی عَلٰی جَنْبِهِ الْاَيْمَنِ وَوَجْهُهٗ مُتَوَجِّهٌ اِلَى الْقِبْلَةِ وَاَوْمٰی جَازَ فَاِنْ لَّمْ يَسْتَطِعِ
الْاِيْمَآءَ بِرَاْسِهٖ اُخِّرَتْ عَنْهُ وَفِيْ رِوَايَةٍ سَقَطَتْ عَنْهُ وَلَا يُؤْمِيْ بِعَيْنِهٖ وَلَا بِقَلْبِهٖ
وَلَا حَاجِبَيْهِ.

**ژباړه:** دوهم فرض ولاړه ده، پرولاړي باندي د قدرت باوجود که چېري يې په ناسته سره لمونځ وکړ نو نه دی جائز او که چېري ناروغه د ولاړي ځخه عاجزه سي نو په ناسته سره دي رکوع او سجدې سره لمونځ وکړي ،که د رکوع او سجودي طاقت يې نه وي نو د رکوع او سجدې لپاره دي د سر اشاره کوي، سجده دي په نسبت د رکوع کښته کوي او د خپل مخ د طرف ځخه دي يو داسي شی نه پورته کوي چي په هغه باندي سجده وکړي ولي چي علیه السلام و يو ناروغ ته وويل چي کله په مځکه باندي د سجدې طاقت لري نو سجده کوه که نه وي نو په سر سره اشاره کوه، که چېري په مځکه باندي تيکه وي او په هغه باندي سجده وکړي نو جائز دی او په ذخيره کي راغلي دي که چېري د ناستي طاقت هم نه لري نو پر خپل ملادي پريوزي او پښې دي د قبلې وطرف ته وغوړه وي نو د رکوع او سجودې لپاره دي اشاره کوي او که چېري په راسته اړخ پريوتی او مخ يې د قبلې و طرف ته کولو سره اشاره وکړه نو جائز دی که د اشارې طاقت هم نه لري نو د هغه ځخه لمونځ موخر کړل سوی دی

او په يوه روايت کي دي چي د هغه څخه ساقط دی، او نه دي په خپل سترګو، نه په زړه او نه په وريځو سره اشاره کوي.

**تشريح**: ولاړه هم د لمانځه د فرائضو څخه ده او بلاعذره د دې پرې ښوول جائز نه دي مګر ناروغه انسان چي کله په ولاړه قدرت نه لري يا په ولاړه کي د صحت يا بی تاخير يا د ضعف شديد لاحق کيدلو خوف وي نو ولاړه پرې ښوول جائز دي ولي چي عليه السلام عمران بن حصين ته چي د هغه د بواسير مرض وو ويلي وه چي په ولاړه لمونځ کوه، که يې ته د دې استطاعت نه لري نو په ناسته يې وکړه، که بيا يې استطاعت نه وي نو په اړخ په پروتي سره يې وکړه په دې حال کي چي ته اشاره وکړي او د سجدې لپاره يو شی د مخ څخه پورته کول صحيح نه دي ولي چي عليه السلام يو ناروغه سړي ته داسي ويلي وه که چېري ته پر مځکه باندي د سجدې کولو قدرت لرې نو سجده وکړه که نه وي نو په خپل سر سره اشاره وکړه د دې حديث مبارک څخه دا خبره څرګنديږي چي د عذر په صورت کي سجده په اشارې سره کافي ده، البته که چېري په سر لاندي کولو سره په مځکي پرتې تکيه باندي سر لګوي نو جائز دی ولي چي په سر لاندي کولو سره اشاره سوي ده، که چېري د ناروغ د ناستي طاقت هم نه وي نو پر خپل ملا بانديدي پريوزي او پښې د قبلې وطرف ته وغوړوي د رکوع او سجودي اشاره دي وکړي، که ناروغ پر اړخ پريوزي په اشاره سره لمونځ وکړي او د هغه مخ د قبلې وطرف ته وي نو دا هم جائز دی البته د احنافو په نِز د ابن عمر د روايت په وجه په ستوني ستغ پروتي سره لمونځ ادا کول اولیٰ دی، که چېري ناروغي دومره زياته سوه چي د سر په اشارې سره يې هم قدرت نه درلودی نو لمونځ مؤخر کولی سي او په زړه سترګو او وريځو سره اشاره کول کافی نه دي ولي که چېري د سر څخه علاوه په دې اعضاء وو سره اشاره کول کافي وای نو عليه السلام مبارک به ضرور هغه پخپل قول مبارک کي بيان کړي وای، او د اصح قول

مطابق د جوړوالي وروسته د هغه لمونځو قضاء فرض ده که څه هم د يوې ورځې او
شپې څخه زيات وي په دې شرط سره چې په دا حالت کي ناروغ په هوښ کي وي.

ثُمَّ اِذَا بَرِءَ نَظَرَ اِنْ كَانَ يَعْقِلُ الصَّلٰوةَ حَالَةَ الْمَرَضِ وَالْعُجْزِ عَنِ الْاِيْمَآءِ فَاِنَّهٗ يَلْزَمُهُ الْقَضَآءُ اَكْثَرَ مِنْ يَّوْمٍ وَّلَيْلَةٍ سَقَطَتْ عَنْهُ وَاِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ دُوْنَ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ عِنْدَنَا وَذُكِرَ فِى الذَّخِيْرَةِ اِذَا قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ وَالرُّكُوْعِ دُوْنَ السُّجُوْدِ لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ وَعَلَيْهِ اَنْ يُّصَلِّيَ قَاعِدًا بِالْاِيْمَآءِ وَاَكْثَرُ الْمَشَايِخِ عَلٰى اَنَّهٗ مَخَيَّرٌ اِنْ شَآءَ صَلّٰى قَائِمًا بِالْاِيْمَآءِ وَاِنْ شَآءَ صَلّٰى قَاعِدًا بِالْاِيْمَآءِ.

**ژباړه:** د جوړوالي وروسته دې وګوري که چېري د ناروغۍ په دوران کي په اشاره کولو سره خپل عجز ګڼي نو پر هغه باندي د اول روايت مطابق قضاء لازمه ده که نه وي نو نه ده لازمه، لکه څنګه چي په بې هوښۍ کي د يوې ورځې شپې څخه کم وي، او که چېري بې هوښي ديوې شپې او ورځې څخه زياته وي نو د هغه څخه لمونځ ساقط دی که د رکوع او سجدې څخه علاوه صرف په ولاړې باندي قادر وي نو زموږ په نز پر هغه باندي ولاړه نه ده لازمه، په ذخيره کي ذکرسوي دي چي کله د سجدې څخه علاوه صرف په ولاړې او رکوع باندي قادر وي نو پر هغه باندي ولاړه نه ده لازمه او هغه په ناستي سره په اشارې باندي لمونځ کوی سي ، د ټولو علماء په دې باندي اتفاق دی چي هغه ته اختيار دی که په ولاړې باندي په اشاره سره لمونځ کوي او که په ناستي په اشاره سره يې ادا کوي.

**تشريح:** چي څه وخت لږ هم د سر په اشارې باندي قادر سي نو د ناروغۍ په دوران کي دي په پاته سوو لمونځو کي دي غور وکړي که چېري په هغه دوران کي د هغه هوش و حواس برابر وي او دومره پوهېږي چي د لمانځه وخت دی مګر زه د خپل بې

وسي په وجه لمونځ نه سم کولای نو پر هغه باندي د پاته سوي لمونځو قضاء لازمه ده، په اول روايت کي يعني د هغه روايت په مطابق په کوم کي چي دا ويل سوي دي چي د هغه ځخه لمونځ مؤخر دی نو د هغه ځخه نه دی ساقط او که چېري د لمانځه په وخت کي د لمانځه څه خبر نه لري په څه نه پوهيږي نو د يوې ورځي او شپې ځخه زيات د بې هوښۍ په مثل کيدلو سره د هغه لمونځ ساقط دی، که يوسړی داسي ناروغه وي چي هغه پرولاړي باندي قادر وي مګر په رکوع او سجدې کولو باندي قدرت نه لري نو پر هغه باندي ولاړه نه ده لازمه بلکي هغه دي په ناستي او په اشارې سره لمونځ وکړي ولي چي ولاړه فقط په غرض سره رکن دی چي هغه د سجدې د اداکېدو وسيله ده نو ځکه د ولاړي وروسته په سجده کولو کي انتهايي تعظيم دی چي کله د ولاړي وروسته سجده نه وي هغه ولاړه رکن نه دی، او ناروغ يعني لمونځ کوونکي ته د ولاړي او نه ولاړي اختيار حاصل دی افضله داده چي په سجده او رکوع کي اشاره وکړي ولي چي په ناسته د سجدې په اشاره کولو کي د حقيقي سجدې سره زيات مشابهت دی د دې لپاره په ناستي سره د سجدې د اشاره کولو په وخت کي د لمونځ کونکی سر ومځکي ته زيات نيژدی دی په نسبت د ولاړي.

رَجُلٌ فِيْ حَلْقِهٖ جِرَاحَةٌ تَسِيْلُ اِذَا صَلّٰى بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ يُصَلِّيْ قَاعِدًا بِالْاِيْمَآءِ شَيْخٌ كَبِيْرٌ اِذَا قَامَ فِي الصَّلٰوةِ سَلِسَ بَوْلُهٗ اَوْكَانَ بِهٖ جِرَاحَةٌ تَسِيْلُ وَاِنْ جَلَسَ لَاتَسِيْلُ فَاِنَّهٗ يُصَلِّيْ جَالِسًا وَكَذَا لَوْ سَجَدَ سَالَ بَوْلُهٗ اَوِانْفَلَتَ رِيْحُهٗ يُصَلِّيْ قَاعِدًا بِالْاِيْمَآءِ وَلَوْكَانَ بِحَالٍ لَوْصَلّٰى قَاعِدًا يَسِيْلُ وَلَوْ صَلّٰى مُسْتَلْقِيًا لَايَسِيْلُ يُصَلِّيْ قَآئِمًا بِرُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ وَلَوْ بِحَالٍ لَوْصَلّٰى قَآئِمًا ضَعُفَ عَنِ الْقِرَآءَةِ يُصَلِّيْ قَاعِدًا بِقِرَاءَةٍ يَعْنِي الشَّيْخُ الْفَانِيْ الَّذِيْ لَايَقْدِرُ عَلَى الْقِرَاءَةِ بِالْقِيَامِ اَصْلًا وَلَوْكَانَ بِحَالٍ لَوْ صَلّٰى مُنْفَرِدًا يَقْدِرُ

عَلَى الْقِيَامِ وَلَوْ صَلّٰى وَلَوْكَانَ بِحَالٍ لَوْ صَلّٰى مُنْفَرِدًا يَقْدِرُ عَلَى الْقِيَامِ وَلَوْ صَلّٰى مَعَ الْإِمَامِ لَايَقْدِرُ يَشْرَعُ قَآئِمًا ثُمَّ يَقْعُدُ فَإِذَاكَانَ وَقْتُ الرُّكُوْعِ يَقُوْمُ وَيَرْكَعُ ثُمَّ الْمَرِيْضُ يَقْعُدُ فِي الصَّلٰوةِ مِنْ اَوَّلِهَا اِلٰى اٰخِرِهَا كَمَايَقْعُدُ فِي التَّشَهُّدِ وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى.

**ژباړه**: د يو سړي په حلق كي داسي زخم دی چي د ركوع او سجدې په وخت كي بهيږي نو په ناستي او اشارې سره دي لمونځ وكړي، يو سپين ږری سړی چي كله په ولاړي سره لمونځ كوي نو د هغه بولي جاري كيږي يا يې زخم بهيږي په ناسته سره نه بهيږي نو هغه دي په ناستي سره لمونځ كوي، دغه ډول چي سجده كوي نو د هغه بولي جاري كيږي يا د هغه هوا وزي نو په ناسته سره د اشارې لمونځ دي وكړي، او كه چيري داسي وي چي په ناستي بهيږي او په پروتي سره نه بهيږي نو دي په ولاړي د ركوع او سجدې سره لمونځ وكړي، كه په ولاړي سره لمونځ كوي نو د قرآئت څخه عاجزه كيږي نو دي په ناسته سره لمونځ وكړي د قرآئت سره يعنی ډېر سپين ږری چي په ولاړي سره بالكل په قرآئت قادر نه وي او كه چيري داسي وي چي كله په انفرادي ډول لمونځ كوي نو قادر وي او د امام سره قادر نه وي نو په ولاړ سره د لمانځه شروع كولو وروسته دي كښيني او چي كله د ركوع وخت سي نو دي ولاړ سي او ركوع دي وكړي، ناروغ دي د اول څخه بيا تر اٰخره په لمانځه كي د تشهد په حالت كي كښيني او په دغه باندي فتوٰی ده.

**تشريح**: داسي ناروغي چي په هغه كي په حلق كي زخم وي د ركوع او سجدې په وخت كي د هغه زخم څخهويني يا نوونه يا بل شی بهيږي نو دا سړی په ناسته سره د ركوع او سجدې لپاره په اشاره سره لمونځ كوی سي ولي چي د حدث سره د لمونځ كولو څخه دا بهتر دی چي د عذر په لحاظ كولو سره بغير د حدث په اشاره سره لمونځ وكړل سي البته كه چيري په ناستي سره د يو ناروغ او ضعيف سړي زخم

بهيږي يا يې بولي جاري کيږي يا يې هوا خارجيږي نو د ناستي په ځای دې په ولاړي سره مع الحدث لمونځ وکړي ولي لکه څنګه چي بغير عذر د حدث سره لمونځ نه دی جائز دغه ډول بغير د عذر په پروتي سره لمونځ کول نه دی جائز نو چي کله دواړه برابر سوه نو په ولاړه سره لمونځ کولو کي رکوع او سجده ادا کيدی سي، په خلاف د ناستي چي په نفلي لمانځه کي بغير د څه عذره هم په ناستي سره جائز دی او که دا ډول وي که چيري په ولاړه سره لمونځ وکړي نو قرآئت نه سي ويلی او په ناستي سره په قرآئت قادر وي نو په ناستي سره د لمانځه کولو اجازت دی که د رکوع او سجود سره لمونځ وکړي يا په اشاره سره يي وکړي، که چيري د امام سره په اوږد قرآئت کي ولاړه نه سي کولای او جلا قرآئت سره د ولاړي سره کولای سی نو دي د جماعت لمونځ پريږدي په انفرادي طور دي لمونځ وکړي ولي چي د جماعت سره لمونځ کول سنت دی قرآئت او ولاړه دواړه فرض دي لهٰذا د سنت په وجه فرائض نه سي پريښوولای او کوم څوک چي د ولاړي څخه معذوره سي په ناستي سره لمونځ کوي نو د مفتٰی به قول مطابق د لمانځه د اول څخه بيا تر آخره پوري د هغه د ناستي هيئت په تشهد کي د ناستي په مثل به وي او ځينو علماؤ لمونځ کونکي ته اختيار ورکړی دی چي د سپي د ناستي د ډول څخه علاوه چي کوم راز هغه ته اسانه وي کښينستی سي.

وَفِي الذَّخِيْرَةِ اِمْرَءَةٌ خَرَجَ رَأْسُ وَلَدِهَا وَخَافَتْ فَوْتَ الْوَقْتِ تَوَضَّأَتْ اِنْ قَدَرَتْ وَاِلَّا تَيَمَّمَتْ وَجَعَلَتْ رَأْسَ وَلَدِهَا فِيْ قِدْرٍ اَوْ حُفَيْرَةٍ وَصَلَّتْ قَاعِدَةً بِرُكُوْعٍ وَسُجُوْدٍ فَاِنْ لَمْ تَسْتَطِعْهُمَا تُؤْمِيْ اِيْمَاءً رَجُلٌ شَلَّتْ يَدَاهُ وَلَيْسَ مَعَهُ اَحَدٌ يُوَضِّيْهِ اَوْتَيَمَّهُ فَاِنَّهُ

يَمْسَحُ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ عَلَى الْحَآئِطِ وَيُصَلِّيْ فَانْظُرْ وَتَأَمَّلْ فِيْ هٰذِهِ الْمَسَائِلِ هَلْ تَجِدُ فِيْهَا عُذْرًا لِتَاخِيْرِ الصَّلٰوةِ وَاوَيْلَاهُ لِتَارِكِهَا.

**ژباړه**: په ذخيره کي راغلي دي چي د يوښځي د کوچني سر را ووتی او هغه د لمانځه د فوت خوف لري نو دي اودس وکړي که چيري يي قدرت وي که نه وي نو دي تيمم ووهي د کوچني سر دي په يوه ديګ يا په يوشي کي کښيږدي په ناستي سره دي د رکوع او سجودو سره لمونځ وکړي که چيري د دې دواړو طاقت نه وي نو دي اشاره وکړي، د يو سړي دواړه لاسونه شل سي او د هغه سره يو څوک د اودس يا تيمم ورکولو والا نه وي نو دي خپل مخ او لاس پر ديواله باندي کش کړي او لمونځ دي وکړي، په دې مسائلو کي ښه غور او فکر وکړئ چي د لمانځه په تاخير کي تاته لږ ګنجائش په نظر راځي؟ هاى افسوس او بدبختی د بې لمانځ لپاره.

**تشريح**: د لمانځه د اهميت واضح کولو لپاره مصنف رحمه الله دوه قولونه د ذخيري څخه نقل کړي دي چي د هغو څخه دا اندازه په ښه توګه سره لګولای سي چي: لمانځه د پرې ښوولو عجز پوره سي دا په يو ډول هم نه دی جائز ولي چي ښځي د کوچني د پيدايشت په وخت کي د کوم تکليف او مشقت څخه مخامخ کيږي هغه يې چا نه دی مخفي کړی، مګر په دې وخت کي هم چي کله نفس نه وي جاري سوی نو لمونځ پرې ښودل نه دی جائز ولي چي نفاس د کوچني د پوره پيدائښت وروسته جاري کيږي او د کوچني په يوه حصه ښکاره کيدو سره ښځه په نفساء کي نه شمارل کيږي دغه ډول د دواړو لاسو څخه معذوره انسان چي څه ډول په لمانځه قادر وي لمونځ به کوي او د هغه څخه لمونځ نه دی ساقط، په آخر کي مصنف رحمه الله په بلاعجز لمونځ پريښودنکو باندي د انتهايي افسوس اظهار کړی دی ولي چي د جابر بن عبدالله انصاري رضی الله تعالی عنه څخه روايت دی چي لمونځ پريښودل انسان

کفر ته رسوي، شيخ الحديث محمد زکريا کاندهلوي رحمه الله د لمانځه د فضائلو په باره کي ليکلي دي چي په يوه حديث کي راغلي دي چي په ورځ کي زر لمونځونه کوئ ولي چي په لمونځ پرېښودلو سره انسان کافر کيږي يعني چېري داسي نه وي چي د وريځي په وجه سره وخت نه سي معلوم او لمونځ قضا سي دا هم د لمانځه پرېښودل ارشاد کړل ځومره سخته خبره ده د عليه السلام مبارک چي په لمونځ پرېښودونکي باندي د کفر حکم لګوي ګوانکي علماؤ دا حديث د انکار سره مقيد کړی دی مګر د عليه السلام د ارشاد فکر دومره سخت شی دی چي د چا په زړه کي لږ هم د عليه السلام مبارک وقعت او د نبي د ارشاد اهميت وي د هغه لپاره دا ارشادات ډېر سخت دي تر دي علاوه لويو لويو صحابه کرامو رضي الله عنهم لکه حضرت عمر حضرت عبدالله بن مسعود، حضرت عبدالله بن عباس او داسي نور رضوان الله تعالى عليهم اجمعين مذهب دغه دی چي بلا عذره او په قصداً د لمانځه قضاکونکی کافر دی، اللهم احفظنا منه.

وَاِنْ صَلَّى الصَّحِيْحُ بَعْضَ صَلٰوتِهٖ قَآئِمًا فَحَدَثَ بِهٖ مَرَضٌ اَتَمَّهَا قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ اَوْيُوْمِئُ اِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْهُمَا اَوْ مُسْتَلْقِيًا اِنْ لَّمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُوْدَ وَاِنْكَانَ قَدْ صَلّٰى اَوَّلَ صَلٰوتِهٖ قَاعِدًا لِمَرَضٍ ثُمَّ صَحَّ بَنٰى عَلٰى صَلٰوتِهٖ قَآئِمًا عِنْدَهُمَا وَقَالَ مُحَمَّدٌ يَسْتَقْبِلُ الصَّلٰوةَ وَاِنْ صَلّٰى بَعْضَ صَلٰوتِهٖ بِاِيْمَآءٍ ثُمَّ قَدَرَ عَلَى الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ يَسْتَاْنِفُ بِالْاِتِّفَاقِ.

**ژباړه:** که چېري جوړ سړی په ولاړه سره لمونځ شروع کړي بيا ناروغه سو نو دي په ناسته د رکوع او سجدې سره يا په صورت د عدم قدرت په اشاره سره لمونځ پوره کړي که چېري د ناستي طاقت هم نه يي نو دي په پروتي وکړي او که چېري په اول

کي د ناروغۍ په وجه په ناسته لمونځ وکړي بيا جوړ سو نو د شيخينو رحهما الله په نز په ولاړي سره دي خپل لمونځ پسي پوره کړي او امام محمد رحمه الله وايي چي د سر څخه دي خپل لمونځ وکړي او که چېري يي يو څه لمونځ په اشاره سره وکړ بيا په رکوع او سجده باندي قادر سو نو دې بالاتفاق دي لمونځ د سره را وګرځوي.

**تشريح**: يو صحت مند انسان ته چي کله د لمانځه په دوران کي يو مرض لاحق سي نو څه ډول چي کيدی سي خپل لمونځ دي د خپل طاقت مطابق پوره کړي که څه هم په پروتي وي، او د انتهايي عذر څخه علاوه د لمانځه فاسدول جائز نه دي که چېري د دې عکس سي يعني ناروغ د لمانځه په دوران کي جوړ سي په ولاړه، رکوع، سجده باندي قادر سي نو د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله په نز دا سړی دي په ولاړه خپل لمونځ پوره کړي او فتوی هم د حضراتو شيخينو رحهما الله پر قول ده، امام محمد رحمه الله وايي چي لمونځ به پوره د سره نه کوي البته که چېري يي لږ لمونځ په اشاره سره وکړ بيا جوړ سو نو بالاتفاق په سوي لمانځه باندي بنا نه سي کولای او ټوله لمونځ دي د سره څخه شروع کړي.

وَيَجُوْزُ التَّطَوُّعُ قَاعِدًا بِغَيْرِ عُذْرٍ وَاِنِ افْتَتَحَ التَّطَوُّعَ قَائِمًا ثُمَّ اَعْيٰى فَلَا بَأْسَ لَهُ اَنْ يَّتَوَكَّاَ عَلٰى عَصًا اَوْحَائِطٍ اَوْيَقْعُدُ وَتَجُوْزُ صَلٰوةُ التَّطَوُّعِ عَلَى الدَّآبَّةِ اِيْمَاءً لِلْمُسَافِرِ بِالْاِتِّفَاقِ اِلٰى اَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ دَابَّتُهُ وَلِلْمُقِيْمِ خَارِجَ الْمِصْرِ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَاَبِيْ يُوْسُفَ اَمَّا الْفَرَائِضُ فَتَجُوْزُ اَيْضًا بِالْاَعْذَارِ اللَّتِيْ ذِكَرْنَاهَا فِيْ فَصْلِ التَّيَمُّمِ وَكَذَا شَيْخٌ رَكِبَ دَآبَّةً وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى النُّزُوْلِ اَوِامْرَءَةٌ لَيْسَ مَعَهَا مُحْرِمٌ يُصَلِّيَانِ عَلَيْهَا وَالْمُصَلِّيْ عَلَى الدَّابَّةِ يُؤْمِيْ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ وَيَجْعَلُ السُّجُوْدَ اَخْفَضَ مِنَ الرُّكُوْعِ

كَالْمَرِيْضِ الْمُصَلِّيْ قَاعِدًا بِالْاِيْمَاءِ وَلَوْ سَجَدَ عَلٰى شَيْءٍ وُضِعَ عِنْدَهٗ اَوْسَجَدَ عَلٰى سَرْجِهٖ لَايَجُوْزُ لِاَنَّ الصَّلٰوةَ عَلَى الدَّابَّةِ اِنَّمَا شُرِعَتْ بِالْاِيْمَاءِ وَلَوْكَانَتْ عَلٰى سَرْجِهٖ نَجَاسَةٌ لَاتَمْنَعُ وَقِيْلَ تَمْنَعُ وَلَوْ صَلّٰى فِي السَّفِيْنَةِ قَاعِدًا مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ تَجُوْزُ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَقَالَا لَا تَجُوْزُ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ.

**ژباړه:** نفل بېله څه عذره په ناستې سره کول جائز دي، که چېرې يې په ولاړې سره نفل لمونځ شروع کړ بيا ستړی سو نو د هغه لپاره په امسا يا په دېوال باندې تيکه لګولو يا په ناسته کې هيڅ قباحت نسته، د مسافر لپاره په سوارلۍ باندې په اشارې سره نفل کول بالاتفاق جائز دي که هر طرف ته د هغه د سوارلۍ مخ وي پرواه نه که يې، د مقيم لپاره د ښار څخه د باندې د امام ابوحنيفه رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله په نِز او فرائض هم د عذر په مطابق کوم چې موږ د تيمم په فصل کې ذکر کړل جائز دي دغه ډول چې سپين ږيری کله په سوارلۍ باندې قادر وي او په کښته کېدو نه وي قادر يا ښځه چې د هغې سره محرم نه وي نو دا دواړه دي په سوارلۍ باندې لمونځ وکړي او په سوارلۍ باندې لمونځ کونکی دي د رکوع او سجدې لپاره اشاره وکړي او د سجدې اشاره په نسبت د رکوع دي کښته کوي، لکه څنګه چې ناروغه لمونځ کونکی په ناسته اشاره کوي، که د هغه پروت په يو شي يا يې په زين باندې سجده وکړه نو نه ده جائز ولې چې په سوارلۍ باندې لمونځ په اشاره سره جائز سوی دی او که چېرې په زين باندې نجاست وي نو د لمانځه څخه يې نه منع کوي، ځينو ويلي دي چې منع کوي يې، که چېرې په کښتۍ کې بېله د عذر په ناستې لمونځ وکړي نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز جائز دی، صاحبين وايي چې بلا عذر نه دی جائز.

**تشريح:** که چېرې يو سړی په ولاړې سره نفلي لمونځ شروع کړي او بيا ستړی سو نو په

يو ړ لکړي يا په ديوال باندي تکيه لګول جائز دي، بېله عذره داسي کول مکروه دي، ځکه چي په دې کي بې ادبي ده، دغه دول صاحب د هدايې پر دي باندي تصريح کړي ده او وايي چي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز باندي بېله عذره کښني نستل جائز دي، او د صاحبينو په نز باندي جائز نه دي.

د ښار څخه د باندي په سوارلۍ باندي نفل لمونځ کول جائز دی که د عذر د وجي څخه وي يا بغير د عذر څخه، او مخامخ کېدل د قبلې هم نه دی ضروري کوم طرف ته چي د سواري مخ وي په هغه طرف د مخ کولو سره دي لمونځ جاري وساتي د رکوع او سجودو لپاره دي اشاره کوي لکه څنګه چي د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما عليه السلام په خره باندي په اشاره سره د لمانځه په حالت کي وليدی په دې حال کي چي عليه السلام د خيبر وطرف ته متوجه وو، فرائض بغير د عذر په سواري باندي نه دي جائز او په روانه کښتۍ کي بغير د څه ناروغۍ څخه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز په ناستي سره لمونځ جائز دی مګر په ولاړه سره لمونځ افضل دی ولي چي په روانه کښتۍ کي عموماً سر څرخ کوي او غالب بمنزله د محقق کيږي، د امام يوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نِز نه دی جائز.

وَالثَّالِثَةُ الْقِرَاءَةُ وَهِيَ تَصْحِيْحُ الْحُرُوْفِ بِلِسَانِهِ بِحَيْثُ يُسْمِعُ نَفْسَهُ وَقِيْلَ اِذَا صَحَّ الْحُرُوْفَ يَجُوْزُ وَاِنْ لَّمْ يَسْتَمِعْ نَفْسَهُ وَالْقِرَاءَةُ فَرْضٌ فِيْ جَمِيْعِ رَكْعَاتِ النَّفْلِ وَكَذَا الْوِتْرِ وَفِي الْفَرْضِ فِيْ ذَوَاتِ الرَّكْعَتَيْنِ اَمَّا فِيْ ذَوَاتِ الْاَرْبَعِ فَفَرْضُ الْقِرَاءَةِ اِنَّمَا هُوَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بِغَيْرِ عَيْنِهِمَا وَالْاَفْضَلُ اَنْ يَقْرَءَ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَفِي الْاُخْرَيَيْنِ مُخَيَّرٌ اِنْ شَآءَ قَرَءَ وَاِنْ شَآءَ سَبَّحَ وَاِنْ شَآءَ سَكَتَ وَالْقِرَاءَةُ اَفْضَلُ.

**ژباړه:** دريم فرض قرآئت دی او هغه په ژبه باندي د حروفو داسي تصحيح کول دي

هغه يي خپله واوري، او ويل سوی دي چي کله حروف صحيح ادا کړي نو جائز
دي که څه هم خپله يي نه واوري او قرآئت د نفل لمانځه په ټولو رکعاتو کي فرض
دی او دغه ډول وتر او فرض د دوو رکعاتو په والا کي هم فرض دی او د څلور
رکعاتو والا په لمانځه کي فرض قرآئت بغير د تعينه په دوو رکعاتو کي دی او بهتره
داده چي په اولو دوو رکعاتو کي قرآئت ووايي اوپه اٰخري دوو رکعاتو کي اختيار
دی چي قرآئت ووايي او که تسبيح ووايي يا چپ وي ، او قرآئت ويل افضل دي.

**تشريح:** د لمانځه د فرائضو څخه دريم فرض قرآئت ويل دي مشائخو عظامو د
قرآئت په تعريف کي اختلاف کړی دی امام ابو جعفر هندواني رحمه الله وايي چي په ژبه
باندي د حرف تصحيح کول قرآئت دی ولي چي د قرآئت تعلق صرف د ژبي څخه دی
او اوريدل د غوږو فعل دی د ژبي فعل نهِ دی، اکثرو علماؤ اول قول ته ترجيح
ورکړي ده، په ټولو نوافلو کي قرآئت ويل فرض دي ولي چي د نفلي لمانځه نيت که
څه هم د دوو رکعاتو څخه زيات مثلاً څلور، شپږ يا اته رکعاته يو ځای کړل سي بيا
هم هره شفعه عليحده لمونځ دی تر دې پوري چي کومه شفعه يي فاسده کړه د هغه
قضاء راوړل لازم دي، وتر په ځينو امورو کي د نوافلو او په ځينو کي د فرائضو سره
مشابه دي نو علماء په فرضيت قرآئت د نوافلو مشابهت ته احتياطاً ترجيح ورکړي
ده او د وتر په جمله رکعاتو کي د قرآئت د فرضيت حکم ورکړی دی او دغه ډول کوم
فرض لمونځونه چي صرف دوه رکعاته دي لکه د سهار لمونځ، د جمعې يا د مسافر
لمونځ په هغوی ټولو کي قرآئت ويل فرض دي، او په څلورو رکعاتو فرضو کي او
دغه راز د مابنام په دريو رکعاتو فرضو کي صرف په اول رکعات کي قرآئت ويل
کيږي، امام شافعي رحمه الله وايي چي په ټولو رکعاتو کي قرآئت ويل واجب دي ولي
چي عليه السلام مبارک وويل چي بغير قرآئته لمونځ نسته، او هر رکعات جلا لمونځ
دی، حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چي د الله تعالی قول دی (فَاقْرَؤُا مَاتَيَسَّرَ مِنَ

القُرآنِ) څخه د قرآئت فرض په صيغه د امر ثابت دی او امر د تکرار تقاضه نه کوي چونکي اول رکعات د دوهم رکعات بالکل مشابه دی د دې لپاره چي کله په اول رکعات کي د قرآئت وجوب د عبارت النص څخه دی نو په دوهم رکعات کي د قرآئت وجوب د دلالت النص څخه دی، البته د فرض آخري دوه رکعاته يا د مابنام په دريم رکعات کي مصلي ته اختيار دی چي د قرآئت په مقدار خاموش پاته سي يا درې تسبيحات ووايي يا سورت فاتحه ووايي مگر د سورت الفاتحي قرآئت افضل دی ولي چي عليه السلام مبارک کله کله په پرېښولو سره په دې باندي هميشه توب کړی دی.

وَاَمَّا التَّقْدِيْرُ فَالْفَرْضُ قِرَآءَةُ اٰيَةٍ وَّاحِدَةٍ وَاِنْ كَانَتْ قَصِيْرَةً نَحْوَ قَوْلِهِ تَعَالٰى ثُمَّ نَظَرَ وَهٰذَا عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَعِنْدَهُمَا ثَلٰثُ اٰيَاتٍ قِصَارٍ اَوْ اٰيَةٌ طَوِيْلَةٌ وَاَمَّا اِذَا قَرَءَ اٰيَةً هِيَ كَلِمَةٌ وَاحِدٌ نَحْوُ قَوْلِهِ تَعَالٰى مُدْهَآمَّتٰنِ اَوْحَرْفٌ نَحْوُ ق و ص ون فَقَدِ اخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ لَايَجُوْزُ وَاِنْ قَرَءَ اٰيَةً طَوِيْلَةً نَحْوُ اٰيَةِ الْكُرْسِيِّ وَاٰيَةِ الْمُدَايَنَةِ وَلَمْ يُتِمَّ بَلْ قَرَءَ الْبَعْضَ فِيْ رَكْعَةٍ وَالْبَعْضَ فِي الْاُخْرٰى فَقَدِ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ اَيْضًا وَالْاَصَحُّ اَنَّهُ يَجُوْزُ عَلٰى قَوْلِ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَالَّذِيْ لَايَحْسُنُ اِلَّا اٰيَةً لَايَلْزَمُهُ التَّكْرَارُ عِنْدَهُ وَعِنْدَهُمَا يَلْزَمُهُ التَّكْرَارُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ.

**ژباړه:** مقدار د فرض قرآئت د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نز د يوه آيت دی که څېري کوچنی وي لکه" ثم نظر "دی او د صاحبينو په نِز درې کوچني آياتونه يا يو لوی آيت او چي کله صرف د يوې کلمې قرآئت ووايي لکه څنګه چي د الله تعالی قول" مُدهَامّتٰنِ "يا يو حرف لکه ق، ص، نو په دې کي د مشائخو اختلاف دی او

اصح دادی چې جائز نه دی، که چېري يي لوی آيت ووايه لکه آيت الکرسي او آيت مُداينه او پوره يي نه کړي بلکي يوځه يي په يوه رکعت کي او يوځه يي په دوهم رکعت کي ووايه نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی او اصح دادی چې د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول جائز دی او هغه سړی چې چا ته صرف د يوه آيت څخه زيات نه ياد نه وي نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز پر هغه باندي د دې آيت تکرار لازم نه دی او د صاحبينو په نِز پر هغه باندي درې واره تکرار لازم دی.

**تشريح**: مصنف رحمه الله په دې عبارت کي " مَايَجُوزُ بِهِ الصَّلٰوة "مقدار بيان کولو سره وايي چې د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز د قرآئت ادنٰی مقدار په کوم سره چي لمونځ جائز کيږي يو آيت دی، نو که چېري په دوو کلمو يا په زيات باندي مشتمل وي نو بالاتفاق د امام صاحب رحمه الله په قول باندي جائز دی لکه څنګه چې د باري تعالی قول دی" ثُمَّ نَظَرَ "او که چېري صرف يوه کلمه يا يو حرف وي نو د اصح قول مطابق د امام صاحب رحمه الله پر مذهب لمونځ نه دی جائز. د صاحبينو مقدار مَايَجُوزُ بِهِ الصَّلٰوةُ درې ايٰته دي، لکه څنګه چې آيت الکرسی يا هغه يو آيت په کوم کي چې د قرض (پور) اصول بيان سوي دي کوم ته چې آيهٔ مُداينه ويل کيږي او د قرآن پاک په دريم سپاره کي دی، د صاحبينو دليل دادی چې د کوچني درو آياتو يا د يوه لوی آيت څخه چې هغه ته په عرف عام کي ويونکی د قرآن نه ويل کيږي نو دا که څه هم حقيقتاً قرآن دی مګر په عرف کي له دې څخه په مقدار باندي د قرآن اطلاق نه وسو لهٰذا کوچني درې آياته يا د يو لوی آيت څخه کم قرآئت نه دی کافي. حضرت امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چې د الله تعالی قول " فَاقْرَؤُا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرآنِ " مطلق دی او په دې کي د کوچني او لوی هيڅ تفصيل نسته او د يوه آيت حقيقتاً قرآن کيدل خو ښکاره دی مګر حکماً هم قرآن د دې لپاره دی چې د يوه آيت قرآئت حائضه او د جنب لپاره حرام دی مفتٰی به قول د حضراتو صاحبينو دی ولي چې د هغوی قول پر

احتياط مبنی دی او په عباداتو کي احتياط کول لازم دي.

وَالرَّابِعَةُ الرُّكُوعَ وَهُوَ طَأْطَأَةُ الرَّأْسِهُ قَلِيْلًا وَلَمْ يَعْتَدِلْ اِنْ كَانَ اِلَى الرُّكُوْعِ اَقْرَبُ جَازَ وَاِنْكَانَ اِلَى الْقِيَامِ اَقْرَبُ بِاَنْ لَّمْ يَحْنِ لَايَجُوْزُ رَجُلٌ اِنْتَهٰى اِلَ الْاِمَامِ وَهُوَ رَاكِعٌ فَكَبَّرَ وَهُوَ اِلَى الرُّكُوْعِ اَقْرَبُ فَصَلٰوتُهُ فَاسِدَةٌ رَجُلٌ اَحْدَبُ بَلَغَتْ حُدُوْبَتُهُ الرُّكُوْعَ يَخْفِضُ رَأْسَهُ فِي الرُّكُوْعِ وَذُكِرَ فِي عُيُوْنِ الْفَتَاوٰى اِذَا اَدْرَكَ الْاِمَامَ بَعْدَ مَاسَجَدَ الْاِمَامُ سَجْدَةً فَرَكَعَ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ وَلَوْاَدْرَكَ الْاِمَامَ بَعْدَ مَارَكَعَ وَهُوَ فِي السَّجْدَةِ الْاُوْلٰى فَرَكَعَ وَسَجَدَ لَاتَفْسُدُ لِاَنَّ الزِّيَادَةَ مَادُوْنَ الرَّكْعَةِ غَيْرُ مُفْسِدٌ وَاِذَا رَكَعَ الْمُقْتَدِيْ فَرَفَعَ رَأْسَهُ قَبْلَ اَنْ يَّرْكَعَ الْاِمَامُ لَمْ يُجْزِ الرُّكُوْعُ وَاِنْ اَدْرَكَهُ الْاِمَامُ وَهُوَ فِي الرُّكُوْعِ اَجْزَاهُ وَاِنِ النْتَهٰى اِلَى الْاِمَامِ وَهُوَ رَاكِعٌ فَكَبَّرَ وَ وَقَفَ حَتّٰى رَفَعَ الْاِمَامُ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ لَايُصِيْرُ مُدْرِكاً لِتِلْكَ الرَّكْعَةِ وَرُكْنِيَّةُ الرُّكُوْعِ مُتَعَلِّقَةٌ بِاَدْنٰى مَا يُطْلَقُ عَلَيْهِ اِسْمُ الرُّكُوْعِ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ وَذُكِرَفِ الشَّرْحِ اِنْ لَّمْ يَقُلْ ثَلٰثَ تَسْبِيْحَاتٍ اَوْلَمْ يَمْكُثْ مِقْدَارَ ذٰلِكَ لَايَجُوْزُ رُكُوعُهُ وَكَذٰلِكَ رُكْنِيَّةُ السُّجُوْدِ وَذُكِرَ فِيْ زَادِ الْفُقَهَآءِ اِنَّ اَدْنٰى تَسْبِيْحَا الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ الثَّلٰثُ وَالْاَوْسَطُ خَمْسُ مَرَّاتٍ وَالْاَكْمَلُ سَبْعَ مَرَّاتٍ.

**ژباړه:** څلورم فرض رکوع ده او هغه سر لاندي کول دي که چېري يې په معمولي طور سر لاندي کړ او د ملا سره يې برابر نه کړ نو که د رکوع سره زيات نژدې وي نو جائز دی که چېري د ولاړې سره زيات نژدې وي يعني کښته نه وي نو نه دی جائز،

یو سړی امام ته ورسیدی او هغه په رکوع کي وو بیا یي تکبیر ووایه په داسي حال کي چي د رکوع څخه زیات وو نو د هغه لمونځ فاسد دی یو سپین ږری سړی چي کله د رکوع تر حده پوري کښته سي هغه به خپل سر په رکوع کي لاندي کوي، په عیون الفتاوی کي ذکرسوي دي چي کله امام د سجدي کولو وروسته ونیسي او خپله رکوع او دوې سجدې وکړي نو د هغه لمونځ فاسدیږي، که چیري یې د رکوع وروسته په سجده کي ونیوی بیا یې رکوع او سجده وکړه نو نه فاسدیږي ولي چي د یوه رکعات څخه کوم زیادات مفسد نه دی، چي کله مقتدي د امام څخه تر مخه رکوع وکړه بیا یي د امام د رکوع کولو څخه د مخه سر پورته کړ نو دا رکوع نه ده کافي او که چیري امام هغه د رکوع په حالت کي ونیوی نو کافي ده او که چیري امام ته د رکوع په حالت کي ورسیدی بیایې تکبیر ووایه او ودرېدی تر دې پوري چي امام د رکوع څخه سر پورته کړ نو د رکعات نیونکي نه سو، د امام ابوحنیفه رحمه الله او محمد رحمه الله په نِز د رکوع فرضیت له دومره اندازې سره متعلق دی په کوم کي چي کم از کم د رکوع اطلاق کیدی سي او په شرحه کي ذکرسوي دي که چیري درې تسبیحاته نه وایي یا دومره مقدار نه ودریږي نو د هغه رکوع نه ده جائز او د هغه ډول د سجدې رکنیت دی، په زاد الفقهاء کي ذکر دي چي د رکوع او سجدې کم از کم تسبیحات درې واره دي، او درمیانه پنځه او پوره درجه اووه واره دي.

**تشریح**: د خپل ملا سره سر کښته کول په شریعتِ مطهره کي رکوع ویل کیږي که څه هم د حد اعتدال پوري نه وي رسیدلی مګر دا ضروري ده چي د ولاړي سره نژدې نه وي چي د هغه په باره کي د علماؤ قول فیصله ده، که چیري ملا دومره لاندي کړي چي لاس د ځنګنو پوري ورسیږي نو د ولاړي څخه زیات د رکوع و طرف ته مائل دي او د هغه رکوع اداء او لمونځ جائز دی. که چیري د ضعف یا د مرض په وجه د یو سړي ملا دومره کښته سوي وي چي په حالت د ولاړي هم رکوع کونکی په نظر

راځي نو دا سرې په خپل لمانځه کي چي کله د ولاړهي څخه رکوع ته منتقل کيږي نو دي په سر سره اشاره وکړي او لاسونه دي هم په ځنګنو باندي کښيږدي د دې لپاره چي رکوع ثابته سي که چېري شاته په داسي حالت کي اقتداء وکړي چي امام د هغه رکعات لپاره يوه سجده کړي وي او مقتدی په چسپاندی سره د تکبيري تحريمه کولو وروسته رکوع او سجده کولو وروسته په دوهمه سجده کي د امام سره شريک سي نو د هغه لمونځ فاسد دی ولي چي يو پوره رکعات يې بغير د اقتداء ادا کړ البته که چېري صرف په رکوع کولو سره د امام سره په اوله سجده کي شريک سو نو د دې لپاره فاسد نه دی چي يو پوره رکعات بغير د اقتدا نه سو ادا مګر دا رکعات د لمانځه څخه نه دی او د امام د فراغت وروسته د دې رکعات راګرځول لازم دي، د طرفينو د قول مطابق فقط د سر او ملا کښته کولو ته رکوع ويل کيږي که څه هم د معمولي ساعت لپاره وي او طمانيت فرض نه دی، په شرح الاسبيجابي کي راغلي دي که چېري په رکوع او سجوده کي درې واره تسبيح نه ووايي يا د دې په مقدار نه ودرېدی نو د هغه رکوع او سجده نه سوه ادا مګر دا قول شاذ دی او د دې د بنکاره مذهب احنافو سره هيڅ تعلق نسته ولي چي د خبر واحد يا د قياس په ذريعه په کتاب الله زيادت د علماء احنافو عادت نه دی، د رکوع او سجودې حکم په قرآن مجيد کي مطلق دی، د منفرد لپاره د رکوع او سجودې تسبيحات تر درو څخه زياتول بهتر دي مګر په طاق عدد کي ويل ښکار دي البته د امام لپاره درې واره کافي دي د دې لپاره چي د قوم په ضعفاؤ باندي بوج نه سی.

وَالْخَامِسَةُ السَّجْدَةُ وَهِيَ فَرِيْضَةٌ تَتَأَدّٰى بِوَضْعِ الْجَبْهَةِ وَالْاَنْفِ وَالْقَدَمَيْنِ وَالْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ وَاِنْ وَضَعَ جَبْهَتَهُ دُوْنَ اَنْفِهٖ جَازَ بِالْاِجْمَاعِ اِنْ كَانَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ يُكْرَهُ وَاِنْ وَضَعَ اَنْفَهُ دُوْنَ جَبْهَتَهُ فَكَذٰلِكَ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَقَالَا لَايَجُوْزُ

بِالْاَنْفِ اِلَّا اِذَا كَانَ بِجَبْهَتِهٖ عُذْرٌ وَلَوْ وَضَعَ خَدَّهٗ اَوْذَقَنَهٗ لَايَجُوْزُ وَاِنْ كَانَ مِنْ عُذْرٍ
بَلْ يُؤْمِيْ وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ لَيْسَ بِوَاجِبٍ عِنْدَنَا خِلَافًا لِّزُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ
وَلَوْسَجَدَ وَلَمْ يَضَعْ قَدَمَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ لَايَجُوْزُ وَلَوْ وَضَعَ اِحْدٰهُمَا جَازَ وَلَوْسَجَدَ
بِسَبَبِ الْاِزْدِحَامِ عَلٰى فَخْذِهٖ جَازَ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَاِنْ سَجَدَ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ لَايَجُوْزُ
وَاِنْ سَجَدَ عَلٰى ظَهْرِ رَجُلٍ وَهُوَ فِي الصَّلٰوةِ يَجُوْزُ وَاِنْ سَجَدَ عَلٰى ظَهْرِ رَجُلٍ لَيْسَ فِي
الصَّلٰوةِ لَايَجُوْزُ وَلَوْكَانَ مَوْضِعُ السُّجُوْدِ اَرْفَعَ مِنْ مَوْضِعِ الْقَدَمَيْنِ مِقْدَارَ اللِّبْنَتَيْنِ
مَنْصُوْبَتَيْنِ جَازَ وَاِلَّا فَلَا وَاَرَادَ بِاللِّبْنَةِ لِبْنَةُ بُخَارٰى وَهِيَ رُبْعُ ذِرَاعٍ وَلَوْسَجَدَ عَلٰى
كُوْرِ عِمَامَتِهٖ اَوْفَاضِلِ ثَوْبِهٖ اَوْعَلٰى شَيْءٍ طَاهِرٍ جَازَ عِنْدَنَا خِلَافً لِّلشَّافِعِيِّ وَلَوْ بَسَطَ
كُمَّهٗ اَوْذَيْلَهٗ عَلٰى شَيْءٍ نَجِسٍ فَسَجَدَ عَلَيْهِ لَايَجُوْزُ وَقِيْلَ فِيْ رِوَايَةٍ يَجُوْزُ وَلَوْ وَضَعَ
كَفَّيْهِ اَوْبَسَطَ خِرْقَةً عَلٰى شَيْءٍ طَاهِرٍ لِّلْحَرِّ اَوْلِلْبَرْدِ اَوْ لِلتُّرَابِ وَسَجَدَ عَلٰى ذٰلِكَاجَازَ
وَالْكَلَامُ اِنَّمَاهُوَ فِي الْكَرَاهَةِ وَاِنْ سَجَدَ عَلَى الثَّلْجِ اِنْ لَّمْ يُلَبِّدْهُ وَكَانَ يَغِيْبُ وَجْهُهٗ
وَلَايَجِدُ حُجْمُهٗ لَمْ يَجُزْ وَاِنْ لَبَّدَهٗ جَازَ وَعَلٰى هٰذَا اِذَا اَلْقَى الْحَشِيْشَ فَسَجَدَ عَلَيْهِ اِنْ
لَبَّدَهٗ جَازَوَ اِلَّا وَكَذَا اِذَا سَجَدَ عَلَى التِّبْنِ اَوِ الْمَحْلُوْجِ اِنْ لَّمْ يَسْتَقِرَّ جَبْهَتُهٗ لَايَجُوْزُ
وَلَوْ سَجَدَ عَلَى الْاُرْزِ اَوِ الْجَاوَرْسِ اَوْعَلَى الذُّرَّةِ لَايَجُوْزُ وَلَوْسَجَدَ عَلَى الْحِنْطَةِ اَوِ
الشَّعِيْرِ يَجُوْزُ اَمَّا الْاُرْزُ اَوِ الْمَحْلُوْجُ اِذَاكَانَ فِيْ جَوَالِقَ جَازَ وَسُئِلَ نَصِيْرُبْنُ يَحْيٰى

عَمَّنْ يَضَعُ جَبْهَتَهُ عَلىٰ حَجَرٍ صَغِيْرٍ قَالَ اِنْ وَضَعَ اَكْثَرَ جَبْهَتَهُ عَلَى الْاَرْضِ يَجُوْزُ وَاِلَّا فَلَا كَذَا فِي الْمُحِيْطِ وَاِنْ لَّمْ يَضَعْ رُكْبَتَيْهِ فِي السَّجْدَةِ عَلَى الْاَرْضِ تَجُوْزُ وَهُوَ الْمُخْتَارُ.

**ژباړه:** پنځم فرض سجده ده چي په تندي پوزه، دواړو قدمو، دواړو لاسو او د ځنګنو پر مځکه باندي د ایښوولو سره ادا کیږي که چېري د پوزي څخه علاوه صرف تندی کښیږدي نو بالاجماع جائز ده او بغیر د عذر څخه مکروه ده، که چېري يې د تندي څخه علاوه صرف پوزه کښیښوله نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نِز جائز ده او صاحبینو ویلي دي که څه هم د عذر د وجي څخه وي فقط په پوزي باندي سجده نه ده جائز مګر دا چي د تندې لګولو سره يو عذر مانع وي او که چېري يي رخسار یا زینه ولګوله نو نه ده جائزه او صاحبین وایي که څه هم د عذر په وجه وي بلکي اشاره دي وکړي او دواړه لاسونه او ځنګنونه لګول زموږ په نِز واجب نه دي په خلاف د امام زفر رحمه الله او امام شافعي رحمه الله، که چېري يې سجده وکړه او پر مځکه يي قدمونه نه کښیښوول نو نه ده جائز او که یي يو کښیښووی جائز ده، که د هجوم په وجه يې په خپلو ورنو باندي سجده وکړه نو جائز ده او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دی که چېري يې په ځنګنو باندي سجده ولګوله نو نه ده جائز او که چېري يي د يو بل چا په ملا باندي سجده وکړه چي په لمانځه کي نه وي نو نه ده جائز.

که د ولاړو خښتو په مقدار د سجدې ځای د قدمو څخه پورته وي نو جائز دی که نه وي نو نه دی جائز، او د خښتي څخه مراد د بخار خښته ده چي د ګز څلورمه ده او که چېري د لونګۍ پیچ یا په خپل زائدو کالو یا په يو پاک شي باندي يې سجده وکړه نو زموږ په نِز جائز ده په خلاف د امام شافعي رحمه الله او که چېري يې خپل لستونی یا لمن په يو ناپاک شي باندي وغوړوله او سجده يي وکړه نو نه دی جائز په يوه روایت کي ویل سوي دي چي جائز دی که يي دواړه ورغوي کښیښودل په يو

پاک شي باندي، يو سړي کالي د ګرمي، يخ يا د خاورو څخه د حفاظت لپاره
غوړولـه او په هغه باندي يې سجده وکړه نو جائز ده او اصل خبره په کراهت کي ده،
که چېري په ناسخت کړي يخي يي سجده وکړه او په هغه کي مخ پټېدی او هغه
مضبوط سخت نه وو نو نه ده جائز او په سخت حالت کي جائز ده او په دغه بنا
باندي که چا وانبه واچول او په هغه باندي يې سجده وکړه نو جائز ده که نه وي نو
نه ده جائز، دغه راز که چېري په پروړ يا په پومبې باندي يې سجده وکړه او د هغه
تندي قرار نه راوړی نو نه ده جائز، که يې په وريجو يا باجري يا په مکی باندي
سجده وکړه نو نه ده جائز ، او که يي په غنمو يا په جواري باندي سجده وکړه نو
جائز ده ، وريجي او پومبه چي کله په بوره کي بند وي نو جائز ده، د نصير بن
يحيی رحمه الله څخه د هغه سړي متعلق پوښتنه وکړه چي په کوچنی ډبره باندي تندی
کښېږدي نو ده وويل که چېري يي اکثره تندی پر مځکه باندي کښي ښووی نو جائز
ده که نه وي نو نه ده جائز، دغه ډول په محيط کي راغلي دي که چېري يې په سجده
کي دواړه ځنګنونه پر مځکه باندي نه کښېښوول نو جائز ده او دغه قول متخار هم
دی .

**تشريح**: مصنف رحمه الله په دې عبارت کي د سجدې کيفيت اود احکامو ذکر
کولو سره وايي چي پوزه او په تندي دواړو باندي سجده کول پکار دي مګر که
چېري يي په يوه باندي اکتفا وکړه نو د هغه دوه صورتونه دي ۱ دا چي فقط په تندي
باندي سجده وکړي، ۲ دا چي فقط په پوزه باندي سجده وکړي په اول صورت کي
زموږ د علماؤ احنافو د سجدې په جواز باندي اتفاق دی او په دوهم صورت کي د
امام ابو حنيفه رحمه الله په نز معا الکراهته جائز ده او صاحبينو ويلي دي چي بلاعذره په
پوزه باندي اکتفا کول نه ده جائز، د صاحبينو دليل هغه حديث دی چي په صحاح سته
کي ذکرسوي دي چي حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه وويل چي عليه السلام

ویلي دي، ماته حکم سوی دی چي زه په اووه هډو باندي سجده وکړم په تندي، دواړو لاسو، دواړو ځنګنو او د دواړو قدمو په ګوتو باندي، د دې حدیث څخه ثابتیږي چي پوزه محل د سجدې نه ده د دې لپاره په پوزه اکتفاء کول هم نه ده جائز.

حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله وایي چي په قرآن پاک کي مطلقاً د سجدې کولو حکم سوی دی او سجده په یوڅه مخ ایښوولو سره متحققه کیږي ولي چي د پوره جسم ایښوول ناممکن دي نو یو څه حصه د مخ ایښوول به امور سي، مګر په رخسار او زنه باندي اجماع خارج ده ولي چي په سجدې سره مراد تعظیم دی رخسار او زنه په مځکه باندي په ایښوولو سره تعظیم نه مشروع کیږي، د دې لپاره دا دواړه د سجدې د مفهوم څخه خارج دي اوس صرف پوزه او تندی پاته سوه نو دا دواړه د سجدې محل دي، چونکي په تندي باندي اکتفاء جائز ده نو په پوزه باندي به هم اکتفا کول جائز وي، زموږ په نِز د لاسو او ځنګنو پر مځکه ایښوول مسنون دي، د امام زفر رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نِز واجب دی د هغوی دلیل هغه لوړ ذکر سوی د حضرت ابن عباس رضی الله عنه روایت دی چي علیه السلام ماته په اوو هډو سره د سجدې کولو امر کړی دی او امر د وجوب لپاره وي نو څرګنده سوه چي په سجده کي اووه سر اعضاء په مځکه باندي ایښوول واجب دي، زموږ دلیل دادی چي د لاسو او ځنګنو د ایښوولو بغیر سجده کول ناممکنه ده او مذکور روایت فقط پر دې دلالت کوي چي دا اووه اعضاء د سجدې محل دي او په دې هیڅ دلالت نه کوي چي د هغو ټولو ایښوول پر مځکه باندي واجب دی ولي چي امر هر ځای د وجوب لپاره نه وي البته په سجده کي د دواړو قدمو پر مځکه ایښوول فرض دي که یي سجده وکړه او د پښې ګوتي یي د مځکي څخه پورته کړي نو جائز نه دی او که چیري یي یوه پښه پر مځکه او بله یي پورته کړه نو قاضي خان مع الکراهت جائز شمارلي ده، که یي د رش په وجه پر خپلو ورنو باندي سجده وکړه نو جائز ده ولي چي پر مځکه باندي

ځه حائله سجده کول فرض نه ده البته په ځنګنو په دې وجه سره نه ده جائز په دې سره تندی د ځنګنو وطرف ته واقع کيږي ، د فرض په مقدار وضعه نه پوره دغه ډول که چېري يې د لمونځ کونکي پر ملا باندي سجده وکړه او ساجد د په ملا چي يې سجده وکړه هغه هم دغه يو لمونځ کوي نو جائز ده ولي چي داسي سجده د رش د وجي ځخه جائز ده او رش هغه وخت کيدی سي چي کله ډېر خلګ يو ځای لمونځ ادا کوي، د سجدې ځای چي کله د نصف شرعي ګز برابر د دواړو قدمو ځخه پورته چي د هغه مقدار تقريباً ۹ انچه دی نو جائز دی .

زموږ په نِز د لنګوټې په پيچ يا په زياتو کالو باندي سجده کول جائز دي او د حضرت امام شافعي رحمه الله په نِز د لنګوټي په پيچ سجده کول نه ده جائز ولي چي د هغه په نِز د سجدې په وخت کي د تندي خلاص پاته کيدل واجب دي په عبارت کي مصنف رحمه الله د مختلفو شيانو ذکر کړی دی چي په هغه کي پر ځينو سجده کول جائز او پر ځينو نه ده جائز، د دې متعلق دا قاعده ياده لرل ضروري ده چي سجده پر داسي شي باندي جائز ده چي پر هغه تندی قرار ونيسي که چېري دومره نرم وي چي و تندي ته قرار نه راځي نو سجده جائزه ده. والله اعلم

وَالسَّادِسَةُ الْقَعْدَةُ الْاٰخِيْرَةُ وَقَدْرُ الْفَرْضِ مِقْدَارُ قِرْءَةِ التَّشَهُّدِ وَتَظْهَرُ فَرْضِيَّتُهَا فِيْ هٰذِهِ الْمَسَآئِلِ الْاُوْلٰى رَجُلٌ صَلَّى الظُّهْرَ خَمْسًا وَلَمْ يَقْعُدْ عَلٰى رَأْسِ الرَّابِعَةِ بَطَلَتْ فَرْضِيَّتُهُ وَتَحَوَّلَتْ صَلٰوتُهُ نَفْلًا وَيَضُمُّ السَّادِسَةَ وَالثَّانِيَةُ الْمُسَافِرُ اِذَا اقْتَدٰى بِالْمُقِيْمِ فِيْ فَائِتَةٍ لَايَصِحُّ لِاَنَّ الْقَعْدَةَ الْاُوْلٰى فَرْضٌ فِيْ حَقِّ الْمُسَافِرِ فَيَكُوْنُ كَاقْتِدَاءِ الْمُفْتَرِضِ بِالْمُتَنَفِّلِ وَالثَّالِثَةُ اِذَا تَذَكَّرَ بَعْدَ تَمَامِ الصَّلٰوةِ سَجْدَةَ التِّلَاوَةِ فَعَادَ اِلَيْهَا ارْتَفَعَتِ الْقَعْدَةُ حَتّٰى لَوْلَمْ يَقْعُدْ قَدْرَ التَّشَهُّدِ بَعْدَ مَاسَجَدَ فَسَدَتْ

صَلٰوتُهُ وَ الرَّابِعَةُ اِذَا نَامَ فِي الْقَعْدَةِ الْاَخِيْرَةِ كُلِّهَا فَلَمَّا انْتَبَهَ عَلَيْهِ اَنْ يَّقْعُدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ وَاِنْ لَّمْ يَقْعُدْ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ لِاَنَّ الْاَفْعَالَ فِي الصَّلٰوةِ حَالَةَ النَّوْمِ لَاتُحْسَبُ كَمَا اِذَا قَرَءَ نَآئِمًا اَوْرَكَعَ اَوْ سَجَدَ نَآئِمًا وَهٰذِهِ الْمَسْئَلَةُ يَكْثُرُ وُقُوْعُهَا لَاسِيَمَا فِي التَّرَاوِيْحِ وَالنَّاسُ عَنْهَا غٰفِلُوْنَ.

**ژباړه:** شپږم فرض اخيره ناسته ده او فرض د اندازې د قرآئت تشهد مقدار دی او د دې فرضيت په درج ذيلو مسائلو کي ښکاره کيږي، اوله مسئله دا چي يو سړی د ماپښين پنځه رکعاته وکړي او د څلورم رکعات وروسته نه کښيني نو د هغه فرضيت باطل سو لمونځ يې نفل کيږي او شپږم رکعات دي هم ورسره شامل کړي، دوهمه مسئله داده چي کله مسافر په فوت شده لمانځه کي د مقيم اقتداء وکړي نو صحيح نه ده ولي چي اوله ناسته د مسافر په حق کي فرض ده نو داسي سوه لکه د فرض کوونکي اقتداء د نفل کوونکي وشاته، دريمه مسئله داده چي کله د لمانځه د پوره کولو وروسته سجده د تلاوت په ياد سي او هغه سجده وکړي نو ناسته ختم سوه تر دې پوري که چېري د مقدر د سجدې وروسته نه کښينستی نو يې لمونځ فاسد سو، څلورمه مسئله داده که په پوره اخيره ناسته کي پريوزي نو پر هغه لازمه ده چي په اندازه د التحياته کښيني که چېري نه کښي نستی نو د هغه لمونځ فاسد دی ولي چي د لمانځه په حالت کي د لمانځه سوي افعال په لمانځه کي نه شمارل کيږي لکه څنګه چي د خوب په حالت کي قرآئت يا رکوع يا سجده دا ټول مسائل اکثره واقع کيږي خصوصاً په تراويحو کي او عوام د هغه څخه بي خبره دي.

**تشريح:** د لمانځه په آخير کي چي کومه ناسته ده هغې ته اخيري ناسته ويل کيږي که د هغې څخه د مخه ناسته وي لکه په څلور رکعاتيزه او درې رکعاته لمانځه کي يا

وي لکه په ثنايي لمانځه کي چي د هغه ادئی فرض مقدار دومره دی په کوم چي په
لوار سره د صحيح حروفو سره د التحياتي څخه تر عبده ورسوله پوري تشهد ويل
کيدی سي، مصنف رحمه الله د فرضيت د فايدي د ښکاره کولو لپاره په عبارت کي يو
څو مسائلي ذکر کړي دي او هغه په لاندي ډول دي:

۱: يو سړی چي کله د مابېښين لمونځ يا د هغه په مثل بل څلور رکعاته لمونځ کوي
او د څلورم رکعات په آخير کي د ادا کولو وروسته د کښينستو پر ځای د پنځم
رکعات لپاره ولاړ سي او د سجدې پوري پنځه رکعاته پوره ادا کړي يا مثلاً د سهار
په لمانځه کي د دريم رکعات لپاره يا د ماښام په لمانځه کي د څلورم رکعات لپاره
بغير د اخيري ناستي ولاړ سي او هغه زيات رکعاتونه د سجدې سره مقيد هم کړي نو
د شيخينو رحمهما الله په نز د دې لمانځه وصف د فرضيت باطل سو ټوله لمونځ نفل
سو، په ثنايي او رباعي لمانځه کي د دې رکعاتو سره دې يو بل رکعات هم زيات
کړي که دا نفل لمونځ شفعه سي او يو رکعت د باطل کېدو څخه وساتل سي.

۲: په قضاء سوو لمنځو کي د مسافر اقتداء د مقيم شاته صحيح نه ده او د مسافر
لمونځ چونکي دوه رکعاته دی فقط د دې لپاره چي د هغه په حق کي د دوو رکعاتو
وروسته اخيره ناسته ده او هغه فرض ده نو د مفترض اقتداء د متنفل د شاه سره
مشابه ده او دا د احنافو په نز جائز نه دی دغه ډول په قضاء سوي لمانځه کي د مقيم
شاته نه دی جائز، البته وختي لمونځ د اقتداء پر بنا باندي په متغير کيدو سره
لمونځ د ثاني څخه رباعي کيږي لکه څنګه چي د نيت اقامت په وجه دا تغير ښکاره
ترلمر دی.

۳: که چېري مصلي يعني لمونځ کوونکی د لمانځه ټوله ارکان پوره کړل او
وروسته يي سجده تلاوت په ياد سوه نو د سجده تلاوت ادا کولو وروسته په هغه
باندي د اخيري ناستي راګرځول ضروري دي ولي چي د دې سجدې وخت د اخيري

ناستي څخه ترمخه دی، لهٰذا که چېري چا د سجده تلاوت کولو وروسته سلام وګرځوی او د اخیري ناستي اعاده یي نه وکړه نو د هغه لمونځ فاسد دی ولي چي د لمانځه یو رکن پاته سو .

۴: که چېري چا د خوب په حالت کي اخیري ناسته ادا کړه نو د هغه لمونځ نه دی جائز لکه څنګه چي د ولاړي رکوع او سجودي په باره کي فقهاء کرامو دغه حکم کړی دی ولي چي د خوب په حالت کي ادا سوي ارکان په لمانځه کي نه شمارل کیږي ځکه چي د عبادت لپاره د بنده اختیار ضروري دی او د ویده شخص هیڅ اختیار نسته، مصنف رحمه الله وایي چي دا مسئله اکثره د تراویحو په اوږدو لمونځو کي خلګو ته پیښیږي چي هغه په لمانځه کي ودریږي او بیا هم خپل افعال په لمانځه کي شماري او د هغه افعالو اعاده نه کوي ولي چي هغه د دې حکم څخه ناخبره دي.

وَالسَّابِعَةُ الْخُرُوْجُ مِنَ الصَّلٰوةِ بِفِعْلِ الْمُصَلِّيْ فَرْضٌ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ خِلَافًا لَّهُمَا حَتّٰى اَنَّ الْمُصَلِّيْ اِذَا اَحْدَثَ عَمَدًا بَعْدَ مَاقَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ اَوْتَكَلَّمَ اَوْعَمِلَ عَمَلًا يُنَافِي الصَّلٰوةَ تَمَّتْ صَلٰوتُهُ بِالْاِتِّفَاقِ وَاِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ فِيْ هٰذِهِ الْحَالَةِ فَكَذٰلِكَ عِنْدَهُمَا وَقَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ يَتَوَضَّأُ وَيَقْعُدُ وَيَخْرُجُ عَنِ الصَّلٰوةِ وَيَبْتَنِيْ عَلٰى هٰذَا مَسَائِلُ وَهِيَ الْمُتَيَمِّمُ اِذَا اَرَاَى الْمَآءُ بَعْدَ مَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ اَوْكَانَ مَاسِحًا عَلَى الْخُفِّ فَانْقَضَتْ مُدَّةُ مَسْحِهِ اَوْخَلَعَ خُفَّيْهِ بِعَمَلٍ يَسِيْرٍ اَوْكَانَ اُمِّيًا فَتَعَلَّمَ سُوْرَةً اَوْكَانَ عَارِيًا فَوَجَدَ ثَوْبًا اَوْكَانَ مُؤْمِيًا فَقَدَرَ عَلَى الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ اَوْتَذَكَّرَ اَنَّ عَلَيْهِ صَلٰوةً قَبْلَ هٰذِهِ الصَّلٰوةِ اَوْ اَحْدَثَ الْاِمَامُ الْقَارِئُ فَاسْتَخْلَفَ اُمِّيًا اَوْطَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ اَوْدَخَلَ وَقْتُ الْعَصْرِ وَهُوَ فِيْ صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ اَوْكَانَ مَاسِحًا عَلٰى

الْجَبِيْرَةِ فَسَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ اَوْكَانَ صَاحِبُ عُذْرٍ فَانْقَطَعَ عُذْرُهُ فَفِيْ هٰذِهِ الْمَسَآئِلِ فَسَدَتْ صَلٰوتُهُ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَقَالَا تَمَّتْ صَلٰوتُهُ.

**ژباړه**: د لمونځ كونكي په اختيار فعل سره د لمانځه څخه وتل د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز يو فرض دى، په خلاف د صاحبينو تر دې پوري كه چېري لمونځ كونكى په اندازه د التحياتي د ناستي وروسته خپل ځان قصدًا بې اودسه كړي، يا كلام وكړي يا يې د لمانځه زد څه عمل وكړ نو د هغه لمونځ بالاتفاق كامل دى، كه چېري په دې حالت كي هغه ته بې اودسي پيښه سي نو د صاحبينو په نِز هغه د لمونځ كامل حكم دى او امام ابو حنيفه رحمه الله وايي چي اودس دي وكړي او اخيري ناسته دي وكړي او د لمانځه څخه دي ووزي ، په دغه باندي مسائلي مبنٰى دي او هغه دا چي كله مقيم شخص په اندازه د التحياتي د كښينستلو وروسته اوبه ووېني يا يې په موزو مسحه كړي وي او د هغو وخت پوره سو يا په يو عمل سره يې موزه راويستله يا ناويونكى وو بيايې سورة ايزده كړ يا لڅ وو بيايې كالي پيدا كړه يا اشاره كولو والا وو بيايې په ركوع او سجودو قدرت پيدا كړ يا يې په ياد سو چي د هغه په ذمه د دې لمانځه څخه علاوه يو بل لمونځ پاته دى يا قاري امام په بې اودسه كيدو سره أمي سړى خليفه جوړ كړ يا د سهار په لمانځه كي په هغه باندي لمر راوختى يا وخت د ماځيگر داخل سو او هغه د جمعې په لمانځه كي وو يا يې پر پټۍ باندي مسحه كړي وه نو د جوړېدو په وجه د زخم څخه ولوېده يا صاحب د عذر وو نو د هغه عذر قطعه سو نو په دې ټولو مسائلو كي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نِز لمونځ فاسد دى او صاحبين وايي چي د هغه لمونځ پوره دى .

**تشريح**: په دې عبارت كي مصنف رحمه الله د يو اختلافي فرضو بيان كړى دى چي د امام ابو حنيفه رحمه الله په نِزپه اختياري فعل سره د لمونځ كونكي د لمانځه څخه وتل

فرض دي او صاحبين د دې د فرضيت څخه انکار کړی دی او په دغه بنياد باندې
څو مسئلې بنا کيږي چي هغه ته فقهاء کرام د مسائلو اثنا عشره(۱۲) په نامه
يادوي، يعني د هغه دوولس مسئلو بيان چي د التحياتي په اندازه په ناسته کې
پيښيږي او هغه په لاندي ډول دي:

۱: تيمم کونکی په مقدار د تشهد کښينستلو وروسته اوبه وليدي او په استعمال
يي هم قادر وو.

۲: په موزو باندي مسحه کونکي وو نو د هغه وروسته په اندازه د التحياتي
کښينستلو وروسته د مسحي وخت پوره سو.

۳: د التحياتي په اندازه وروسته په عمل قليل سره يي دواړي موزې ويستلي
يعني د لاسو ضرورت نه سو پيښ صرف د پښو په حرکت سره موزي ووتلي.

۴: لمونځ کوونکی اَمي وو بيا د التحياتي په اندازه د کښينستلو وروسته هغه د
قرآن يو سورة ايزده کړ يعني اير سوی سورة يي په ياد سو دا مطلب نه دی چي د بل
چا څخه يي ايزده کړ ولي چي دا خپله زد د لمانځه دی.

۵: لمونځ کوونکی لخ لمونځ کوی هغه د التحياتي په اندازه وروسته کالي پيدا
کړه.

٦: لمونځ کوونکی په اشاره سره رکوع اوسجده کونکی وو بيا هغه د التحياتي په
اندازه وروسته په رکوع او سجدې باندي قادر سو.

۷: لمونځ کوونکي ته د التحياتي په اندازه وروسته ور په ياد سو چي تر دې ترمخه
په هغه باندي يو واجب القضاء لمونځ دی او هغه صاحب د ترتيب دی.

۸: د التحياتي په اندازه وروسته د سهار په لمانځه کي لمر راوختی.

۹: د التحياتي په اندازه وروسته قاري امام ته بې اودسي پيښه سوه او هغه اَمي
خليفه جوړ کړ، يعني اَمي يې تر مخه کی.

۱۰: د جمعې په لمانځه کي د التحياتي په اندازه وروسته د ماځيګر وخت داخل سو.

۱۱: په پټۍ يې مسحه کړي وه نود التحياتي په اندازه وروسته په جوړيدو سره پټۍ ولويده.

۱۲: لمونځ کوونکی معذوره وو مګر د التحياتي په اندازه وروسته د هغه عذر ختم سو.

په دې دوولسو مسئلو کي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز لمونځ باطل سو، او صاحبينو ويلي دي چي په دې ټولو صورتو کي لمونځ پوره سو، د امام صاحب رحمه الله په نز د اخيري ناستي وروسته د دې عوارضو از خود را پيش کيدل داسي دي لکه د لمانځه په منځ کي د پيښبيدو څخه لمونځ مفسد دی، د دې لپاره د اخيري ناستي وروسته که چېري دا عوارض راپيش سي نو د اما صاحب رحمه الله په نز يو فرض يعني خروج بفعل المصلي باقي دی نو لمونځ باطل سو، د صاحبينو په نز فرض د لمانځه پوره سوي دي نو د هغوی په نز لمونځ پوره دی، لکه څنګه چي دا عوارض د سلام ګرځولو وروسته راپيش سوي يي او د سلام وروسته خو لازمي خبره ده چي دا عوارض مفسد د لمانځه د هيچا په نز نه دي.

وَالثَّامِنَةُ تَعْدِيْلُ الْاَرْكَانِ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ فَرْضٌ لِمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْحَدِيْثِ وَعِنْدَهُمَا مِنَ الْوَاجِبَاتِ وَمَاسِوٰهُ مِنَ الْوَاجِبَاتِ مِنْهَا تَعِيْنُ الْفَاتِحَةِ وَتَعِيْنُ الْقُرَاءَةِ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَالْاِقْتِصَارُ فِيْهِمَا عَلٰى مَرَّةٍ وَتَقْدِيْمُهَا عَلَى السُّوْرَةِ اَوِالْاٰيَاتِ اِلَيْهَا وَالْجُهْرُ فِيْمَا يُجْهَرُ وَالْمُخَافَتَةُ فِيْمَا يُخَافَتُ وَقِرَاءَةُ الْقُنُوْتِ وَقِرَاءَةُ التَّشَهُّدِ فِي الْقَعْدَتَيْنِ وَفِيْ رِوَايَةٍ فِي

الْقَعْدَةِ الْاَخِيْرَةِ وَالْقَعْدَةُ الْاُوْلٰى وَسَجْدَةُ التِّلَاوَةِ وَسَجْدَةُ السَّهْوِ وَتَكْبِيْرَاتُ الْعِيْدَيْنِ وَالْاِنْتِقَالُ مِنَ الْفَرْضِ اِلَى الْفَرْضِ.

**ژباړه**: اتم فرض د لمانځه تعدیل د ارکانو دی، یعني په ارامه سره هر رکن اداکول، دا د ابویوسف رحمه الله په نِز د هغه حدیث پر بنا چي موږ ذکر کړ فرض دی، او د طرفینو په نِز واجب دی، او د دې څخه علاوه د نورو واجباتو څخه دي په کوم کي چي د سورة الفاتحي او قرآئت په اول دوو رکعاتو کي متعین کول او په دې دواړو کي صرف په یوه وار باندي اکتفاء کول او سورة الفاتحه په سورة باندي مخکي کول او سورة یا آیات د فاتحې سره متصلول او د جهر په ځای کي جهر، او د اخفاء په ځای کي اخفاء کول او دعاء قنوت ویل او په دوو ناستو کي التحیاته او د یوه روایت مطابق صرف په اٰخیري ناسته کي ویل او قرآئت اولی او سجده د تلاوت او سجده سهوه او د اخترو تکبیرونه او د یوه فرض څخه د بل فرض وطرف ته منتقل کیدل .

**تشریح**: په دې عبارت کي مصنف رحمه الله د اتم فرض تعدیل د ارکانو بیان کوي، دا صرف د ابویوسف رحمه الله په نِز فرض دي د دغه قائل امام شافعي رحمه الله دی او فایده د اختلاف داده چي د تعدیل ارکانو بغیر د طرفینو په نِز لمونځ جائز دی مګر د امام یوسف رحمه الله په نِز نه دی جائز، د امام یوسف رحمه الله دلیل د یوه اعرابي خلاد بن رافع رضی الله تعالی عنه لپاره د علیه السلام مبارک فرمان دی چي " فَاِنَّکَ لَم تُصَل " چي د تعدیل ارکان په پرېښوولو سره علیه السلام د لمانځه نفي کړي دي ، دا شان یې د فرضو څخه، ولي چي د فرضو څخه علاوه د منتفي کیدل د لمانځه نفي مستلزمي نه دي نو ثابته سوه چي په لمانځه کي تعدیل د ارکانو فرض دی، طرفین وایي چي الله تعالی په قرآن پاک صرف د رکوع او سجدې حکم کړی دی او رکوع

مطلقًا کښته کېدو ته او سجده په پست کيدو سره پر مځکه باندي د تندي ايښولو ته
ويل کيږي او په حديث کي د اعرابی د هغوی څخه زيادت تعديل د ارکانو نه سي
کيدی، تر دې وروسته مصنفﷺ د لمانځه واجبات ذکر کړي دي او د واجباتو
څخه مراد په لمانځه کي دننه هغه ضروري اعمال دي چي د هغو بغير لمونځ خو پوره
کيږي مګر د هغو په پرېښولو سره سجده سهوه واجب کيږي، مګر مصنفﷺ
دلته د واجباتو پهذکر کولو سره د دوو ذکر پرې ايښی دی او هغه پهلاندي ډول دي:

۱: کوم افعال چي مکرر شروع سوي دي په هغو کي د ترتيب مراعت کول، که
يوچا په ايره سره د اول رکعات دوهمه سجده پريښووله او ولاړ سو رکعات يي پوره
کړنو په لمانځه کي په ياد راتلو سره دي پرېښوول سوي سجده ادا کړي او د ترتيب
د پرې‌ښوولو په وجه سره سجده سهوه واجب ده.

۲: د لمانځه څخه د سلام په لفظ سره وتل هم واجب دي.

# فصل في صفت الصّلوة

(دا فصل په بیان کي د لمانځه د صفت دی)

وَاِذَا اَرَادَ الرَّجُلُ اَنْ يَّدْخُلَ فِي الصَّلٰوةِ نَوٰى وَاَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ كُمَّيْهِ ثُمَّ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيْرِ وَذُكِرَ فِي الْهِدَايَةِ اَنْ يَّرْفَعَ يَدَيْهِ اَوَّلًا ثُمَّ يُكَبِّرُ حَتّٰى يُحَاذِيَ بِاِبْهَامَيْهِ شَحْمَتَيْ اُذُنَيْهِ وَيُفَرِّجُ اَصَابِعَهُ لَاكُلَّ التَّفْرِيْجِ وَيُوَجِّهُ بَطْنَ كَفَّيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ وَالْمَرْءَةُ تَرْفَعُ يَدَيْهَا حِذَاءَ ثَدْيَيْهَا وَالْمُقْتَدِيْ يُكَبِّرُ تَكْبِيْرًا مُقَارِنًا بِتَكْبِيْرِ الْاِمَامِ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَعِنْدَهُمَا يُكَبِّرُ بَعْدَ تَكْبِيْرِ الْاِمَامِ وَالْخِلَافُ فِي الْاَفْضَلِيَّةِ وَلَايَتْرُكُ رَفْعُ الْيَدَيْنِ وَلَوِاعْتَادَ تَرْكُهُ يَأْثِمُ.

**ژباړه:** چي کله سړی په لمانځه کي د داخیلدو اراده وکړي نو دي نیت وکړي او دواړه لاسونه دي د لستوڼو څخه راوباسي الله اکبر دي ووایي او د تکبیر سره دي لاسونه پورته کړي، او په هدایه کي دي چي اول دي لاسونه پورته کړي د هغه وروسته دي تکبیر ووایي تر څو پوري چي د غوږو د شپیلی پوري ګوتي برابري سي او ګوتي دي خلاصي ونیسي مګر ډېري خلاصي دي نه وي او لاسونه (ورغوي) دي قبله ته مخ کړي او ښځه دي د سینې په برابر لاس پورته کړي او مقتدی د امام ابو حنیفه رحمه الله په نز د امام د تکبیر سره پیوست دي تکبیر ووایي او د صاحبینو په نز د امام د تکبیر وروسته دي تکبیر ووایي او اختلاف صرف په افضلیت کي دی او لاس پورته کول دي نه پرېږدي که چېرې یې د پرېښوولو عدت سو نو ګناهګار سو

**تشریح:** په دې فصل کي مصنف رحمه الله د اول څخه تر اخیره پوري د لمانځه ترتیب

بانوي چي د علیه السلام مبارک د زماني څخه تر ننه پوري په نقل متواتر سره منقول دي چي کله يو سړی لمونځ شروع کول غواړي نو تر ټولو اول په لمانځه کي د داخليدو نيت شرط دی د هغه وروسته چي کله د تکبري تحريمه لپاره لاس پورته کړي نو مستحب دی چي د نارينه لاسونه د لستوڼو څخه راوتلي وي او د ښځي لپاره بهتره داده چي لاسونه په لستوڼي کي وي، که څه هم تر څنګلي پوري لاس د ښځي لپاره هم په عورت کي نه دی داخل، او د پورته کولو حد د نارينه لپاره دادی چي ګوتي د غوږ د شپيلې سره برابري سي او ښځه به د سينې په برابر دا ډول لاس پورته کوي چي لاسونه يي د سينې او ګوتو سرونه سره برابر وي د لاس پورته کولو د وخت په باره کي د فقهاء کرامو يو څه اختلاف دی مګر صاحب د هدايي ويلي دي چي اصح دادی چي اول دواړه لاسونه پورته کړي بيا تکبري ووايي په دغه باندي فتوی ده او د دې قول تائيد د وائل بن حجر رضی الله تعالی عنه د حديث څخه هم کيږي (ان النبى عليه السلام حِيۡنَ قَامَ اِلَى الصَّلٰوةِ يَرفَعُ يَدَيهِ ثُمَّ يُكَبِّرُ) يعني نبی عليه السلام چي کوم وخت د لمانځه لپاره به ولاړيدی نو خپل دواړه لاسونه به يې پورته کول بيا يي تکبير وايه، صاحب کتاب ويلي دي که چېري څوک د تکبيري تحريمي په وخت کي د رفع يدين پرېښوولو عادت جوړ کړ نو ګناهګار دی ولي چي دا سنت مؤکده دی.

ثُمَّ يَضَعُ يَمِينَهُ عَلٰى يُسَارِهٖ وَيَقۡبِضُ بِيَدِهِ الۡيُمۡنٰى رُسۡغَ يَدِهِ الۡيُسۡرٰى وَيَضَعُهُمَا تَحۡتَ السُّرَّةِ وَالۡمَرۡءَةُ تَضَعُهُمَا تَحۡتَ ثَدۡيَيۡهَا ثُمَّ يَقُوۡلُ سُبۡحٰنَكَ اَللّٰهُمَّ اِلٰى اٰخِرِهٖ وَاِنۡ زَادَ وَجَلَّ ثَنَاۤئُكَ لَايَمۡنَعُ وَاِنۡ سَكَتَ لَايُؤۡمَرُ بِهٖ وَيَقُوۡلُ اِنِّيۡ وَجَّهۡتُ وَجۡهِيَ لِلَّذِيۡ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ حَنِيۡفًا وَّمَاۤ اَنَا مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ الخ عِنۡدَ اَبِيۡ يُوۡسُفَ ثُمَّ فِيۡ

رِوَايَةٍ يَقُوْلُ قَبْلَ التَّكْبِيْرِ وَفِيْ رِوَايَةٍ بَعْدَ التَّكْبِيْرِ وَعِنْدَهُمَا يَقُوْلُ قَبْلَ الْاِفْتِتَاحِ يَعْنِيْ قَبْلَ النِّيَّةِ وَلَايَقُوْلُ بَعْدَ النِّيَّةِ قَبْلَ التَّكْبِيْرِ بِالْاِجْمَاعِ ثُمَّ يَتَعَوَّذُ.

**ژباړه**: بيا دي راسته لاس په چپه لاس كښيږدي او په خپل لاس سره د دا بل لاس د مړوندو نيولو سره دواړه لاسونه دي د نُو لاندي كښيږدي او ښځه دي د خپلي سينې لاندي كښيږدي او تر اخيري پوري دي" سبحانك اللهم "ووايي كه چيري د"وجل ثناؤك "زيادت يي وكړ نو نه منعه كيږي،كه چپ سو نو د دې امر نه وركول كيږي او د ابويوسف رحمه الله په نِز" اِنِّي وَجَّهتُ وَجهِيَ لِلَّذِي الخ "ووايي بيا په يوه روايت كي د تكبير څخه د مخه په بل روايت كي د تكبير وروسته ووايي او د طرفينو په نِز د لمانځه د شروع كولو يعني د نيت څخه ترمخه دي ووايي او د نيت وروسته د تكبير څخه ترمخه بالاتفاق دي نه وايي.

**تشريح**: په لمانځه كي راسته لاس په چپه لاس ايښوول مسنون دي، حضرت علي رضي الله عنه وايي" من السنة وضع اليمين على الشماله تحت السرة "او په ابوداود كي راغلي دي چي د ابن مسعود رضى الله تعالى عنه څخه روايت دى چي هغه لمونځ كوى هغه چپه لاس په راسته لاس كښيښووى مگر چي كله عليه السلام وليدى نو د ابن مسعود راسته لاس يي په چپه لاس كښيښودى، د ايښوولو كيفيت دادى چي د راسته لاس ورغوى د چپه لاس پر شا كښيږدي او د راسته لاس په گوتو او كوچنۍ گوتو سره دي د چپه لاس شا ونيسي، زموږ په نِز افضل دادى چي پر نُو دي لاس وتړي ولي چي پر نو باندي لاس تړلو كي تعظيم زيات دى او په لمانځه كي تعظيم مقصوددى، بيا د لاس تړلو وروسته دي ثنا ووايي او د ځينو غير مشهورو رواياتو په بناء كه چېري چا" وجل ثناؤك "الفاظ زيات كړل نو د هغه منعه كول ضروري نه دى، البته په فرائضو كي د دې الفاظو زياتول بهتر نه دى، پاته سوه دا خبره چي دعا

سره يو بله دعا ورسره کړي که نه؟ نو په دې باره کې د طرفينو رحمهما الله مذهب دا دی چې د ثنا سره بله دعا نه کې ورسره او امام يوسف رحمه الله وايي چې لمونځ کوونکی د ثناء سره" انی وجهت وجهی للذي.....الخ "دعا دي ورسره کړي، البته دا مسئله اتفاقي ده چې د نيت وروسته او د تکبير څخه ترمخه دي نه وايي د دې لپاره چې نيت د تکبير سره اتصال وسي.

اَمَّا التَّعَوُّذُ فَتَبَعٌ لِلثَّنَاءِ عِنْدَ اَبِىْ يُوْسُفَ حَتّٰى اَنَّهُ يَأْتِىْ بِهِ الْمُقْتَدِىْ وَفِى الْعِيْدَيْنِ يَأْتِىْ بِهِ قَبْلَ التَّكْبِيْرَاتِ بَعْدَ الثَّنَآءِ وَاَمَّا الْمَسْبُوْقُ فَلَا يَأْتِىْ بِهِ عِنْدَهُمَا اِلَّا بَعْدَ مُفَارَقَةِ الْاِمَامِ وَالْمَسْبُوْقُ يَأْتِىْ بِالثَّنَآءِ اِذَا اَدْرَكَ الْاِمَامَ حَالَةَ الْمُخَافَةِ ثُمَّ اِذَا قَامَ اِلٰى قَضَآءِ مَاسَبَقَ بِهِ يَأْتِىْ بِهِ اَيْضًا كَذَا ذَكَرَهُ فِى الْمُلْتَقَطِ وَاِذَا اَدْرَكَ الْاِمَامَ وَهُوَ يَجْهَرُ لَايَأْتِىْ بِالثَّنَآءِ بَلْ يَسْتَمِعُ وَيُنْصِتُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَأْتِىْ بِالثَّنَآءِ عِنْدَ سَكَتَاتِ الْاِمَامِ كَلِمَةً كَلِمَةً وَعَنِ الْفَقِيْهِ اَبِىْ جَعْفَرٍ اِذَا اَدْرَكَ الْاِمَامَ فِى الْفَاتِحَةِ يُثْنِىْ بِالْاِتِّفَاقِ ذَكَرَهُ فِى الذَّخِيْرَةِ وَاَمَّا فِى الْجُمُعَةِ وَالْعِيْدَيْنِ اِذَاكَانَ بَعِيْدًا عَنِ الْاِمَامِ فَقَدِ اخْتَلَفَ الْمُتَاَخِّرُوْنَ فِيْهِ وَاِنْ اَدْرَكَ فِى الرُّكُوْعِ يَأْتِىْ بِهِ قَآئِمًا وَاِلَّا يَرْكَعُ وَيُتَابِعُ الْاِمَامَ وَكَذَا اِذَا اَدْرَكَ فِى السَّجْدَةِ الْاُوْلٰى وَلَايَأْتِىْ بِالرُّكُوْعِ وَلَايَكُوْنُ مُدْرِكًا لِتِلْكَ الرَّكْعَةِ مَالَمْ يُشَارِكِ الْاِمَامَ فِى الرُّكُوْعِ كُلِّهِ اَوْمِقْدَارَ تَسْبِيْحَةٍ مِنْهُ وَفِى الذَّخِيْرَةِ وَاِنْ سَوّٰى ظَهْرَهُ فِى الرُّكُوْعِ صَارَ مُدْرِكًا سَوَآءٌ قَدَرَ عَلَى التَّسْبِيْحِ اَوْلَمْ يَقْدِرْ وَاِنْ اَدْرَكَ وَهُوَ فِى الْقَعْدَةِ قَالَ بَعْضُهُمْ يُكَبِّرُ وَيَقْعُدُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَأْتِىْ بِالثَّنَآءِ ثُمَّ

يَقْعُدُ وَلَايَتَعَوَّذُ اِلَّا بَعْدَ الثَّنَآءِ ثُمَّ يُسَمِّيْ فَيَأْتِيْ بِهَا فِيْ اَوَّلِ كُلِّ رَكْعَةٍ اِحْتِيَاطًا لِاَنَّ اَكْثَرُ الْمَشَايِخِ عَلٰى هٰذَا اَمَّا الْاِمَامُ اِذَا جَهَرَ فَلَايَأْتِيْ بِهَا وَاِذَا خَافَتَ يَأْتِيْ بِهَا وَاَمَّا التَّسْمِيَةُ عِنْدَ اِبْتِدَآءِ السُّوْرَةِ فَاِنَّهُ عِنْدَ اَبِيْ حَنِيْفَةَ لَايَأْتِيْ بِهَا وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَأْتِيْ بِهَا اِذَا خَافَتَ.

**ژباړه:** اعوذ بالله د ابويوسفرحمه الله په نِز د ثنا تابع ده تر دې پوري چي مقتدي يي هم وايي او د اختر د تكبيراتو څخه د مخه او د ثنا وروسته به وايي او مسبوق به يي د طرفينو په نِز نه وايي مګر د امام څخه د جلا کيدو وروسته مسبوق چي کله امام په حالت اخفا کي ونيسي نو نه دي وايي بلکي قرآئت دي ووايي او ځيني علماء وايي چي د امام د چپ کيدو په وخت کي دي يوه يوه کلمه وايي او د فقيه ابو جعفر څخه منقول دي چي کله امام په فاتحه کي ونيسي نو بالاتفاق دي ثنا ووايي دا په ذخيره کي ذکر دي، په جمعه او د اخترو په لمانځه کي چي کله د امام څخه ليري وي نو په دې کي د متاخرينو علماؤ اختلاف دی او چي کله امام په رکوع کي ونيسي نو دي فکر وکړي که چيري د هغه غالب ګمان دا وي چي ثنا يي وويله نو بيا هم د امام سره د رکوع په يوڅه حصې کي شريک سي نو دي په ولاړه سره ووايي که نه نو دي رکوع وکړي د امام متابعت دي وکړي ، دغه ډول که چيري يې په اوله رکوع کي ونيوی او رکوع دي نه کوي کنې د دې رکعات نيونکی سو تر څه وخته پوري چي د امام سره مکمل يا د يوه تسبيح برابر په رکوع کي شريک نه سي، په ذخيره کي دي که چيري يي په رکوع کي ملا سيده کړه نو د رکوع نيونکی سو که په تسبيح باندي قادر وي او که نه او که چيري يي امام د ناستي په حالت کي ونيوی نو ځينو علماؤ ويلي دي چي په تکبير ويلو سره دي کښيني او ځيني وايي چي د ثناويلو وروسته

دي کښيني او صرف د ثنا وروسته" اعوذ بالله "وايي بيا بسم الله او احتياطاً د هر رکعات په شروع کي دي بسم الله وايي ولي چي د اکثرو مشائخو دغه قول دی او امام چي کله په زوره قرائت وايي نو نه دي وايي چي کله اخفا وکړي نو دي ووايي او د هر سورت په ابتداء کي د امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز دي نه وايي او د امام محمد رحمه الله په نِز دي د اخفاء په حالت کي وايي.

**تشريح**: زموږ په نِز د لمانځه په شروع کي اعوذ بالله مسنونه ده ځينو علماؤ مستحب هم ليکلي ده، اعوذ بالله د قرآئت تابع ده که د ثنا نو په دې باره کي زموږ د علماؤ اختلاف دی، چنانچي د طرفينو په نِزتعوذ د قرآئت تابع ده او د امام يوسف رحمه الله په نِز د ثنا تابع ده نو د طرفينو په نِز په کوم چاچي قرآئت واجب وي هغه به تعوذ وايي، حتّی چي مسبوق به تعوذ وايي ولي چي په هغه باندي په فوت شده رکعات کي قرآئت واجب دي البته مقتدی به تعوذ نه وايي ولي چي په هغه باندي قرآئت نه دی واجب او د اخترو په لمانځه کي تعوذ به د اختر د تکبيرو وروسته وايي ولي چي د اخترو په لمانځه کي تکبيرات عيد په اول رکعات کي د قرآئت څخه دمخه کيږي او د امام ابو يوسف رحمه الله په نِز څوک چي ثنا وايي هغه به تعوذ هم وايي ابو يوسف رحمه الله وايي چي تعوذ د ثنا د جنس څخه ده ولي چي څه ډول ثنا دعا ده دغه ډول تعوذ هم يوه دعا ده د هم جنس کيدو په وجه تعوذ د ثنا تابع ده.

او طرفين په دليل کي قول د باري تعالی (فَاِذَا قَرَأتَ الْقُرآنَ فَاستَعِذ بِاللهِ) يعني چي کله د قرآن د تلاوت اراده کوي نو اعوذ بالله دي وايي، او چي کله امام قرآئت شروع کړی وي نو مقتدی دي ثنا نه وايي بلکي چپ دي سي د امام قرآئت دي واوري، امام فقيه ابوجعفر هندواني رحمه الله ويلي دي که چېري امام سورة فاتحه وايي نو په دې دوران کي ثنا ويلی سي مګر صحيح داده چي د نص قرآني مطلق په وجه نه د قرآئت فاتحه او نه د قرآئت سورة په وخت کي ثنا ووايي البته هغه شخص چي د

امام څخه ليري وي نو په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي ثناء دي ووايي که نه؟ قول اصح دادی چي ثناء دي نه وايي ولي که چېري د هغه سرې لپاره استماع ممکنه نه وي نو دوهم فرض يعني انصات خو کولای سي او د ثنا سره انصات چپ والی نه سي کيدی که چېري مقتدی امام په داسي حالت کي ونيسي چي هغه رکوع کوي نو که چېري د مقتدی غالبه رايه دا وي چي امام دومره اوږده رکوع کوي چي زه په دې دوران کي ثنا هم ويلای سم او په رکوع کي هم شامل کيدی سم نو دي ودرېږي د تکبيري تحريمي وروسته دي ثناء ووايي او په رکوع کي دي شريک سي که چېري د ثنا په وجه رکوع فوت کيږي نو د ثنا په نسبت په رکوع کي شموليت بهتر دی چي دا رکعات د جماعت سره سي دغه ډول که چېري فقط په يوې سجدې کي د شموليت احتمال وي نو په سجده کي شموليت اولیٰ دی،او ثنا دي پرېږدي، تسميه زموږ د علماؤ په نزد نه د فاتحې جز دی او نه د يوه بل سورة بلکي د سورتو په منځ کي د جلاوالي لپاره نازله سوي ده، البته د سورة النمل آيت" اِنَّهُ مِنَ السُلَيمَانَ وَاِنَّهُ بسم الله الرحمٰن الرحيم "کي بالاتفاق د قرآن جز دی، پاته سوه دا خبره چي بسم الله په هر رکعات کي د سورة فاتحې څخه د مخه ووايي يا فقط په اول رکعات کي نو د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه د يوه روايت مطابق د هر رکعات په شروع کي دي بسم الله ووايي احتياط په دې کي دی ولي چي د ځينو علماؤ د قول مطابق بسم الله د سورة فاتحې جز دی نه چېري چي سورة فاتحه ويل کيږي هلته په هر رکعات کي د بسم الله ويل هم ضروري دي د دې لپاره چي د اختلاف څخه ځان وساتل سي صاحب د هدايې ويلي دي چي په هر رکعات کي بسم الله ويل د حضراتو صاحبينو قول دی بيايي وويل چي سورة فاتحه او د سورة په منځ کي دي بسم الله نه وايي البته امام محمد رحمه الله وايي چي په خفي لمانځه کي بسم الله د فاتحې او سورة په منځ کي ويلی سي مگر په جهري لمانځه کي دي نه وايي.

ثُمَّ يَقْرَءُ الْفَاتِحَةَ وَاِذَاقَالَ الْاِمَامُ فِيْ اٰخِرِهَا وَلَا الضَّآلِّيْنَ يَقُوْلُ اٰمِيْنَ وَالْمُؤْتَمُّ يَقُوْلُهَا وَيُخْفُوْنَهَا ثُمَّ يَضُمُّ سُوْرَةً اَوْثَلٰثَ اٰيَاتٍ خَرَجَ عَنْ حَدِّ الْكَرَاهَةِ وَلَمْ يَدْخُلْ فِيْ حَدِّ الْاِسْتِحْبَابِ لِاَنَّ الْوَاجِبَ هُوَ ضَمُّ السُّوْرَةِ اَوِ الْاٰيَاتِ اِلَيْهَا وَالْمُسْتَحَبُّ اَنْ يَقْرَءَ فِي السَّفَرِ حَالَةَ الضَّرُوْرَةِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ اَيَّ سُوْرَةٍ شَآءَ وَفِي السَّفَرِ حَالَةَ الْاِخْتِيَارِ يَقْرَءُ فِي الْفَجْرِ سُوْرَةَ الْبُرُوْجِ وَنَحْوَهَا وَفِي الظُّهْرِ كَذٰلِكَ وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَآءِ دُوْنَ ذٰلِكَ وَفِي الْمَغْرِبِ بِالْقِصَارِ جِدًّا وَفِي الْحَضَرِ اِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ يَقْرَءُ قَدْرَ مَالَا تَفُوْتُهُ الصَّلٰوةُ وَاِنْ لَّمْ يَخَفْ فَوْتَ الْوَقْتِ يَقْرَءُ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ بِاَرْبَعِيْنَ اَوْخَمْسِيْنَ اَوْسِتِّيْنَ اٰيَةً وَفِي الظُّهْرِ مِثْلَهُ اَوْدُوْنَهُ وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَآءِ كَذٰلِكَ وَقَالَ الْقُدُوْرِيُّ يَقْرَءُ فِي الْفَجْرِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ وَفِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْعِشَآءِ بِاَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ وَفِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ اَمَّا الطِّوَالُ فَمِنْ سُوْرَةِ الْحُجُرَاتِ اِلٰى سُوْرَةِ الْبُرُوْجِ وَاَمَّا الْاَوْسَاطُ فَمِنْ سُوْرَةِ الْبُرُوْجِ اِلٰى سُوْرَةِ لَمْ يَكُنِ وَاَمَّا الْقِصَارُ فَمِنْ سُوْرَةِ لَمْ يَكُنِ اِلٰى اٰخِرِ الْقُرْاٰنِ وَيُطِيْلُ الْاِمَامُ فِي الْفَجْرِ الرَّكْعَةَ الْاُوْلٰى عَلَى الثَّانِيَةِ وَرَكْعَتَا الظُّهْرِ وَمَاسِوٰهُمَا سَوَآءٌ وَقَالَ مُحَمَّدٌ اَحَبُّ اِلَيَّ اَنْ يُّطِيْلَ الْاُوْلٰى عَلَى الثَّانِيَةِ فِي الصَّلٰوةِ كُلِّهَا وَاَمَّا اِطَالَةُ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ عَلَى الْاُوْلٰى فَمَكْرُوْهٌ بِالْاِجْمَاعِ اِنْ كَانَتْ بِثَلٰثِ اٰيَاتٍ اَوْفَوْقَهَا وَاِنْ كَانَتْ اٰيَةً اَوْ اٰيَتَيْنِ لَا تُكْرَهُ اَمَّا فِي السُّنَنِ وَالنَّوَافِلِ فَيُسَوِّيْ بَيْنَ الرَّكْعَتَيْنِ اِلَّا اِذَا كَانَ مَرْوِيًّا اَوْمَاثُوْرًا فَاِنَّهُ يُصَلِّيْ كَمَا جَآءَ فِي الرِّوَايَةِ اَوِ الْاَثَرِ

**زياره**: بيا دي الحمدلله ووايي او چي کله امام په اخر کي ولاالضالين ووايي نو دي امين هم ووايي او مقتدی دي هم کرار ووايي بيا دي يو سورة يا درې آياته ور يوځای کړي که چېري يو آيت يا دوه ايتونه کوچني کوچني يې وويل نو د کراهت څخه نه ووتی او که چېري يې درې اياته لنډ يا يو آيت د درو په برابر ووايه نو د حد کراهت څخه ووتی مګر په حد کي د استحباب نه سو داخل ولي چي واجب مقدار د سورة يا آيت د فاتحې سره يوځای کول دي او مستحب مقدار د سفر په حالت کي ضرورت دا چي د سورت سره يو بل سورة هم ووايي او د اختيار په حالت کي د سهار په لمانځه کي سورة البروج يا د هغه په مثل يو بل سورة ووايي او د ماپښين په لمانځه کي هم دغه ډول او په ماځيګر او ماخستن د هغه څخه کم او په ماښام کي ډېر کم او په حالت کي د حضر چي کله د وقت د فوتېدلو بيره وي نو دي دومره مقدار قرآئت ووايي چي لمونځ نسي فوت که چېري د قضاکېدو بيره نه وي نو د سهار په لمانځه کي څلويښت يا پنځوس يا شپيته ايتونه او په ماپښين کي هم دا ډول يا د دې څخه څه کم دي ووايي او په ماځيګر او ماخستن کي هم، او قدوري رحمه الله ويلي دي چي په سهار لمانځه کي اوږده لنډ ايتونه ووايي او په ماپښين، ماځيګر او ماخستن کي درميانه مفصل او په ماښام کي لنډ سورة دي ووايي او اوږده سورتونه د سورة الحجرات څخه بيا تر سورة البروج پوري دی او درميانه د سورة البروج څخه تر سورة لم يکن الذي پوري دی، او لنډ د سورة لم يکن الذي څخه بيا د تر آخر قران پوري دی، امام دي د سهار اول رکعات په دوهم باندي اوږد کړي او د ماپښين د دوو رکعاتو څخه علاوه نور دي ټول برابر کړي، امام محمد رحمه الله ويلي چي زه دا خوښومه چي په ټولو لمونځو کي اول رکعات د دوهم څخه لوی وي، او دوهم رکعات د اول څخه اوږدول بالاتفاق مکروه دی، مګر درې اياته يا د هغو څخه زيات وي که چېري يو يا دوه اياتونه وي نو نه دی مکروه، په

سنتو او نوافلو کي به په دواړو رکعاتو کي برابري وي مګر دا چي مروي یا ماثور وي نو هغه ډول به یي وایي څه ډول چي روایت دی یا په اثر کي منقول دی.

**تشریح:** په علماؤ کي په دې باره کي اختلاف دی چي په لمانځه کي د قرآئت څومره مقدار فرض دی زموږ د امام ابوحنیفهؒ قول دی چي مطلقًا قرآئت د قران فرض دی که څه هم یو ایت وي او سورة فاتحه او د هغه سره یو سورة یوځای کول دا دواړه د واجباتو څخه دي، د سورة فاتحې په اختتام چي کله امام ولاالضالین ووایي نو امام او مقتدی دي دواړو ته آمین ویل پکار دي ولي چي علیه السلام ویل" اِذَا اَمَنَ الاِمَام فَامِنُوا "یعني چي کله امام امین ووایي نو تاسي یي هم ووایاست، د دې وروسته مصنفؒ په حالت او حضر کي د قرآئت واجبه ومسنونه ذکر کولو سره ویلي دي چي په سفر کي د سورة فاتحې چي هر سورة یوځای کړي سنت ادا کیږي ولي چي د علیه السلام څخه مروي دی چي علیه السلام مبارک په حالت د سفر کي د سهار په لمانځه کي" قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس " ویلي دي مګر دا قدر تخفیف هغه وخت دی چي کله مسافر په تلوار کي وي او که چیري د امن و قرار په حالت کي وي مثلا په یوه منزل باندي یي قرار وي او اراده یي دا وي په اطمینان سره روان سي نو په داسي سورت کي د سهار په لمانځه کي "والسماء ذات البروج "یا د ده په مثل یو بل سورة دي ووایي یعني چي کله یو سړی پر خپل مقام باندي وي نو د سهار په دواړو رکعاتو کي د سورة فاتحې څخه علاوه دېرش، څلویښت ایاتونه ووایي امام ته پکار ده چي د مقتدی په حالت باندي نظر ساتي.

که چیري مقتدی جوړ وي او د قرآن د اوریدو رغبت لري نو دي اوږد قرآئت وایي او که چیري مقتدی سست او کاهل وي نو دي اوږد قرآئت نه وایي، سهار کوم قرآئت چي مصنفؒ په تفصیل سره ذکر کړی دی د هغه په مثل دي په ماپښین

کي هم ووايي ولي چي په دې دواړو وختو کي وسعت موجود دی البته امام محمد رحمه الله په مبسوط کي ويلي دي چي ماپښين د مشغوليت وخت دی لهذا په دې کي د سهار په نسبت کم قرآئت دي وويل سي، د دې وروسته بيا مصنف رحمه الله د امام قدوري د قول په نقل کولو سره ويلي دي چي د سهار په لمانځه کي طوال مفصل يعني د سورة الحجرات څخه تر سورة بروج پوري دي يو سورة ووايي او په ماپښين، ماځيګر او ماخستن کي اوساط مفصل يعني د سورة بروج څخه تر لم يکن الذي پوري يو سورة دي ووايي او د ماښام په لمانځه کي د سورة لم يکن الذي څخه تر آخر قرآن پوري يو مختصر سورة ووايي، د سهار په اول رکعات کي د دوهم په نسبت دي زيات قرآئت ووايي چي د عليه الصلوة والسلام د زمانې څخه تر ننه پوري دغه طريقه را روانه ده او امام محمد رحمه الله ويلي دي چي صرف په سهار کي نه بلکي په ټولو لمونځوکي اول رکعات په دوهم باندي اوږدول مستحب دی، او د رکعات ثانيه طول کول بالاتفاق مکروه دی، مګر دا طول چي کله د درو اياتو څخه کم مقدار وي نو په دې کي هيڅ کراهت نسته ولي د دې څخه احتراز کول بغير د حرج څخه ممکن نه دی او حرج شريعت اسلاميه دفعه کړی دی دا ټول بيان د فرائضو په باره کي دی د نوافلو دواړه رکعاتونه برابر پکار دي البته که څوک لمونځ په خاص ترتيب سره په يوه روايت يا د صحابی په اثر کي منقول وي نو هغه لمونځ دي په هغه په هيت وترکيب سره وکړل سي که څه هم دوهم رکعات د اول څخه لوی سي.

فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ يُخِرُّ رَاكِعًا مُكَبِّرًا وَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ اِبْتِدَآءَ تَكْبِيْرِهٖ عِنْدَ اَوَّلِ الْخُرُوْرِ وَالْفَرَاغُ مِنْهُ عِنْدَ الْاِسْتِوَآءِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِذَا اَتَمَّ الْقِرَاءَةَ حَالَةَ الْخُرُوْرِ لَابَاْسَ بِهٖ اَنْ يَّكُوْنَ مَابَقِيَ مِنَ الْقِرَاءَةِ حَرْفًا اَوْ كَلِمَةً وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ وَيَضَعُ يَدَيْهِ عَلٰى رُكْبَتَيْهِ وَيُفَرِّجُ اَصَابِعَهٗ وَيَبْسُطُ ظَهْرَهٗ وَلَايَرْفَعُ رَاْسَهٗ وَلَا يُنَكِّسَهٗ

وَيَقُوْلُ فِيْ رُكُوْعِهٖ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلٰثًا وَذٰلِكَ اَدْنٰهُ وَاِنْ زَادَ فَهُوَ اَفْضَلُ وَاَنَّهُ يَخْتِمُ عَلٰى وِتْرٍ وَاِنِ اقْتَصَرَ عَلٰى مَرَّةٍ اَوْتَرَكَ بِالْكُلِّيَّةِ جَازَتْ صَلٰوتُهُ وَيُكْرَهُ وَرُوِيَ عَنْ مُطِيْعِ الْبَلْخِيِّ اَنَّ تَسْبِيْحَ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ رُكْنٌ حَتّٰى لَوْتَرَكَهُ لَاتَجُوْزُ صَلٰوتُهُ وَلَايَنْبَغِيْ لِلْاِمَامِ اَنْ يُّطِيْلَ التَّسْبِيْحَ عَلٰى وَجْهٍ يَّمُلُّ بِهِ الْقَوْمُ لِاَنَّهُ سَبَبُ التَّنْفِيْرِ وَاِنَّهُ مَكْرُوْهٌ وَلَوْ اَطَالَ الرُّكُوْعَ لِاِدْرَاكِ الْجَآئِيْ لَاتَقَرُّبًا بِهٖ لِلّٰهِ فَهُوَ مَكْرُوْهٌ وَلَايَكْفُرُ وَلَوْ اَطَالَ تَقَرُّبًا لِلّٰهِ تَعَالٰى فَلَابَاْسَ بِهٖ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يُطِيْلُ التَّسْبِيْحَاتِ ثُمَّ يَرْفَعُ رَاْسَهُ وَيَقُوْلُ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ وَاِنْكَانَ الْمُصَلِّيْ مُقْتَدِيًا يَاْتِيْ بِالتَّحْمِيْدِ وَلَايَاْتِيْ بِالتَّسْمِيْعِ عِنْدَنَا وَاِنْكَانَ مُنْفَرِدًا يَاْتِيْ بِهِمَا اَمَّا الْاِمَامُ فَيَاْتِيْ بِالتَّحْمِيْدِ اَيْضًا عَلٰى قَوْلِهِمَا وَفِيْ رِوَايَةٍ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ وَلَايَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا وَيُرْسِلُ الْيَدَيْنِ فِي الْقَوْمَةِ كَذَا قَالَ الصَّدْرُ الشَّهِيْدُ فِيْ وَاقِعَاتِهٖ وَذَكَرَ السَّيِّدُ الْاِمَامُ فِي الْمُلْتَقَطِ اَنَّهُ يَاْخُذُ الْيَدَ الْيُسْرٰى بِالْيُمْنٰى فِيْ تِلْكَ الْقَوْمَةِ عَلٰى قَوْلِهِمَا وَفِيْ صَلٰوةِ الْجَنَازَةِ وَوَقْتِ الثَّنَآءِ وَالْقُنُوْتِ يَاْخُذُ عَلٰى قَوْلِ اَكْثَرِ الْمَشَايِخِ وَفِيْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ يُرْسِلُ.

**ژباړه:** چي کله د قرآئت څخه فارغه سي نو د رکوع لپاره د تکبير ويلو سره دي کښته سي او مناسبه ده چي د تکبير ابتداء د اول کښته کېدو سره وي او د هغه د فراغت څخه چي کله ملا برابره سي او ځينو علماء وو ويلي دي چي کله قرآئت د کښته والي په حالت کي پوره سي نو په دې کي هيڅ قباحت نسته چي يو حرف يا کلمه باقي وي او اول قول اصح دی، دواړه لاسونه دي په ځنګنو کښېږدي او ګوتي

دي خلاصي ونيسي او ملا دي هواره او سيده کړي او سر دي پورته نه نيسي او نه دي لاندي کوي او په خپل رکوع کي دي درې واره" سبحان ربی العظيم "ووايي او دا ادنی مرتبه ده که چېري يي د دې څخه زيات ووايي نو بهتره ده او په طاق به يي ختم وي که چېري په يوه وار باندي اقتصار وکړي يا يي بالکل ترک کړه نو هغه لمونځ جائز دی مگر مکروه دی، او د مطيع بلخي رحمه الله څخه مروي دي چي د رکوع او سجودو درې تسبيحات رکن دي تر دې پوري که چېري دا يي پرېښوول نو د هغه لمونځ جائز نه دی او د امام لپاره مناسب نه دی چي تسبيحاتو ته دومره اوږدوالی ورکړي چي قوم ناراضه سي ولي چي دا د نفرت سبب دی او دا مکروه دی او که چېري يي رکوع د رضا خداوندي څخه قطع نظر صرف د راتلونکو خلگو لپاره اوږدوالی ورکړ نو دا مکروه دي او په دې عمل سره نه کافر کيږي، که چېري يي د الله تعالی د خوشنودی لپاره اوږده کړه نو په دې کي هيڅ حرج نسته ځينو ويلي دي چي تسبيحاتو ته دي اوږدوالی ورکړي بيا دي سر پورته کړي او" سمع الله لمن حمده "دي ووايي که چېري لمونځ کونکی مقتدي وي نو دي صرف" لک الحمد " ووايي او سمع الله دي نه وايي که منفرد وي نو دي دواړه ووايي او امام دي هم د صاحبينو په قول" ربنا لک الحمد "ووايي او په يوه روايت کي راغلي دي چي "اللهم ربنا لک الحمد "دي ووايي او په دې کي دي هيڅ زياتوالی نه کوي او په قومه کي دي لاسونه ايله پرېږدي دغه ډول صدر الشهيد په واقعاتو کي ويلي دي او سيد الامام په ملتقط کي ذکر کړي دي چي په دې قومه کي د صاحبينو په قول دي چپه لاس په راسته لاس ونيسي او د جنازې د لمانځه د ثناء ويلو او دعاي قنوت کي د اکثره علماؤ په قول باندي او په تکبيراتِ عيدين کي دي هم ارسال وکړي.

**تشريح**: مصنف رحمه الله وايي چي کله د قرآئت څخه فارغه سي نو په رکوع کي د تللو سره دي تکبير ووايي يعني رکوع ته د کښته کېدو په وخت کي دي تکبر شروع

کړي او په رکوع کي دي پوره کړي، د ځينو علماؤ قول دادی چي په ولاړه دي تکبير ختم کړي بيا دي د رکوع لپاره کښته سي مګر د صاحب کتاب قول ډېر معتبر دی او دغه قول اکثرو مشايخو معتبر کړی دی چي په ولاړه سره دي تکبير ختم کړي بيا دي د رکوع لپاره کښته سي مګر د صاحب کتاب قول ډېر معتبر دی او دغه قول اکثرو مشائخو معتبر کړی دی او د دې قول تائيد د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ د روايت سوي حديث څخه هم کيږي چي" کان يکبر فی کل خفض ورفع) په ولاړه او ناستي اوابوبکر وعمر"يعني عليه السلام مبارک به تکبير وايه په هر کښته کېدو او پورته کيدو او په ولاړيدو او په ناسته کي او ابوبکر صديق او عمر به هم وايه، د دې حديث څخه و رکوع په تللو کي د تکبير ويل ثابت دي البته د قرآئت څخه د ولاړي په حالت کي فراغت پکار دی تر دې وروسته مصنف رحمه الله د رکوع مسنونه طريقه بيان کړي ده چي لمونځ کونکی دي په خپلو دواړو لاسو سره دواړه ځنګنونه ونيسي او د لاس د ګوتو په ماېنځ کي خلاص والی پريږدي، ملا دي همواره او برابره ونيسي سر دي نه پورته او نه لاندي کوي يعني د اوږو د سطحي سره دي همواره کړي درې واره دي" سبحان ربی العظيم "ووايي او درې واره ويل کم از کم مقدار دی د دې څخه زيات ويل پکار دي مګر دا خيال به کوي چي په طاق باندي ختم سي، امام ته د مقتديانو خيال کول ضروري دی د دې لپاره چي څوک د جماعت د لمانځه څخه نه سي بيزاره او د امام په رکوع کي دننه د خلګو انتظار کول مکروه تحريمي دي ، امام ابو يوسف رحمه الله ويلي دي چي ما د خپل استاذ محترم حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله څخه په دې باره کي پوښتنه وکړه نو ده وويل چي ماته په هغه امام د برعظيم مصيبت خوف دی البته په دې عمل سره نه کافر کيږي ولي چي هغه په لمانځه کي د غيرالله رعايت کړی دی مګر د غيرالله عبادت يې نه دی کړی

فَاِذَا اطْمَاَنَّ قَآئِمًا كَبَّرَ بِالْخُرُوْرِ وَسَجَدَ وَيَضَعُ رُكْبَتَيْهِ اَوَّلًا ثُمَّ يَدَيْهِ ثُمَّ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ عَلَى الْاَرْضِ وَيُبْدِيْ ضِبْعَيْهِ عَنْ جَنْبَيْهِ وَيُجَافِيْ بَطْنَهُ عَنْ فَخْذَيْهِ وَالْمَرْءَةُ تَنْخَفِضُ فِيْ سُجُوْدِهَا وَتَلْزِقُ بَطْنَهَا بِفَخْذَيْهَا وَيَقُوْلُ فِيْ سُجُوْدِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى ثَلٰثًا وَذٰلِكَ اَدْنٰهُ وَاِنْ زَادَفَهُوَ اَفْضَلُ وَيَتْرُكُ عَلٰى وِتْرٍ ثُمَّ يَرْفَعُ رَاْسَهُ وَيَقْعُدُ وَيَضَعُ يَدَيْهِ عَلٰى فَخْذَيْهِ فَاِذَا اطْمَاَنَّ قَاعِدًا كَبَّرَ وَسَجَدَ ثَانِيًا وَاِنْ رَفَعَ رَاْسَهُ قَلِيْلًا ثُمَّ سَجَدَ نَظَرَ اِنْكَانَ اِلَى السُّجُوْدِ اَقْرَبُ اِلَى الْقُعُوْدِ لَايَجْزِيْهِ وَذُكِرَ فِي الْمُلْتَقَطِ اَنَّهُ يَجْزِيْهِ فَاِذَا فَرَغَ مِنَ السَّجْدَةِ يَنْهَضُ وَلَا يَقْعُدُ وَلَا يَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ وَيَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ مَافَعَلَ فِي الْاُوْلٰى اِلَّا اَنَّهُ لَايَسْتَفْتِحُ فِيْهَا وَلَايَتَعَوَّذُ وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ اِلَّا فِي التَّكْبِيْرَةِ الْاُوْلٰى وَاِذَا رَفَعَ رَاْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِي الرَّكْعَةِ اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى وَجَلَسَ عَلَيْهَا وَنَصَبَ الْيُمْنٰى نَصْبًا وَيُوَجِّهُ اَصَابِعَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ وَيَضَعُ يَدَيْهِ عَلٰى فَخْذَيْهِ وَيُفَرِّجُ اَصَابِعَهُ لَاكُلَّ التَّفْرِيْجِ.

**ژباړه:** چي کله ولاړ سي او مطمئن سي نو په کښته کېدو سره تکبير، د ورغوو ماينځ دي پر مځکه کښېږدي او خپل بازو دي د اړخو څخه پورته کښېږدي او خپل نس دي د ورنو څخه جلا ونيسي او ښځه دي په خپله سجده کي پوره کښته سي او خپل نس دي د ورنو سره يوځای کړي، او لمونځ کونکی به درې واره په سجده کي سبحان ربی الاعلی وايي او دا کم دي که يي د دې څخه زيات کړي نو بهتره ده، په

طاق عدد به یې ختمه وي د دې وروسته دې خپل سر پورته کړي کښېني به نې او دواړه لاسونه دې په خپل ورنو باندې کښېږدي چې کله کښېني مطمئین سي نو دې تکبیر ووایي او دوهمه سجده دې وکړي او که چېرې یې معمولي سر پورته کړ نو به کتل کیږي که چېرې د ناستې ځخه زیات و سجدې ته نژدې وو نو جائز نه ده او په ملتقط کې ذکر دي چې جائز ده، چې کله د دوهمې سجدې ځخه فارغه سي نو دې ولاړ سي او نه دې کښېني او په لاسو سره دې پر مځکه باندې ټینګ نه لګوي مګر د عذر په وجه پرواه نه که یې، په دوهم رکعات کې دې هم دغه افعال وکړي لکه ځنګه چې یې په اول رکعات کې وکړل مګر ثناء به نه وایي او نه به تعوذ وایي او نه به دواړه لاسونه پورته کوي مګر نه په اول تکبیر کې، چې کله یې په دوهم رکعات کې د دوهمې سجدې ځخه سر پورته کړ نو دې چپه پښه وغوړوي او په هغه دې کښېني او راسته پښه دې ودروي او ګوتې دې د قبلې وطرف ته سیده کړي او دواړه لاسونه په خپل ورنو باندې کښېږدي او ګوتې دې خلاصې کړي مګر ډېرې دې نه خلاصه یې.

**تشریح**: چې کله لمونځ کونکی د رکوع ځخه سیده ودرېږي نو په تکبیر ویلو سره دې سیده وسجدې ته ولاړ سي او تعدیل د ارکانو یعنې قومه وجلسه د امام ابویوسف رحمه الله په نِز فرض دي او د طرفینو په نِز واجب دي، د نارینه لپاره د سجدې کیفیت دادی چې د ټولو اول ځنګونه پر مځکه کښېږدي او دواړه لاسونه دې پر مځکه ولګوي او مخ دې د دواړو لاسو په مابینځ کې او دواړه لاسونه دې د غوږو په مقابل کې کښېږدي، دلیل د وائل بن حجر رضي الله عنه حدیث دی چې دی وایي چې" ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ولیدی چې علیه السلام به دغسې وکړه خپل نس مبارک به یې د نس ځخه جلا ایښووی او اوږې یې د مځکې ځخه پورته ایښوولې تر دې پورې که چېرې د بزې بچې د علیه السلام مبارک د لاسو لاندې تیریدل غوښتل نو تیریدای سوای، البته لاسونه دې دومره نه غوړه وي چې یو درد محسوس کړي،

کوتي دي حتی الوسعه قبلې ته سیده کړي ولې چې علیه السلام ویلي دي چې کله مؤمن بنده سجده کوي نو د هغه هر اندام سجده کوي، نو درې واره دي سبحان ربی الاعلی ووایي د درو وارو څخه کمول مکروه دي مګر په دې باندي اضافه کول مستحب دي په دې شرط چي په طاق عدد ختم سي.

ښځه دي د سجدې په وخت کي ښه پسته سي یعني مځکي ته دي نژدې سي او نس دي د ورنو سره یوځای کړي ولې چي په دې ډول سجده کولو کي د ښځي لپاره زیات ستر دی او د ښځو څخه ستر مطلوب دی، بیا دي د اولي سجدې څخه سر پورته کړي او تکبیر دي ووایي، په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي څومره سر پورته کول ضروري دي، ځینو علماؤ ویلي دي که چېري یې دومره مقدار سر پورته کړ چي لیدونکی دا وګڼي چي هغه د دوهمي سجدې لپاره خپل سر پورته کړی دی، او ځینو ویلي دي چي رفعه ادنٰی مقدار یعني چي په هغه د سر پورته کولو اطلاق کیدی سي دا قدر سر پورته کول معتبر دی، مګر صاحب د کتاب د قول اصح نقل کولو سره ویلي دي که چېري یې دومره پورته کړ چي په نسبت د ناستي وسجدې ته ډېر نژدې وو نو دوهمه سجده نه ده جائز که چېري د سجدې په نسبت ناستي ته زیات نژدې وو نو جائز ده ولې چي هغه په دې صورت کي ناست شمارل کیږي او دوهمه سجده متحقق کیږي، د اول رکعات د فراغت څخه وروسته به لمونځ کونکی دوهم رکعات کوي او هغه ټوله کارونه به کوي چي په اول رکعات کي یې کړي وي مګر په دوهم رکعات کي ثناء او اعوذبالله دي نه وایي او نه دي په تکبیر سره لاس پورته کوي چي کله د دوهم رکعات د دوهمي سجدې څخه سر پورته کړ نو دي چپه پښه وغوړوي په هغه دي کښیني او راسته دي ودروي، ښځه دي په خپل چپه کوناټي باندي کښیني او دواړي پښې دي راسته طرف ته وباسي ولې چي دا ډول ناسته د ښځي لپاره زیاته پرده ده.

ثُمَّ يَتَشَهَّدُ وَيَقُوْلُ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰتُ وَالطَّيِّبٰتُ اِلٰى قَوْلِهٖ عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ وَلَايَزِيْدُ عَلٰى هٰذَا فِى الْقَعْدَةِ الْاُوْلٰى فَاِنْ زَادَ قَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ اِذَاقَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ سَاهِيًا يَجِبُ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ وَعَنْ اَبِيْحَنِيْفَةَ اِذَاكَانَ حَرْفًا فَعَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ وَاَكْثَرُ الْمَشَايِخِ عَلٰى ذَا فَاِذَاقَامَ اِلَى الثَّالِثَةِ لَايَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ وَاِنِ اعْتَمَدَ فَلَابَأْسَ بِهٖ وَاِنْكَانَتِ الصَّلٰوةُ فَرِيْضَةً فَهُوَ مُخَيَّرٌ فِيْمَا بَعْدَ الْاُوْلَيَيْنِ بَيْنَ اَنْ يَّقْرَءَ وَبَيْنَ اَنْ يُّسَبِّحَ وَبَيْنَ اَنْ يَّسْكُتَ وَالْقِرَائَةُ اَفْضَلُ فَاِنْ قَرَءَ يَقْرَءُ الْفَاتِحَةَ فَحَسْبُ وَلَايَزِيْدُ عَلَيْهِ شَيْئًا فَاِنْ ضَمَّ السُّوْرَةَ سَاهِيًا يَجِبُ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ فِيْ قَوْلِ اَبِيْ يُوْسُفَ وَفِيْ اَظْهَرِ الرِّوَايَاتِ لَايَجِبُ وَاَمَّا اِذَا كَانَتِ الصَّلٰوةُ سُنَّةً اَوْنَفْلًا فَيَبْدَءُ فِى الرَّكْعَةِ الثَّالِثَةِ كَمَا يَبْتَدِئُ فِى الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى يَعْنِيْ اَنَّهٗ يَاْتِيْ بِالثَّنَاۤءِ وَالتَّعَوُّذِ لِاَنَّ كُلَّ شُفْعٍ مِّنَ النَّفْلِ صَلٰوةٌ عَلٰحِدَةٌ.

**ژباړه:** بيا دي التحياته ووايي" التحيات لله والطيبات..... تر عبده ورسوله "پوري او په اوله ناسته کي دي د دې څه زياتوال نه کوي که چېري يې زياتوالی وکړ نو ځينو علماؤ ويلي دي چي کله" اللهم صلي على محمد وعلى ال محمد "په غلطی سره ووايي نو په هغه د سهوي دوې سجدې واجب دي او د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی چي په يوه حرف سره هم په هغه باندي سجده سهوه شته او اکثرو علماء وو په دې قول دی، نو چي کله د دريم رکعات لپاره ولاړېږي نو په مځکه باندي دي لاسونه ټينګ نه لګوي که چېري يې ولګوي نو هيڅ قباحت نشته او که چېري فرض لمونځ وي نو د هغه په اول رکعاتو کي اختيار دی که قرآئت وايي او که چپ پاته

کیږي او قرآئت افضل دی چي کله قرآئت وايي نو فقط سورة فاتحه کافي ده او په دې باندې دي هيڅ نه اضافه کوي که چېرې يې په غلطۍ سره سورة ورسره کړ نو د امام ابويوسف رحمه الله په قول په هغه باندې سجده سهوه واجب ده او په اظهر الرواياتو کي واجب نه ده او چي کله لمونځ نفل يا سنت وي نو دريم رکعات دې د اول رکعات په مثل شروع کړي يعني دا چي ثناء او اعوذبالله ووايي ولي چي د نفل دواړه رکعاتونه جلا جلا لمونځ دی.

**تشريح**: په اوله ناسته او دوهمي ناستي دواړو کي د اصح قول پر بنا د التحياتي مختلف الفاظ منقول دي علماء احنافو د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه التحياته اختيار کړي ده ولي چي ابن مسعود رضي الله عنه وايي چي عليه السلام مبارک زما لاس ونيوی او ماته يي د التحياتي تعليم راکړ او د عليه السلام په لاس نيولو سره تعليم ورکول مفيد تاکيد دی، اکثره محدثينو د ابن مسعود رضي الله عنه التحياته دنورو په مقابله کي د سَنَد په لحاظ احسنه تسليم کړي ده او دا هم د صحيح سند سره مروي دی چي حضرت ابوبکر رضی الله تعالی عنه په منبر د عليه السلام مبارک خلکو ته د ابن مسعود رضي الله عنه د تشهد تعليم ورکړ.

په اوله ناسته کي دي په اندازه د التحياتي اضافه نه کوي که چېري يې سهوًا لږ اضافه وکړه نو په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي د څومره مقدار په زيادت سره سجده سهوه واجب ده؟ صاحب د کبيري د مختلفو اقوالو د نقل کولو وروسته د قول فيصله کړي ده چي کم از کم" اللهم صلي على محمد "پوري ويل يا په دومره مقدار د چپ کښېني نستلو سره چونکي د بل رکن يعني ولاړي تاخير محقق کيږي د دې لپاره سجده سهوه واجب ده او فقط د يوه حرف په زياتولو سره سجده سهوه نه ده واجب، د ماپښين ، ماخيګر او ماخستن اخيري دوو رکعاتو کي او د ماښام اخيري رکعات کي به سورة وايي، د سورة ورسره کولو وجوب په اولو دوو رکعاتو کي دی

که چېرې يې په غلطۍ سره سورت ووايه نو د اصح قول مطابق په هغه باندې سجده سهوه نشته ولې چې په دې رکعاتو کې هم قرآئت مشروع دی او په دې کې هيڅ مقدار معين نه دی، په نوافلو او سنتو کې مصنف رحمه الله وويل چې په دريم رکعات کې د اول رکعات په مثل ثناء او اعوذبالله او بسم الله دې ووايي ولې چې په نوافلو کې د څومره رکعاتو نيت وتړل شي بهر حال هغه په دوو دوو رکعاتو کې عليحده لمونځ شمارل کيږي، البته سنتې مؤکده لکه د ماپښين او د جمعې د سنتو په باره کې علماؤ ليکلي دي چې دا ټوله څلور رکعاته يو لمونځ دی د دې لپاره د حضراتو شيخينو رحمهم الله په نِز د يوې اولې ناستې په ترک کولو سره لمونځ نه فاسديږي نو د دې سنتو مؤکده په دريم رکعات کې ثنا او تعوذ دې هم نه وايي دغه ډول د نورو نوافلو په مثل په اوله ناسته کې د التحياتي وروسته درود يا دعا دې نه وايي بلکې د دريم رکعات لپاره ولاړيدل پکار دي.

وَيَقْعُدُ فِي الْقَعْدَةِ الْاَخِيْرَةِ مِثْلَ مَاقَعَدَ فِي الْاُوْلٰى وَالْمَرْاَةُ تَقْعُدُ عَلٰى اِلْيَتِهَا الْيُسْرٰى فِي الْقَعْدَتَيْنِ وَتُخْرِجُ كِلْتَا رِجْلَيْهَا مِنَ الْجَانِبِ الْاَيْمَنِ وَتَشَهَّدَ فَاِذَا اَتَمَّ التَّشَهُّدُ يُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ ﷺ وَيَسْتَغْفِرُ لِنَفْسِهِ وَلِوَالِدَيْهِ اِنْ كَانَا مُؤْمِنَيْنِ وَلِجَمِيْعِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَيَدْعُوْ بَالدَّعْوَاتِ الْمَاثُوْرَةِ وَبِمَا يَشْبُهُ اَلْفَاظَ الْقُرْاٰنِ وَلَايَدْعُوْبِمَا يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ نَحْوُ قَوْلِهِ اَللّٰهُمَّ اَلْبِسْنِيْ اَوْ اَللّٰهُمَّ زَوِّجْنِيْ فُلَانَةَ حَتّٰى لَوْقَالَ ذٰلِكَ فِيْ وَسْطِ الصَّلٰوةِ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ وَرُوِىَ عَنْ بُعْضِ الْمَشَايِخِ اَنَّهُ قَالَ لَايَقُوْلُ والصلوة على النبى وارحم محمداً واكثر المشايخ على انه يقول لِلتَّوَارُثِ فِيْهِ وَيَقُوْلُ وَرَحِمْتَ وَلَايَقُوْلُ تَرَحَمْتَ وَاِنْ قَال تَرَحَمْتَ بالتحفِيْفِ فَهُوَ خَطَاٌ وَلَوْقَالَ تَرَحَّمْتَ بِالتَّشْدِيْدِ يَجُوْزُ

وَلَايَقُوْلُ فِي الْحَالَيْنِ رَبَّنَا اِنَّكَ حَمِيْدٌ وَلَوْ قَالَ لَابَاسَ بِيْ وَيُشِيْرُ بِالسُّبَابَةِ اِذَا انْتَهٰى اِلَى الشَّهَادَتَيْنِ وَقَالَ فِي الْوَاقِعَاتِ لَايُشِيْرُ فَاِنْ اَشَارَ يَقْعُدُ الْخِنْنُصَرَ وَالْبِنْصَرَ وَيَحْلِقُ الْوُسْطٰى بِالْاِبْهَامِ.

**ژباړه:** په اخيره ناسته كي د اولي ناستي په راز كښينستل پكار دي او ښځه به په دواړو ناستو كي په چپه اړخ كښيني او دواړي پښي به چپه طرف ته راباسي چي كله التحياته پوره سي نو دي په عليه السلام درودشريف ووايي او د خپل مور او پلار لپاره كه چيري مومنان وي د هغوى لپاره او د ټولو مؤمنانو نر او ښځو لپاره دي مغفرت طلب كړي او د منقولو دعاؤ سره چي كوم الفاظ د قرآن سره مشابه دي په هغه سره دي دعا وكړي، او په هغه الفاظو سره دي دعا نه كوي چي د خلګو د كلام سره مشابه وي لكه څنګه چي ووايي يا الله ماته كالي راكړي يا الله ماته فلانۍ ښځه راكړي تر دې پوري كه چيري يي دا الفاظ د لمانځه په منځ كي ووېل نو د هغه لمونځ فاسديږي او د ځينو علماؤ څخه منقول دي چي په درود شريف كي وارحم محمد دي نه وايي او اكثره علماء وايي چي د توارث جاري كيدو په وجه دي دا الفاظ وايي او رحمت دي ووايي ترحمت دي نه وايي كه چيري په تخفيف سره ترحمت ووايي نو دا غلطي ده كه په تشدد سره ترحمت ووايي نو جائز دي او په دواړو حالتو كي" ربنا انک حميد مجيد "دي نه وايي كه چيري يي ووېل نو په دې كي هيڅ حرج نسته او چي كله شهادتينو ته راورسيږي نو دي په سبابه ګوتي سره اشاره وكړي، او په واقعات كي راغلي دي چي اشاره دي نه كوي كه چيري يي اشاره وكړه نو كوچنۍ او د څنګ والا ګوته په كړه اينبوولو سره د درمياني ګوتي سره دي حلقه جوړه كړي.

**تشريح:** مصنف رحمه الله وايي چي په اخيره ناسته كي دي هم د اولي ناستي په هيئت

ښني او ښځه به په دواړو ناستو کي د تورک په حالت کي کښيني او تورک دا دی
ښي په چپه اړخ باندي کښيني دواړي پښي راسته طرف ته وباسي ولي چي په دې
حالت کي د ښځي لپاره ډېر ستر دی، تر هغه پوري چي په قعده کي التحیاته پوره سي
نو دي په نبی علیه السلام باندي درود وویل سي او دا درود د فقهاؤ کرامو په نز
سنت دی، امام شافعي رحمه الله يي د فرضيت قائل دی مگر د شافعي رحمه الله مذهب
مشهوره امام علامه خطابي خپله ويلي دي چي په دې مسئله کي ماته د امام
شافعي رحمه الله هيڅ سند نه دی معلوم، صاحب کبيري ليکلي دي چي د امام
محمد رحمه الله څخه د درود شريف په باره کي پوښتنه وسوه چي کوم درود بايد وويل
سي نو ده وويل چي دا درود واياست (اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا
صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ . اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلٰى مُحَمَّدٍ
وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْد).
دغه درود د کعب بن عرجه رضی الله تعالی عنه په حديث کي صحيحين نقل کړی
دی او په اشرف الهدايه جلد دوهم کي مولانا جميل احمد سکروډوي ليکلي دي چي
حضرت علی ابن عباس او جابر رضی الله تعالی عنهما و عليه السلام مبارک ته
وويل چي موږ ته په تاسو باندي د سلام کولو طريقه خو معلومه ده مگر درود څه
ډول واستوو نو عليه السلام مبارک دا راز وويل (اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ
مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ . اَللّٰهُمَّ بَارِكْ
عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلٰى اِبْرَاهِيْمَ وَعَلٰى اٰلِ اِبْرَاهِيْمَ اِنَّكَ حَمِيْدٌ
مَّجِيْد)

د دغه درود په باره کي مصنف رحمه الله د وضاحت کولو سره وويل چي ځينو علماؤ د وارحم محمدا الفاظ نه ويل بهتر ګڼلي دي ولي چي انبياء عليهم السلام د هر ډول تقصيراتو څخه پاک دی او رحم د څه خطائي وروسته کيږي او اکثره علماء وايي چي چونکي دا الفاظ په روايت کي منقول دي د دې لپاره ويل پکار دي، تر دې وروسته مصنف رحمه الله وايي که چېري د تخفيف سره ترحمت يعني بسکون الراء دا الفاظ ووايي نو دا د لغت په اعتبار غلط دي بلکي بالتشدد الخاء يعني په باب تفعيل سره ترحمت ويل پکار دي، په دې درود کي د مصنف رحمه الله په نِز د فی العالمين وروسته د انک حميد مجيد الفاظ په حديث مبارک کي ثابت نه دي د دې لپاره يې نه ويلو ته بهتر ويلي دي، د دورد شريف د فراغت څخه وروسته په عربی ژبه کي د خپل مور او پلار لپاره او د ټولو مؤمنانو او مؤمناتو لپاره دي دعا کوي يعني چي کومي دعاګاني د عليه السلام مبارک او د هغه د مبارکو اصحابو څخه نقل سوي دي هغه دي وايي، او داسي دعا دي نه کوي چي د خلکو د خبرو سره مشابه وي يعني د کومو شيانو چي د بندګانو څخه غوښتل محال نه وي لکه اللهم زوجنا فلانة وغيره، چي کله په التحياته کي په اشهد الله ته را ورسيږي نو د اشارې ګوته دي د لا په وخت کي پورته کړي او په الا الله دي کښېږدي او دا اشاره کول د صحيح احاديثو څخه ثابته ده.

فَإِذَا فَرَغَ مِنَ الْاَدْعِيَةِ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَيَقُوْلُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَلَا يَقُوْلُ فِيْ هٰذَا السَّلَامِ وَبَرَكَاتُهٗ كَذَا ذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ وَيَنْوِيْ بِالتَّسْلِيْمَةِ الْاُوْلٰى عَنْ يَمِيْنِهٖ مِنَ الْمَلٰئِكَتِهٖ وَالْمُؤْمِنِيْنَ وَعَنْ يَسَارِهٖ مِثْلُ ذٰلِكَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَنْوِي الْحَفَظَةَ وَقَالَ بَعْضُهُمْ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَنْوِيْ جَمِيْعَ مَنْ مَعَهُ مِنَ الْمَلٰئِكَةِ لِاَنَّهُ قَدِ اخْتَلَفَ الْاَخْبَارُ قِيْلَ

انّ مَعَ كُلِّ مُؤْمِنٍ خَمْسًا مِّنَ الْمَلَآئِكَةِ وَقِيْلَ سِتُّوْنَ وَيَنْوِي الْمُقْتَدِيْ اِمَامَهُ بِالتَّسْلِيْمَةِ الْاُوْلٰى اِنْ كَانَ عَنْ يَمِيْنِهٖ اَوْ بِحِذَآئِهٖ وَفِي الْاُخْرٰى اِنْ كَانَ يُسَارِهٖ وَيَنْبَغِيْ اَنْ يَّكُوْنَ مُنْتَهٰى بَصَرِهٖ فِيْ قِيَامِهٖ اِلٰى مَوْضِعِ سُجُوْدِهٖ وَفِي الرُّكُوْعِ اِلٰى ظَهْرِ قَدَمَيْهِ وَفِي السُّجُوْدِ اِلٰى اَرْنَبَةِ اَنْفِهٖ وَفِيْ قُعُوْدِهٖ اِلٰى حِجْرِهٖ وَالسُّنَّةُ لِلْاِمَامِ السَّلَامِ اَنْ يَّكُوْنَ التَّسْلِيْمَةُ الثَّانِيَةُ اَخْفَضَ مِنَ الْاُوْلٰى وَمِنَ الْمَشَايِخِ مَنْ قَالَ يَخْفِضُ الثَّانِيَةَ.

**ژباړه:** نو چي كله د دعاوو څخه فارغه سي نو دي راسته طرف ته سلام وګرځوي السلام عليكم دي ووايي او په سلام كي دي وبركاته الفاظ نه وايي دا ډول په محيط كي مذكور دي، او د راسته طرف په سلام ګرځولو كي دي د ملائكه او د مؤمنانو نيت وكړي او چپه طرف ته هم داسي ووايي ځينو علماؤ ويلي دي چي د حفظه د فرشتو نيت دي وكړي او ځينو علماؤ ويلي دي د دې سره دي د ټولو موجوده فرشتو نيت وكړي ولي چي په دې باره كي احاديث مختلف دي، ويل سوي دي چي د هر مومن سره اووه، پنځه يا د يوه قول مطابق شپيته فرشتې دي.

مقتدى به د امام نيت كوي په اول سلام كي كه چېري هغه راسته طرف ته يا د هغه په برابر ولاړ وي او په دوهم سلام كي كه چېري چپه طرف ته وي او مناسب دى چي خپل نظر په ولاړه كي د سجدې وځاى ته او په ركوع كي پښو ته، او په سجده كي د پوزي نرمۍ ته، او په ناسته كه د خپل ځيګر وطرف ته كړي، د امام لپاره په سلام كي مسنون دي چي دوهم سلام د اول څخه كرار وي او ځينو علماؤ ويلي دي چي دوهم سلام خفيه وي.

**تشريح:** د درود شريف او د دعاء د فراغت څخه وروسته دواړه طرف ته دي سلام وګرځوي اول راسته طرف ته بيا چپه طرف ته او د سلام په الفاظو السلام عليكم كي

دي د وبركاته الفاظ نه اضافه كوي ولي چي د عبدالله بن مسعود ﷺ څخه داسي منقول دي، او د اول سلام ګرځولو په وخت كي دي د هغه خلګو نيت وكړي چي د هغه راسته طرف ته دي، كه انسانان وي او كه ملائكي، او دغه سي دي چپه طرف ته د سلام ګرځولو په وخت كي د هغو نيت دي وكړي چي د هغه چپه طرف ته وي، د مقتدي لپاره د امام نيت هم ضروري دی كه چيري امام راسته طرف ته وي يا محاذي وي نو په اول سلام كي دي د هغه نيت وكړي كه چيري چپه طرف ته وي نو په دوهم سلام كي دي د هغه نيت وكړي امام محمد رحمه الله ويلي دي كه چيري مقتدی سيده د امام شاته وي يعنی محاذي وي نو دي د دواړو طرفو په سلام كي د امام نيت وكړي او د امام لپاره په سلام ګرځولو كي سنت دادی چي دوهم سلام د اول په نسبت په آواز كي كښته وي مګر بالكل به خفيه نه وي، لكه څنګه چي د ځينو مشائخو خيال دی، وروسته د دې مصنف رحمه الله د لمانځه د اداب بيان كولو سره ودې خبري ته توجه راګرځولې ده، لمونځ كونكي ته په لمانځه كي دلته هغه كتل ته دي پكار بلكي په ولاړه كي د سجدې ځاى ته، په ركوع كي پښو ته، په سجده كي د پوزي نرمی ته او په ناسته كي د خپل ځيګر وطرف ته نظر كول پكار دي چي په لمانځه كي د حضوري كيفيت نصيب سي.

فَاِذَا تَمَّتْ صَلٰوةُ الْاِمَامِ فَهُوَ مُخَيَّرٌ اِنْشَآءَ اِنْحَرَفَ عَنْ يُسَارِهٖ وَاِنْشَآءَ اِنْحَرَفَ وَعَنْ يَمِيْنِهٖ وَاِنْشَآءَ ذَهَبَ اِلٰى حَوَائِجِهٖ وَاِنْ شَآءَ اسْتَقْبَلَ النَّاسَ بِوَجْهِهٖ وَهٰذَا اِذَالَمْ يَكُنْ بِحِذَآئِهٖ مُصَلٍّ سَوَآءٌ كَانَ الْمُصَلِّيْ فِي الصَّفِّ الْاَوَّلِ اَوِالْاٰخِرِ وَالْاِسْتِقْبَالُ اِلَى الْمُصَلِّيْ مَكْرُوْهٌ هٰذَا اِذَا لَمْ يَكُنْ بَعْدَ الْمَكْتُوْبَةِ تَطَوُّعٌ فَاِنْ كَانَ بَعْدَهٗ تَطَوُّعٌ يَقُوْمُ اِلَى التَّطَوُّعِ وَيُكْرَهُ تَاخِيْرُ السُّنَّةِ عَنْ حَالِ اَدَآءِ الْفَرِيْضَةِ فَاِذَا قَامَ اِلَى التَّطَوُّعِ لَايَتَطَوَّعُ فِيْ

مَكَانِهِ بَلْ يَتَقَدَّمُ اَوْيَتَاَخَّرُ اَوْ يَنْحَرِفُ يَمِيْنًا اَوْشِمَالًا اَوْيَذْهَبُ اِلٰى بَيْتِهٖ فَيَتَطَوَّعُ ثَمَّهُ وَمِنَ الْمَشَايِخِ مَنْ قَالَ اِنْ كَانَ اِمَامًا يَتَطَوَّعُ عَنْ يَسَارِ الْمِحْرَابِ وَقَالَ شَمْسُ الْاَئِمَّةِ الْحُلْوَانِيُّ هٰذَا اِذَا لَمْ يَكُنْ مِنْ قَصْدِهِ الْاِشْتِغَالُ بِالدُّعَآءِ فَاِنْ كَانَ لَهٗ وِرْدٌ يَقْضِيْهِ بَعْدَ الْمَكْتُوْبَاتِ فَاِنَّهٗ يَقُوْمُ عَنْ مُّصَلَّاهُ فَيَقْضِيْ وِرْدَهٗ قَآئِمًا وَاِنْ شَآءَ جَلَسَ فِيْ نَاحِيَةٍ مِّنَ الْمَسْجِدِ فَيَقْضِيْ وِرْدَهٗ ثُمَّ يَقُوْمُ اِلَى التَّطَوُّعِ كِلَاهُمَا مَرْوِيٌّ عَنِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَمَاذُكِرَ فِيْ اِبْتِدَآءِ الْمَسْئَلَةِ دَلِيْلٌ عَلٰى كَرَاهَةِ تَاخِيْرِ السُّنَّةِ وَمَاذُكِرَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ دَلِيْلٌ عَلَى الْجَوَازِ ذَكَرَهَا جَازَ وَالْاَحْسَنُ اَنْ يَتَطَوَّعَا فِيْ مَكَانٍ اٰخَرَ.

**ژباړه:** چي کله د امام صاحب پوره سي نو هغه ته اختيار دی که چېري وغواړي چي راسته طرف ته وګرځي او که وغواړي د خپل ضرورت پوره کولو لپاره دي ولاړ سي که چېري وغواړي نو خلګو ته دي مخامخ سي دا هلته دی چي کله د هغه په مقابل کي يو لمونځ کوونکی نه وي که لمونځ کونکی په اول صف کي وي او که په اخيري صف کي، د لمونځ کونکي مخته تېرېدل مکروه دي او دا هلته دي که چېري د فرائضو وروسته نوافل نه وي که چېري د دې وروسته نوافل وي نو دي د نوافلو د اداکېدو لپاره ودرېږي او د سنتو په ادا کولو کي د فرائضو وروسته ځنډوالی مکروه دی، نو چي کله د نوافلو لپاره ولاړ سي نو په دغه ځای دي نفل نه کوي بلکي مخ ته شاته راسته چپه طرف ته دي سي يا دي خپل کور ته ولاړ سي هلته دي نفل وکړي او د مشائخو څخه ځينو ويلي دي چي امام وي نو دي د محراب چپه طرف ته نوافل وکړي، او شمس الائمه حلواني رحمه الله ويلي دي چي دا هلته پکار ده چي کله د هغه په

دعا کي د مشغولیت اراده نه وي که چېري د هغه څه وظائف وي کوم چي هغه د
فرائضو وروسته ادا کوي نو هغه دي د خپل مصلې څخه ولاړ سي خپل وظایف دي
په ولاړه سره پوره کړي یا دي د مسجد په کونج کي کښیني او خپل ورد دي پوره
کړي، بیا دي د نوافلو لپاره ولاړ سي دا دواړه د صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه منقول دي
او کومه خبره چي د مسئلې په ابتداء کي مذکوره ده هغه د تاخیر سنت د مکروهیت
دلیل دی او چي په اخیر کي ذکر ده هغه په جواز دلیل دی دا په محیط کي ذکرسوي
دي او مقتدی و منفرد که چېري لږ ناوخته کړي نو بلا کراهته جائز دی که چېري
واړه په خپل ځایو کي د نوافلو لپاره ودرېدل نو جائز دی او بهتره داده چي دا دواړه
په یو بل ځای کي نوافل وکړي.

**تشریح**: د لمانځه د پوره کیدلو وروسته امام ته اختیار دی چي کوم طرف ته هغه
وغواړي بدل دي سي، ولي چي په مختلفو روایاتو کي د علیه السلام څخه په دواړو
جهتو کي منحرف کیدل یعني کله راسته او کله چپه طرف ته ګرځېدل ثابت دي او د
دې سره سره دا هم اختیار دی چي خپل د ضرورت لپاره ولاړ سي ولي چي کله لمونځ
پوره سي نو د خپل حوائجو پوره کولو په باره کي الله تعالی ویلي دي" فاقضیت
الصلوٰة فانتشروا فی الارض "یعنی چي کله لمونځ وسي نو د هغه وروسته په مځکه
کي وغوړیږئ، او اخر کم ازکم د اباحت لپاره وي نو د ضرورت پوره کولو لپاره تلل
مباح دي یا په راسته یا چپه جانب انحراف کولو په ځای بالکل خلکو ته مخامخ سي
لکه څنګه چي د سمره بن جبدب څخه په صحیحینو کي روایت دی چي علیه السلام
کله د لمانځه څخه فارغه سو نو به یې مخ مبارک زموږ وطرف ته کړ او په مسلم
شریف کي د جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روایت دی چي علیه السلام د سهار د لمونځ
کولو وروسته د خپل ځای څخه نه پورته کیدی تر هغه وخته پوري چي لمر به را
وختی او صحابه کرام رضي الله عنهم به د جاهلیت د کیسو په ذکر سره خندله او علیه السلام

مبارک به هم تبسم کوی، مګر امام ته د دې خبرې خیال کول پکار دي چې مخامخ تړک لمونځ نه کوي ولي چې د لمونځ کونکي په مخ کې کښېنستل او خبري کول مکروه دي، که چېرې د فرائضو وروسته یوڅه سنت مؤکده وي نو دي صرف" اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت یا ذالجلال والاکرام "ویلو وروسته دي فوراً د سنت کولو لپاره ولاړ سي ولي چې سنت د فرائضو څخه وروسته کول مکروه دي، یا مذکور بالا دعاء یعني اللهم انت السلام.....الخ څخه علاوه چې کومي دعاوي په احادیثو کي مذکوري دي هغه هم ویلای سي لکه څنګه چې په صحیحینو کي د حضرت مغیره رضی الله عنه څخه روایت دی چي علیه السلام د فرض لمانځه وروسته دا دعا کوله" لا اله الا الله وحده لاشریک له، له الملک وله الحمد وهو علی کل شئ قدیر الله لا مانع لما اعطیت ولا معطی لما منعت ولا ینفع ذالجد منک الجدة، مګر د فرائضو څخه علاوه د نوافلو او سنتو ادا کولو په وخت بالکل په هغه ځای درېدل نه دي پکار بلکي یو څو قدمه مخته یا شاته یا راسته یا چپه طرف ته کیدل پکار دي لکه څنګه چې امام ابوداود او امام ترمذي رحهم الله د مغیره بن شعبه څخه نقل کړی دی چي علیه السلام مبارک وویل چي امام دي په هغه ځای چېرې چې فرض لمونځ وکړي هلته دي لمونځ او نفل نه کوي تر دې پورې چې د هغه څخه واوړي، یا کورته ولاړ سي نور لمونځ هلته ادا کړي د دې لپاره چې په کور کي په نوافلو کولو کي ډېر احادیث وارد سوي دي مګر دا هلته دي چي کله د هغه یقین وي چي زه به په کور کي د لمانځه څخه علاوه په بل شي کي نه مشغولېږم، لکه څنګه چي په خلاصة الفتاوی کي ذکر سوي دي چي مثلاً که چېرې یو سړی د ماښام دری رکعته د فرض لمونځ ادا کولو وروسته د سنت ادا کولو اراده وکړي نو که چېرې د هغه دا بیره وي چي کورته ولاړ سم په یو بل مشغله کي به مشغول سم نو دا سړی دي سنت په مسجد کي ادا کړي که چېرې دا بیره نه وي نو په کور کي دي ادا

کړي او دا حال د ټولو سنتو دی، که د یوسړي د فرائضو وروسته د څه وظائفو او
اورادو کولو عادت وي نو هغه دي د خپل ځای څخه ولاړ سي په ولاړه کي دي خپل
وظائف پوره کړي یا د مسجد په یو کونج کي دي د ناستي په حالت کي پوره کړي،
صاحب کتاب وایي چي په ولاړي سره د وظائف ویل یا په ناستي سره د وظائف کول
دواړي طریقې د صحابه کرام رضوان الله تعالی علیهم اجمعین څخه منقولي دي، او
کومو علماؤ چي د سنتو و تاخیر ته مکروه ویلي دي د هغه څخه مراد مکروه تنزیهي
دي، دغه ډول د باجماعت لمانځه د فراغت څخه وروسته د جماعت والا د صفو
ماتول مستحب دي د دې لپاره چي نیوی راتلونکي سړی دا ګمان نه کړي محسوسه چي
جماعت تر اوسه پوري ستهٔ، او د صحیح قول مطابق امام او مقتدیانو دواړو لپاره د
خپلو ځایو څخه انحراف کول پکار دي که څه هم صاحب کتاب د دوی په مابینځ کي
فرق بیان کړی دی، البته امام چونکي پیشوا مقتدا وي د دې لپاره هغه ته عوام
الناس څخه زیات د مستحباتو خیال کول پکار دي او پر هغه د مکروهاتو څخه
احتیاط کول ضروري دي، د دې لپاره چي باعث د فتنې نه سي، والله اعلم و اتم.

# فصل په بیان کي د مکروهاتو او غیر مکروهاتو دی

## فَصْلٌ فِيمَا يُكْرَهُ فِي الصَّلٰوةِ وَمَا لَا يُكْرَهُ

يُكْرَهُ لِلْمُصَلِّيْ اَنْ يُّغَطِّيَ فَاهُ اِلَّا عِنْدَ التَّثَاؤُبِ وَالْاَدَبُ عِنْدَ التَّثَاؤُبِ اَنْ يَّكْظِمَ اِنْ قَدَرَ وَاِنْ لَّمْ يَقْدِرْ فَلَا بَأْسَ بِاَنْ يَّضَعَ يَدَهُ اَوْ كُمَّهُ عَلٰى فِيْهِ وَيُكْرَهُ الْاِعْتِجَارُ وَهُوَ اَنْ يَلُفَّ بَعْضَ الْعِمَامَةِ عَلٰى رَأْسِهِ وَيَجْعَلَ طَرَفًا مِّنْهُ شِبْهَ اُمْعُجَرٍ لِلنِّسَآءِ وَيَلُفَّ حَوْلَ وَجْهِهِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اَنْ يَّشُدَّهُ بِصِبْغٍ اَوْ يَلُفَّ ذَوَابَتَيْهِ حَوْلَ رَأْسِهِ كَمَا يَفْعَلُهُ النِّسَآءُ فِيْ بَعْضِ الْاَوْقَاتِ اَوْ اَنْ يَّجْمَعَ الشَّعْرَ كُلَّهُ مِنْ قِبَلِ الْقَفَاءِ وَيُمْسِكَهُ بِخَيْطٍ اَوْ بِخِرْقَةٍ كَيْلَا يُصِيْبَ الْاَرْضَ اِذَا سَجَدَ وَيُكْرَهُ وَضْعُ الْيَدِ قَبْلَ الرُّكْبَةِ اِذَا سَجَدَ وَرَفْعُهَا قَبْلَهَا اِذَا قَامَ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ وَيُكْرَهُ اَنْ يَّنْقُرَ كَنَقْرِ الدِّيْكِ وَاَنْ يُّقْعِيَ اِقْعَآءَ الْكَلْبِ وَهُوَ اَنْ يَّضَعَ اَلْيَتَيْهِ عَلَى الْاَرْضِ وَيَنْصِبُ فَخِذَيْهِ وَقِيْلَ اَنْ يَّنْصِبَ يَدَيْهِ اَمَامَهُ نَصْبًا وَالْاَوَّلُ اَصَحُّ وَاَنْ يُّفْرِشَ ذِرَاعَيْهِ اِفْتِرَاشَ الثَّعْلَبِ وَاَنْ يَّرْفَعَ يَدَيْهِ عِنْدَ الركوع وَعِنْدَ رَفْعِ الرَّأْسِ مِنَ الرُّكُوْعِ وَاَنْ يَّسْدِلَ ثَوْبَهُ وَهُوَ اَنْ يَّضَعَهُ عَلٰى رَأْسِهِ اَوْ كَتِفَيْهِ وَيُرْسِلَ اَطْرَافَهُ مِنْ جَوَانِبِهِ وَلَوْ صَلّٰى فِيْ قَبَآءٍ مُّطَرَّفٍ اَوْ بَارَانِيٍّ يَنْبَغِيْ اَنْ يُّدْخِلَ يَدَيْهِ فِيْ كُمَّيْهِ وَيَشُدَّ الْقَبَآءَ بِالْمِنْطَقَةِ اِحْتِرَازًا عَنِ السَّدْلِ وَعَنِ الْفَقِيْهِ اَبِيْ جَعْفَرٍ اَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ اِذَا صَلّٰى مَعَ الْقَبَآءِ وَهُوَ غَيْرُ مَشْدُوْدِ الْوَسْطِ فَهُوَ مُسِيْءٌ وَيُكْرَهُ اَنْ يَّلُفَّ اَوْ يَرْفَعَهُ كَيْلَا يَتَتَرَّبَ وَيُكْرَهُ كُلُّ مَاهُوَ مِنْ اَخْلَاقِ الْجَبَابِرَةِ.

**ژباړه:** د لمونځ کونکي لپاره د خولې پټول مکروه دي مګر د اړږمی په وخت کې مستحب دی که چېرې يې قدرت وي نو دي خوله بنده کړي او که قادر نه وي نو هيڅ باک نسته په خوله باندې دې خپل لاس يا لستوڼی کښېږدي او اعتجار مکروه دی.
اعتجار دې ته وايي چې د لنګوټي يوه حصه په سر باندې وتړي او د هغې يوه حصه د ښځو د معجر و طرف ته کړي او په مخ دې يې را وګرځوي، ځينو علماؤ ويلي دي چې د سر د شاه وخواته دې دسمال وتړي او کوپړۍ دې ښکاره پرېږدي او عکس مکروه دی، د دې شخصه مراد دادی چې ټوله وربښتان په ګوند سره ومبلوي يا دواړي ګوندي دي په سر راواړه وي لکه څنګه چې يې ځيني وختونه ښځي کوي يا دا چې ټوله وربښتان شاته د غاړي وخواته کړي په يوه تار يا کالو سره دي وتړي د دې لپاره چې کله هغه سجده کوي نو پر مځکه باندې نه لګيږي، د سجدې په وخت کې د لاسو په ځنګنو اېښوول او مخکي تر ولاړي پورته کول مکروه دي مګر چې د عذر د وجې شخصه وي هغه جلا دی، او دا مکروه دی چې د چرګي په ډول په سجدې باندې غوټه ووهي او دا چې د سپي په مثل کښيني يا دواړي اوږي په مځکه کښېږدي او دواړه ورنونه ودره وي او ويلي يې دي چې دواړه لاسونه مخته ودروي، او اول قول زيات صحيح دی او دا چې د ګيدړي په مثل خپل لاسونه وغوړوي او رکوع ته د تلو په وخت کې او د رکوع شخصه د پورته کېدو په وخت لاسونه پورته کړي او دا چې کالي داسي را وزړوي چې هغه د اوږو دواړو طرفو ته وزړوي، په قدوري کي راغلي دي چې هغه خپل کالي په سر يا په اوږو وزړوي او د کالو دواړه اطراف د خپلو دواړو اوږو طرف ته وزړوي، او که چېرې په منقش يا باراني چوغه که لمونځ وکړي نو مناسبه ده چې خپل دواړه لاسونه په دې لستوڼي کي داخل کړي او چوغه په پټی سره وتړي د دې لپاره چې د سَدَل شخصه احتراز وسي، او د فقيه ابو جعفر شخصه روايت دی چې کله څوک په داسي چوغه کي لمونځ وکړي چې په منځ کي تړلی نه وي نو

نه ګناهګار دی او مکروه دی چې هغه را ټوله کړي یا یې را پورته کړي چې په ګرز زدوړو نه سي، په لمانځه کي هر هغه فعل مکروه دی چې د متکبرینو د عاداتو څخه وي.

**تشریح:** مصنف رحمه الله په دې فصل کي د لمانځه مکروهات بیانوي مګر په دې ضمن کي د ځینو غیري مکروهاتو بیان هم کیږي ولي چې د ځینو اعمالو یو څه صورتونه مکروه او یو څه غیر مکروه دي.

د مکروه دوه قسمونه دي: (۱) مکروه تحریمي، (۲) مکروه تنزیهي چې ترک یې واجب دی مکروه تحریمي لازمي راځي او ترک د سنت بغیر د عذره مکروه تنزیهي لازمي راځي، او مصنف رحمه الله وایي چې په لمانځه کي یوزه خوله بغیر د څه عذره پټول مکروه دي مګر دا چې د اړیمی په وجه وي مګر د اړیمی راتلو په وخت کي هم بهتره ده چې څومره کیدای سي خوله دي د خلاصولو څخه وساتي، که چېري په دې نه وي قادر نو په خوله دي لاس یا لستوڼی کښیږدي لکه څنګه چې په ترمذي شریف کي روایت دی چې علیه السلام وویل اړیمی په لمانځه کي د شیطان له طرفه څخه ده چې کله خلګو ته اړیمی راسي نو حت المقدور دي خوله بنده ساتي، او په یوه روایت کي راغلي دي چې خپل لاس دي په خوله باندي کښیږدي.

اعتجار هم مکروه دی صاحب کتاب د علماؤ څخه د اعتجار مختلف اقوال نقل کړي دي، ځینو علماؤ ویلي دي چې د اعتجار معنی داده چې د سر یوه حصه په سر باندي وتړي پاته حصه د مخ په شاوخوا کي او د هغه لنګوټه د ښځو د معجر په مثل سي او معجر هغه کالو ته ویل کیږي چې ښځي خپل سر باندي تړي، او ځینو ویلي دي چې اعتجار دادی چې د سر شاوخوا په دسمال وغیره سره وتړي او کوپړی ایله پریږدي، د اعتجار تعریف په فتاوی قاضیخان کي ذکر سوی دی چونکي په اعتجار کي د ښځو سره تشبیه ده د دې لپاره مکروه دی، او په معقوص الشعر حالت

کي لمونځ کول مکروه دی یعني د سر وریښتان د سر په پورته حصې باندي وتړي لکه څنګه چي يې ځيني وختونه ښځي کوي او دغه عمل يې که چېري د لمانځه په دوران کي وکړ نو لمونځ فاسد دی ولي چي دا عمل کثير دی او دغه ډول لمونځ په تلوار سره د چرګ په ډول غوټه وهل مکروه تحريمي دی ولي چي په دې کي واجب طمانيه فوت کيږي، دغه ډول په لمانځه کي د سپي په مثل کښېنستل او په سجده کي د خپل لاسو غوړول مکروه دي، په مسند امام احمد کي د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه عليه السلام مبارک د درو خبرو څخه منعه کړم چي د چرګ په مثل غوټه ووهم او د سپي په مثل کښېنم او د کيدړي په مثل لاس وغوړوم، د کالو سدل کول مکروه دی یعنی چي کالي په خپل بدن باندي داسي را وغوړ وي چي د اغوستلو په شکل کي نه وي ولي چي امام داؤد د حضرت ابوهريره رضی الله تعالی عنه څخه روايت نقل کړی دی چي عليه السلام په لمانځه کي د سدل څخه منع کړي ده، دغه ډول و سجدې ته د تلو په وخت کي خپل لمن وغيره نيول په دې مقصد چي خاوري وغيره نه باندي ولګيږي مکروه دی، د صحاح سته حديث دی چي عليه السلام وويل چي ماته حکم را کړل سوی دی چي په اوو اندامو باندي سجده وکړم او زه وريښتان او کالي نه ونيسم.

المختصر دا چي هغه ټوله افعال په لمانځه کي مکروه دي چي د هغه څخه غرور او تکبر ښکاره يږي ولي چي په لمانځه کي د الله تعالی ومخته عاجزي کول پکار دي.

وَيُكْرَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ فِيْ اِزَارٍ وَّاَنْ يُّصَلِّيَ حَاسِرًا رَأْسَهُ تَكَاسُلًا اَوْتَهَاوُنًا وَلَا بَاْسَ اِذَا فَعَلَهُ تَذَلُّلًا وَّخُشُوْعًا وَيُكْرَهُ اَنْ يُّصَلِّيَ فِيْ ثِيَابِ الْبَذِلَةِ وَالْمَهَنَّةِ وَالْمُسْتَحَبُّ اَنْ يُّصَلِّيَ فِيْ ثَلٰثَةِ اَثْوَابٍ قَمِيْصٌ وَاِزَارٌ وَعَمَامَةٌ وَعَنْ اَبِيْ حَنِيْفَةَ اَنَّهُ كَانَ يَلْبِسُ اَحْسَنَ ثِيَابِهٖ لِلصَّلٰوةِ وَالْمَرْءَةُ تُصَلِّيْ فِيْ ثَلٰثَةِ اَثْوَابٍ قَمِيْصٌ وَخِمَارٌ وَمِقْنَعَةٌ وَيُكْرَهُ اَنْ يَرْفَعَ رَأْسَهُ

اَوْيَنْكِسَهُ فِي الرُّكُوْعِ وَاَنْ يَّبْعَثَ بِثَوْبِهِ اَوْبِشَيْءٍ مِّنْ جَسَدِهِ وَاَنْ يُّفَرْقِعَ اَصَابِعَهُ اَوْيُشَبِّكَ بَيْنَ اَصَابِعِهِ وَاَنْ يَّجْعَلَ يَدَيْهِ عَلٰى خَاصِرَتِهِ وَاَنْ يُّقَلِّبَ الْحَصٰى اِلَّا اَنْ لَّايُمَكِّنَهُ الْحَصٰى مِنَ السُّجُوْدِ عَلَيْهِ فَيُسَوِّيْهِ مَرَّتَيْنِ وَفِيْ اَظْهَرِ الرِّوَايَتَيْنِ اَنَّهُ يُسَوِّيْهِ مَرَّةً وَاَنْ يَّتَرَبَّعَ فِيْ جُلُوْسِهِ اِلَّا مِنْ عُذْرٍ وَاَنْ يُّغْمِضَ عَيْنَيْهِ وَاَنْ يَّلْتَفِتَ يَمِيْنًا اَوْشِمَالًا وَاَنْ يَّسْجُدَ عَلٰى كَوْرِ عِمَامَتِهِ وَاَنْ يَّتَنَحْنَحَ قَصْدًا يَعْنِيْ اِخْتِيَارًا اِذَاكَانَ صَوْتًا لَاحَرْفَ لَهُ وَكَذَالَوْكَانَ لَهُ حَرْفٌ وَاحِدٌ اَمَّا السُّعَالُ الْمَدْفُوْعُ اِلَيْهِ فَلَيْكُرَهُ وَالْاَحْسَنُ اَنْ يَّدْفَعَ سُعَالَهُ اَنْ قَدَرَ وَاَنْ يَّرُدَّ الْمُصَلِّيْ السَّلَامَ بِيَدِهِ وَاَنْ يَّحْمِلَ الصَّبِيَّ فِيْ صَلٰوتِهِ وَاَنْ يَّتَنَحْنَحَ قَصْدًا وَاَنْ يَّضَعَ فِيْهِ دَرَاهِمَ اَوْدَنَانِيْرَ بِحَيْثُ لَايَمْنَعُهُ عَنِ الْقِرَاءَةِ وَاِنْ مَنَعَهُ عَنْ اَدَاءِ الْحُرُوْفِ اَفْسَدَهَا وَاَنْ يَّنْفُخَ يَعْنِيْ نَفْخًا لَايُسْمَعُ صَوْتُهُ وَاَنْ يَّبْتَلِعَ مَابَيْنَ اَسْنَانِهِ اَنْ كَانَ قَلِيْلًا وَاِنْ كَانَ كَثِيْرًا زَائِدًا عَلٰى قَدْرِ الْحِمَّصَةِ تَفْسُدُ.

**ژباړه:** په لونګ کي ببله عذره لمونځ کول مکروه دي. ودغه شان نی او سستی په وجه سره په لڅ سر لمونځ وکړي، که د عاجزی په وجه وي نو هيڅ باک نسته. او مکروه دی چي د مزدوری په کالو کي لمونځ وکړي بلکي مستحب دی چي په درو کالو کي قميص، پرتوګ او په لنګوټه کي لمونځ وکړي او د امام ابوحنيفه رحمه الله څخه روايت دی چي هغه به د لمانځه لپاره خپل ځانګړي غوستل، او ښځي دي په درو کالو کي قميص لوی چادر او پوړني کي لمونځ وکړي مکروه دی چي په رکوع کي سر د خپل ملا څخه پورته يا کښته کړي او د چي خپل کالو يا د

جسم په يوه حصه بازى، كوي مگر دا چي په هغوى باندي سجده كول ممكنه نه وي نو هغه يو يا دوه واره برابر كړي او په اظهر رواياتو كي راغلي دي چي صرف يو وار دي برابر كړي، چي په لمانځه كي بېله عذره چارځانو كښيني او بل دا چي سترگي پټي كړي راسته يا چپه طرف ته وگوري او بل دا چي د لنگوټي په پيچ (وَل) باندي سجده وكړي او بل قصداً په خپل اختيار سره غاړه صفا كړي صرف اواز وي او يو حرف ادا نه وي يا صرف يو حرف ادا وي، ضروري ټوخي مكروه نه دى او بهتره داده كه چېري قادر وي نو ټوخي ودروي او بل چي په لمانځه كي د لاس په اشاره سره د سلام ځواب وركړي او يا په لمانځه كي كوچنى په غيږ كي ونيسي او دا چي قصداً پوزه صفا كړي او بل دا چي په داسي طريقه سره په خوله كي دراهم كښيږدي چي د قرآئت لپاره مانع وي نو لمونځ فاسده وي، او بل دا چي پوه كړي داسي پوه چي د هغه اواز څوك نه واوري او دا چي د غاښو په مابينځ كي بند شى تېر كړي كه چېري كم وي مگر چي كله د نخود د دانې د مقدار څخه زيات وي نو لمونځ فاسده وي.

**تشريح:** د مكروهاتو د بيان كولو سره مصنف رحمه الله وايي چي فقط يو چادر يعني تهبند يا صرف په پرتوگ كي بېله قميصه لمونځ كول مكروه دي البته كه چېري د عذر پر بنا وي يعني قميص يا دوهم چادر نه وي يا د لمونځ كونكي په بدن كي داسي زخم وي چي د هغه په وجه د قميص استعمال نه سي كولاى نو فقط په يوه چادر يا په پرتوگ كي لمونځ جائز دى مگر دا هم ضروري ده چي په هغه كي د نو څخه تر ځنگنو پوري پټ وي، د دې لپاره چي ستر د عورت وسي كه نه وي د فرض مقدار نه پوره كېدو په وجه لمونځ فاسد كيږي، دغه ډول خالصتاً د سُستى په بيناد باندي د تر په لڅ سر لمونځ كول مكروه دي، د محنت او مزدورى په كالو كي هم لمونځ كول مكروه دي ولي چي اكثره دا كالي خيرن وي او د الله تعالى په حضور كي په داسي كالو كي درېدل په كومو كي چي د خلكو ومخ ته په راتلو سره شرم

محسوس کیږي د لوی کومینګي خبره ده زمونږ د اکابرو رحمهم الله هم دغه معمول وو دی چي د لمانځه لپاره به يې ښه کالي اغوستل، لکه څنګه چي صاحب کتاب د امام الهمام قدوة الانان حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله عادت مبارک بيان کړی دی. دغه ډول په لمانځه کي يا د لمانځه څخه علاوه په عام حالاتو کي هم د ګوتو ټکان کول مکروه دي، په المصلی کي راغلي دي چي په ګوتو ټکان کول د قوم لوط عمل دی نو د دې مشابهت په وجه دا عمل مکروه دی، او که چېري په ډبرو والا مځکي باندي د سجدې کولو په وخت کي ډبري په سجده کولو کي مانع وي نو هغه يو يا دوه واره په لاس سره ليري کولای سي د دې څخه زيات په دې ډبرو مشغوله کېدل مکروه دي او په لمانځه کي چارځانو کښينستل ثابت دي، په لمانځه کي د سترګو پټول مکروه دي ولي چي دا د اهلِ کتابو عادت دی او عليه السلام د دا ډول کولو څخه منعه کړې ده او په لمانځه کي دلته هلته کتل هم مکروه دي په يوه روايت کي يې دا د شيطان په حصه ياده کړې ده او دغه ډول په لمانځه کي بېله د څه عذره پوره کل، ټوخل وغيره مکروه دي او هغه ټوخی په لمانځه کي ازخود راسي د هغه په باره کي هم چي څومره کېدی سي د نيولو کوشش دي وکړي، دغه ډول په لمانځه کي د سلام ځواب د لاس يا سر په اشارې سره ورکول مکروه دي البته که چېري يې د سلام په نيت د چا سره مصافحه وکړه نو لمونځ يې فاسديږي، دغه ډول په لمانځه کي د کوچني پورته کول مکروه دي او په يوه حديث کي راغلي دي چي عليه السلام مبارک خپله لمسۍ امامه بنت ابی العاص رضي الله عنها په خپلو اوږو مبارکو باندي پورته کړي وه نو دا د هغه زمانې روايت دی چي په هغه زمانه کي په لمانځه کي دا شيان مباح وه، په لمانځه کي د بلغم يا پوزي مواد غورځول مکروه دي البته د زکام يا سخت ټوخي په وجه چي کله د دې د غورځولو سره خلاصون نه وي نو دې په راسته چپه معمولي حرکت سره وغورځوي يا دې پخپل دُسمال يا په بل شي کي توه کړي

وروسته دې وموږي، او په لمانځه کي دي د قبلې وطرف ته نه توه که وي ولي چي په حديث مبارک کي د دې څخه ممانعت وارد سوی دی .

وَاَنْ يَّجْهَرَ بِالتَّسْمِيَةِ وَالتَّامِيْنِ وَاَنْ يُّتِمَّ الْقِرَاءَةَ فِي الرُّكُوْعِ وَاَنْ يَّعُدَّ الْاٰيَ اَوِ التَّسْبِيْحَ اَوِ السُّوْرَةَ يَعْنِي الْعَدَّ بِالْاَصَابِعِ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ وَقَالَا لَا بَاْسَ بِهٖ ثُمَّ مِنْ مَشَايِخِنَا مَنْ قَالَ لَاخِلَافَ فِي التَّطَوُّعِ اَنَّهٗ لَايَكْرَهُ وَمِنْهُمْ مَّنْ قَالَ الْخِلَافُ فِي التَّطَوُّعِ لَافِي الْمَكْتُوْبَةِ قَالَ اَبُوْجَعْفَرٍ فِيْمَا يَكْرَهُ وَفِي الْخَاقَانِيَّةِ اِنْ غَمَزَ بِرُؤُسِ الْاَصَابِعِ لَايَكْرَهُ وَفِيْ مَوْضِعٍ اٰخَرَ لَوِاحْتَاجَ اِلَيْهَا كَمَا فِيْ صَلٰوةِ التَّسْبِيْحِ عَدَّهَا اِشَارَةً بِالْاَنَامِلِ اَوْبِقَلْبِهٖ وَيَكْرَهُ اَنْ يَّتَّكِاَ عَلٰى حَآئِطٍ اَوْ وَعَلٰى عَصًا اِتِّكَاءً لَّامِنْ عُذْرٍ وَاَنْ يَّخْطُوَ خُطُوَاتٍ بِغَيْرِ عُذْرٍ هٰذَا اِذَا وَقَفَ بَعْدَ كُلِّ خُطْوَةٍ وَاِنْ لَّمْ يَقِفْ تَفْسُدُ اِذَا كَانَ بِغَيْرِ عُذْرٍ وَيَكْرَهُ اَخْذُ الْقُمْلَةِ اَوِالْبَرْغُوْثِ وَقَتْلُهُ اَوْدَفْنُهٗ وَلَابَاْسَ بِقَتْلِ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ قَالُوْا هٰذَا اِذَا لَمْ يَحْتَجَّ اِلَى الْمَشْيِ وَلَا اِلَى الْمُعَالَجَةِ فَاَمَّا اِذَا احْتَاجَ فَمَشٰى وَعَالَجَ تَفْسُدَ.

**ژباړه:** او دا چي په لمانځه کي په بسم الله سره او په اٰمين سره په زوره والی وکړي، يا دا چي قرآئت په رکوع کي پوره کړي ، د امام ابوحنيفهرحمه الله په نز مکروه دی چي آيات، تسبيحات يا سورتونه په ګوتو سره شمارکړي، صاحبين وايي چي په دې کي هيڅ باک نسته، زموږ علماؤ ويلي دي چي د نوافلو په باره کي هيڅ اختلاف نسته بلکي هغه په دې کي مکروه دي او ځينو ويلي دي چي اختلا ف خو په نوافلو کي دی په فرضو کي نه دی، ابو جعفررحمه الله ويلي دي چي دواړه مکروه دي او په خاقانيه

ي راغلي دي چي د ګوتو پر سرو يې اشاره وکړه نو هغه مکروه نه دی او دوهم ځای
ه چېري ضرورت وي لکه څنګه چي په صلٰوة تسبيح کي نو په ګوتو سره يا په زړه
ي شمارېږي، او مکروه دی چي په ديوال يا په لکړه بېله عذره تکيه ولګوي او دا
بي د عذره بغير څو قدمه واخلي او دا مکروه هلته دی چي کله د هر قدم وروسته
ودرېږي که چېري نه ودرېدی نو لمونځ مکروه کيږي چي کله بېله عذره وي نو مکروه
ی، د مار او لړم په قتل کولو کي هيڅ حرج نسته علماؤ ويلي دي چي دا حکم هلته
ی چي کله د راتلو يا تلو د ترکيب کولو محتاج نه وي که چېري د دې ضرورت وو
ا ولاړی او ترکيب يې وکړ نو لمونځ فاسد دی .

**تشريح**: په لمانځه کي د قرآئت په وخت کي دومره تلوار کول چي قرآئت په رکوع
كي مکمل سي ولي چي رکوع د قرآئت ځای نه دی، او په لمانځه کي د اياتو يا
تسبيحاتو شمارل مکروه دي البته په صلوٰة تسبيح کي ضرورتًا د دې اجازت ورکول
سوی دی مګر په صلوٰة تسبيح کي به هم واضحه اشاره نه وي بلکي د ګوتو په بندو
سره دي شمار کړل سي بلا عذره په لمانځه کي تکيه لګول مکروه دي دغه ډول په
لمانځه کي د کاهلۍ په ښکاره کولو سره راسته چپه طرف ته پښي کږېدل مکروه دي
بلکي په لمانځه کي چاق او چوبند تريدل پکار دي او په لمانځه کي د شپږو، کيکو
وغيره مړه کول د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز مکروه دی امام محمد رحمه الله ويلي
دي چي په دې کي هيڅ باک نسته امام قاضيخان د امام ابو حنيفه رحمه الله څخه دا
روايت نقل کړی دی چي کله د لمانځه په وخت کي دا شيان د ضرر سبب سي يعني د
لمانځه په وخت کي يې خوري نو د دفعي ضرر لپاره د هغو مړه کول بهتر دي او د
تقوی ژوندي پرېښودل مکروه دي ، دغه ډول د مار او لړم قتل کول هم په لمانځه
کي جائز دي لکه څنګه چي امام ترمذي روايت نقل کړی دی چي عليه السلام وويل
په لمانځه کي مار او لړم قتل کوئ البته که چېري د هغوی د مړه کولو لپاره د لوی

شي تيار کولو ضروت سي مثلاً د لکړي،ډبري وغيره پيدا کولو ضرورت پيښ سي نو د عمل کثير په وجه د ځينو علماؤ په نزد لمونځ مفسد دی.

وَيُكْرَهُ تَرْكُ الطَّمَانِيَّةُ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ وَتِكْرَارُ السُّوْرَةِ فِي الْفَرْضِ اِذَاكَانَ قَادِرًا عَلٰى قِرَاءَةِ سُوْرَةٍ اُخْرٰى وَلَايُكْرَهُ فِي التَّطَوُّعِ وَيُكْرَهُ تَطْوِيْلُ الرَّكْعَةِ الْاُوْلٰى عَلَى الثَّانِيَةِ فِي الْتَّطَوُّعِ اِلَّا اِذَاكَانَ مَرْوِيًّا اَوْمَاثُوْرًا وَتَطْوِيْلُ الثَّانِيَةِ فِيْ جَمِيْعِ الصَّلٰوتِ مَكْرُوْهٌ وَيُكْرَهُ نَزْعُ الْقَمِيْصِ وَالْقَلَنْسُوَةِ وَلَبْسُهُمَا بِعَمَلٍ يَسِيْرٍ وَيُكْرَهُ اَنْ يَّشُمَّ طِيبًا وَاَنْ يَّرْمِيَ بُزَاقَهُ اَوْنُخَامَتَهُ وَاَنْ يُّرَوِّحَ بِثَوْبِهِ اَوْبِمِرْوَحَتِهِ مَرَّةً اَوْمَرَّتَيْنِ وَاِنْ رَوَّحَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ مُتَوَالِيَاتٍ تَفْسُدُ وَاَنْ يَرْفَعَ كُمَّهُ اَلَى الْمِرْفَقَيْنِ وَاَنْ لَّايَضَعَ يَدَهُ فِيْ مَوْضِعِهَا اِلَّامِنْ عُذْرٍ وَاَنْ يَّقْرَءَ الْقُرْاٰنَ فِيْ غَيْرِ حَالَةِ الْقِيَامِ وَاَنْ وَاَنْ يَّتْرُكَ التَّسْبِيْحَاتِ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ وَاَنْ يَّنْقُصَ مِنْ ثَلٰثِ تَسْبِيْحَاتٍ فِي الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدَ وَاَنْ يَّاْتِيَ بَالْاَذْكَارِ الْمَشْرُوْعَةِ فِي الْاِنْتِقَالَاتِ بَعْدَ تَمَامِ الْاِنْتِقَالِ وَفِيْهِ كَرَاهَتَانِ تَرْكُهَا فِيْ مَوْضِعِهِ وَتَحْصِيْلُهَا فِيْ غَيْرِ مَوْضِعِهِ وَيُكْرَهُ اَنْ يَّمْسَحَ عَرَقَهُ اَوِالتُّرَابَ عَنْ جُبْهَتِهِ فِيْ اَثْنَآءِ الصَّلٰوةِ اَوْفِي التَّشَهُّدِ قَبْلَ السَّلَامِ وَلَابَاْسَ لِلْمُتَطَوِّعِ الْمُنْفَرِدِ اَنْ يَّتَعَوَّذَ مِنَ النَّارِ اَوْاَنْ يَّسْئَالَ الرَّحْمَتَه عِنْدَ اٰيَةِ الرَّحْمَةِ اَوْ يَسْتَغْفِرَ وَاِنْ كَانَ فَى الْفَرْضِ يَكْرَهُ وَاَمَّا الْاِمَامُ وَالْمُقْتَدِىْ فَلَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ لَافِي الْفَرْضِ وَلَا فِي النَّفْلِ.

**ژباړه:** په رکوع او سجدو کي ترک طمانيت مکروه دی او په فرائضو کي د

سورت تکرار چي د بل سورت په قرآئت قادر وي او د دوهم رکعات اوږدول په هر لمانځه کي مکروه دي او په عمل یسیر معمولي حرکت سره د قمیص یا خولی اېستل یا اغوستل مکروه دي، او مکروه دی چي خوشبویي بوی کړي او ناړي یا د پوزي مواد خارج کړي او دا چي په خپلو کالو باندي پنکه ووهي که چېري یې درې واره متواتر پنکه ووهل نو لمونځ فاسد سو، او دا چي لستوڼي ترڅنګلو پوري پورته کړي او بل دا چي لاس د خپل ځای څخه علاوه بل ځای کښېږدي مگر نه د عذر په وجه، او بل دا چي د قرآن قرآئت د ولاړي څخه ما سوای بل ځای یې ووایي، او دا چي په رکوع او سجودو کي تسبیحات پرېږدي او دا چي د درې واري څخه یې کم کړي او دا چي د انتقالاتو جائز اذکار د منتقل کېدو وروسته وکړي او په دې کي دوه قسمه کراهیت دی یو دا چي د دې اذکارو په خپل ځای کي پرېښودل او دا چي د خپل ځای علاوه ادا کول، او مکروه دی چي د لمانځ په وخت د خپل تندي څخه په ناسته کي د سلام څخه تر مخه خوله یا خاوري صفا کړي او د یوازي لمونځ کونکي لپاره هیڅ باک نسته چي هغه د اور څخه پناه یا د ایت رحمت په ویلو سره د رحمت پوښتنه وکړي او د ځان لپاره د الله تعالی سره مغفرت طلب کړي که چېري په فرض لمانځه کي وي نو مکروه دی که چېري امام او مقتدی په جماعت سره لمونځ کوي نو دي په فرضو او نفلو دواړو لمنځو کي داسي نه کوي.

**تشریح:** د رکوع وروسته په قومه او د دواړو سجدو په مېنځ کي ناسته واجب ده او خلاف د واجب مکروه تحریمي دی د دې لپاره مصنف رحمه الله ترک طمانیت په مکروهات کي شمار کړي دي، د غه ډول په دوهم رکعات کي هغه اول سورت بلاعذره ویل مکروه دي البته که چېري یې بل سورت یاد نه وي نو هغه اول سورت ویلای سي یا مثلاً په اول رکعات کي د قران اٰخري سورت" قل اعوذ برب الناس " ووایي نو په دوهم رکعات کي بل سورت ویل مکرو نه دی او دا حکم د فرض لمانځه دی

چي په لمانځه کي دا ډول تکرار مکروه نه دی او په لمانځه کي د عمل يسير سره خولی یا بل شی پر سر ايښوول یا ليري کول دواړه مکروه دي مګر چي کله عمل کثير سي يعني په لمانځه کي دومره زيات حرکت وسي چي بل څوک دا ويني نو لمونځ کونکی د لمانځه والا نه کړي محسوس نو په دې سره لمونځ فاسد کيږي، په رکوع او سجده کي د تسبيحاتو بالکل پرې ښوول یا د درې واره څخه کم ويل د خلاف سنت کيدو په وجه مکروه دی، دغه ډول کوم اذکار چي د يوه رکن څخه بل رکن ته د منتقل کېدو په وخت کي ويل کيږي مثلاً د رکوع څخه د پورته کيدو په وخت کي" سمع الله لمن حمده "یا و سجدې ته د تلو په وخت کي الله اکبر ووايي نو دا اذکار به دا ډول ادا کول کيږي چي ځنګه د رکوع څخه پورته سي نو دي فوراً د"سمع الله لمن حمده "څخه شروع کړي او د ملا د سيده کولو پوري دي دا ختم کړي ولي چي دا اذکار د انتقالاتو لپاره وضعه کړل سوي دي نو چي کله دا اذکار د مکمل کيدو وروسته وويل سي نو هم کراهيت راځي يو دا چي دا اذکار يې په خپل مقاماتو نه کړه ادا بل دا چي په غير مشروع ځای کي يې ادا کړل .

وَلَابَأْسَ بِأَنْ يُّصَلِّيَ اِلٰى ظَهْرِ رَجُلٍ قَاعِدٍ يَتَحَدَّثُ اَوْيُصَلِّيْ وَبَيْنَ يَدَيْهِ مَصْحَفٌ مُعَلَّقٌ اَوْسَيْفٌ مُعَلَّقٌ اَوْعَلٰى بِسَاطٍ فِيْهِ تَصَاوِيْرُ وَلَايَسْجُدُ عَلَى التَّصَاوِيْرِ وَيَكْرَهُ اَنْ يَسْجُدَ عَلَيْهَا وَيَكْرَهُ اَنْ تَكُوْنَ فَوْقَ رَأْسِهِ فِي السَّقْفِ اَوْبَيْنَ يَدَيْهِ اَوْ بِحِذَآئِهِ تَصَاوِيْرُ اَوْصُوْرَةٌ مَوْضُوْعَةٌ اَوْمُعَلَّقَةٌ وَاَمَّا اِذَا كَانَتْ مَقْطُوْعَةَ الرَّأْسِ يَعْنِيْ بِهِ اِذَالَمْ يَكُنْ لَهُ رَأْسٌ اَوْكَانَ مَحَاهُ بِخَيْطٍ اَوْكَانَتْ صَغِيْرَةً لَاتَبْدُوْ لِلنَّاظِرِ فَلَايَكْرَهُ وَلَابَاْسَ بِاَنْ يُّصَلِّيَ عَلَى الطَّنَافِسِ وَاللُّبُوْدِ وَسَائِرِ الْفُرُشِ اِنْكَانَ الْمَفْرُوْشُ رَقِيْقًا وَالصَّلٰوةُ عَلَى الْاَرْضِ وَمَا اَنْبَتَهَاالْاَرْضُ اَفْضَلُ وَلَابَاْسَ بِاَنْ يَكُوْنَ مَقَامُ الْاِمَامِ فِي الْمَسْجِدِ وَسُجُوْدُهُ فِي الطَّاقِ وَيَكْرَهُ اَنْ يَقُوْمَ

الطَّاقِ وَيُكْرَهُ اَن يَّنْفَرِدَ فِيْ مَكَانٍ هُوَاَعْلٰى مِنْ مَكَانِ الْقَوْمِ اِذَا لَمْ يَكُنْ بَعْضُ الْقَوْمِ مَعَهُ فَاِنِ انْفَرَدَ بِالْمَكَانِ الْاَسْفَلِ اِخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْهِ وَيُكْرَهُ لِلْمُقْتَدِيْ اَنْ يَّقُوْمُ خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ اِلَّا اِذَا لَمْ يَجِدْ فِي الصَّفِّ فُرْجَةً وَكَذَا يُكْرَهُ لِلْمُنْفَرِدِ اَنْ يَّقُوْمَ فِيْ خِلَالِ الصَّفِّ فَيُصَلِّيْ فَيُخَالِفُهُمْ فِي الْقِيَامِ وَالْقُعُوْدِ.

**ژباړه:** او هیڅ باک نسته چې د خبرو والا شخص د ناست سړي تر شا لمونځ وکړي او د هغه مخته قران پاک یا ځړېدلي توره وي یا په داسي چټایي باندي لمونځ وکړي چې په هغه کي تصویرونه (عکسونه) وي او په تصویرو باندي سجده نه وکړي او مکروه دی چې د هغه د سر پورته یا د هغه مخامخ تصویر وي یا د هغه مخ ته بروت وي. ځړېدلی یو صورت وي مګر که چېري یې سر کاټ وي یعني سر یې نه وي یا یې سر وي مګر خراب کړی یې وي یا دومره کوچنی وي چې کتونکي ته نه ښکاره کیږي نو مکروه نه دی او هیڅ باک نسته چې لمونځ وکړي په چټایانو باندي او د وړی څخه په جوړ سوی فرش او په تمام غوړونکو شیانو باندي که څه هم نرم وي، او لمونځ په مځکه او په هغه شي چې مځکه شین کړی وي افضل دی، او هیڅ باک نسته چې د امام د ولاړي ځای په مسجد کي وي او د هغه سجوده په محراب کي وي، او مکروه دی چې په محراب کي ودریږي او مکروه دی چې د قوم د ځای څخه په لوړ ځای یوازي ودریږي چې کله د هغه سره د قوم هیڅ څوک نه وي که چېري یوازي په لاندي ځای کي ودرېدی نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی، د مقتدي لپاره مکروه دی چې یوازي د صف شاته ودریږي مګر نه چې په صف کي ګنجائش نه وي، دغه ډول د یوائي سړي لپاره مکروه دی چې د صف په مابینځ کي لمونځ وکړي په ولاړه او ناسته وغیره کي د خلکو مخالفت وکړي.

**تشریح:** ځینو علماؤ ذکر کړي دي چې اهل کتاب به د لمانځه په وخت کي د خپل

ځان سره مقدس کتاب اینښووی د دې لپاره چې کله قرآن پاک مخته وي نو د اهل کتاب سره د تشبیه په وجه دا سي کول مکروه دي مگر صاحب المصلی د هغو فقهاؤ قول اختیار کړی دی چې وایي چې اهل کتاب به د قرآئت لپاره خپل کتاب خپل مخ ته اینښودی د عبادت/سجدې لپاره نه لهذا که چېرې څوک د دې مقصد لپاره قرآن پاک مخته کښېږدي نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نِز مکروه دی دغه ډول د ځینو علماؤ د قول مطابق د توري د مخامخ کیدو په صورت کي هم لمونځ مکروه دی ولي چې دا آله د جنگ ده او لمونځ د عاجزۍ حالت دی نو دا د حالت د لمانځه مناسب نه دی، دغه ډول د یو روح لرونکي د تصویر مخامخ کیدل یا پورته یا راسته چپه طرف ته په وخت کي هم لمونځ مکروه دی البته که چېرې شاته وي یا لاندي د سجدې د ځای څخه علاوه بل ځای وي نو مکروه نه دی لکه څنگه چې د سجودو په بیان کي تیر سوی دی که چېرې د امام قدم په مسجد کي وي او سجده په محراب کي کوي نو دا نه دی مکروی د دې لپاره چې کله قدم په مسجد کي وي نو د مقتدیانو برابر دی که څه هم سجده په محراب کي دننه کیږي او که چېرې د امام قدم هم په محراب کي وي او یوائي ولاړ وي نو مکروه دی ولي چې دا د اهل کتابو طریقه ده چې هغوی به د خپل امام ځای مخصوص کوی او د فقیه ابوجعفر رحمه الله په وجه سره کراهت دا منقول دی چې په دې صورت کي په لیرو مقدیانو باندي د امام حال مخفي کیږي حاصل دا چې امام محمد رحمه الله په جامع الصغیر کي د امام په محراب کي دریدل مکروه لیکلي دي او هیڅ تفصیل یي نه وکړ د دې لپاره چې د کراهت په سبب کي مشائخو اختلاف وکړ ځینو د امام حالت مشتبه کیدل بیان کړ او ځینو د تشبیه د اهل کتاب ذکر کړ، لکه څنگه چې د امام سرخسي رحمه الله څخه دغه وجه د کراهت منقوله ده نهمه چې کله محراب نه د اهل کتاب د علیحده حجر په ډول وي نو په ده کي په مقتدیانو د امام حالت مشتبه کیږي نو په محراب کي دریدل مکروه نه دي لکه څنگه چې

شارح هدایه حافظ ابن الهمام رحمه الله ویلي دي چي د امام یو خاص مقام ممتاز کیدل شرعاً مطلوب دی او په هغه باندي مقدم کیدل واجب دي او محرابونه د دور نبوي څخه را روان دي نو په ځینو خبرو کي د اهل کتابو سره لږ موافقت څه نیوی خبره نه ده لهٰذا په محراب کي د امام درېدل مکروه نه دي پکار، دغه ډول د امام لپاره یوازي په پورته ځای باندي درېدل مکروه دي او د بلندی په مقدار کي د علماؤ اختلاف دی او مختار قول دادی چي دومره پورته والی مکروه دی په کوم سره چي د امام او خلکو امتیاز وسي، علامه شوکاني رحمه الله ښکاره الرایه هم دغه قول ګڼلی دی علامه شامي رحمه الله یوازي په پورته ځای درېدل مکروه تحریمي لیکلی دی، که چېري مقتدیان ټوله د امام څخه پورته وي او امام په لاندي ځای وي نو د اصح قول مطابق دا هم مکروه دی ولي چي په دې سره د امام حقارت لازم راځي، مګر په دې صورت کي کراهیت تنزیهي دی، دغه ډول مکروه دی چي کله په مخ صف کي ګنجائش وي او څوک شاته یوازي ودرېږي ولي چي علیه السلام مبارک د صفو د پوره کولو حکم کړی دی، دغه ډول ځینو علماؤ لیکلي دي که چېري په صف کي خالي ځای نه کړي پیدا نو بیا دي هم یواځي نه درېږي بلکي یو لمونځ کونکی دي د مخ صف څخه خپل په برابر راکش کړي مګر زموږ په زمانه کي نه کشول بهتر دی ولي چي په خلکو کي جهل زیات دی چي اکثره خلګ په مسئله د نه پوهیدو په وجه جنګ کوي.

وَتُكْرَهُ الصَّلٰوةُ فِي الطَّرِيْقِ الْعَامَّةِ وَتُكْرَهُ فِي الصَّحْرَآءِ مِنْ غَيْرِ سُتْرَةٍ اِذَا خَافَ الْمُرُوْرُ بَيْنَ يَدَيْهِ وَيُكْرَهُ فِي مَعَاطِنِ الْاِبِلِ وَالْمَزْبَلَةِ وَالْمَجْزَرَةِ وَالْمُغْتَسَلِ وَالْحَمَّامِ وَالْمُقْبَرَةِ وَعَلٰى سَطْحِ الْكَعْبَةِ وَفِي الْفَتَاوٰى اِذَا اَعْدَمُوْا مَوْضِعًا فِي الْحَمَّامِ لَيْسَ فِيْهِ تِمْثَالٌ وَصَلّٰى فِيْهِ لَا بَاْسَ وَكَذَا فِي الْمَقْبَرَةِ اِذَا كَانَ فِيْهَا مَوْضِعٌ اُعِدَّ لِلصَّلٰوةِ وَلَيْسَ فِيْهِ قَبْرٌ

وَيُكْرَهُ اَنْ يَقْرَءَ كَلِمَةً اَوْكَلِمَتَيْنِ مِنْ سُوْرَةٍ ثُمَّ يَتْرُكَ وَيَبْدَأُ مِنْ سُوْرَةٍ اُخْرٰى وَيُكْرَهُ
لِلْاِمَامِ اَنْ يَؤُمَّ قَوْمًا وَهُمْ لَهُ كَارِهُوْنَ بِخَصْلَةٍ وَاَنْ يَشُقَّ عَلَيْهِمْ بِالتَّطْوِيْلِ وَاَنْ
يُعَجِّلَهُمْ عَنْ اِكْمَالِ السُّنَّةِ وَاَنْ يُلْجِئَهُمْ اِلَى الْفَتْحِ عَلَيْهِ وَعَلَيْهِ اَنْ يَقْرَءَ مَاتَيَسَّرَ
مِنَ الْقُرْاٰنِ وَاَنْ عُرِضَ لَهُ شَيْءٌ اِنْتَقَلَ اِلٰى اٰيَةٍ اُخْرٰى اَوْيَرْكَعُ اِنْ قَرَءَ مَايَكْفِيْهِ
وَيُكْرَهُ اَنْ يَمْكُثَ فِيْ مَكَانِهِ بَعْدَ مَاسَلَّمَ فِيْ صَلٰوةٍ بَعْدَهَا سُنَّةٌ اِلَّا قَدْرَمَا يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ
اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ يَاذَا الْجَلَالِ وَالْاِكْرَامِ وَبِهِ وَرَدَالْاَثَرُ وَيُكْرَهُ
تَقْدِيْمُ الْعَبْدِ وَلْاِعْرَابِيِّ وَالْاَعْمٰى وَالْفَاسِقِ وَوَلَدِ الزِّنَا فَاِنْ تَقَدَّمُوْا جَازَ اَرَادَ
بِالْاِعْرَابِيِّ الْجَاهِلَ وَيُكْرَهُ التَّنَفُّلُ قَبْلَ صَلٰوةِ الْعِيْدِ وَبَعْدَهَا فِي الْجَبَّانَةِ وَيَتَنَفَّلُ فِيْ
مَسْجِدِهٖ اَوْفِيْ بَيْتِهٖ وَيُكْرَهُ اَنْ يَدْخُلَ فِي الصَّلٰوةِ وَقَدْ اَخَذَهُ غَائِطٌ اَوْبَوْلٌ وَاِنْ كَانَ
الْاِهْتِمَامُ بِهِمَا يَشْغَلُهُ عَمَّا يَقْطَعُهَا وَاِنْ مَضٰى عَلَيْهَا اَجْزَاهُ وَقَدْ اَسَاءَ وَكَذَا اِنْ
اَخَذَهُ بَعْدَ الْاِفْتِتَاحِ وَيُكْرَهُ اَنْ تَكُوْنَ قِبْلَةُ الْمَسْجِدِ اِلَى الْمَخْرَجِ اَوْ اِلَى الْحَمَّامِ
اَوْقَبْرٍ وَاِنْ هُوَ فِيْ بَيْتِهٖ قِبْلَتُهٗ اِلَى الْحَمَّامِ فَلَابَأْسَ وَيُكْرَهُ الْمُرُوْرُ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ
اِذَا لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ حَائِلٌ نَحْوَ السُّتْرَةِ اَوِالْاُسْطُوَانَةِ اَوْنَحْوِهِمَا.

**ژباړه:** په شارع عام کې لمونځ کول مکروه دي او مکروه په صحرا کې بیله سُترې
چې کله مخته د تیریدو بیره وي او د اوښانو د کیښتلو په ځای کې. په قصابه
غسل خانه او مقبره کې او په سطح کعبه باندې مکروه دی. په فتاوی کې راغلي دي
چې کله په حمام کې یو داسې ځای جوړ سوی وي په کوم کې چې تصویر نه وي نو

په هغه کي يې لمونځ وکړ نو په دې کي هيڅ باک نسته او دغه ډول په مقبره کي چي
کله يې د لمانځه لپاره يو داسي ځاى جوړ کړى وي په کوم کي چي قبر نه وي او
مکروه دى چي يوه يا دوې کلماتي د يوه سورت څخه ووايي او پرېښودل سي او
دوهم سورت شروع کړل سي، د امام لپاره مکروه دى چي هغه د قوم امامت وکړي او
هغه د ده څخه د يوه عادت په وجه نفرت کوي يا په قوم باندي د طوالت په وجه بوج
راچوي يا د سنت مقدار په پوره کولو سره په هغوى زور وکړي يا د هغوى څخه د
لقمه ورکولو طمعه وکړي او په هغه باندي لازم دى چي په قرآن کي کوم هغه ته
اسانه وي هغه ووايي او که چېري د هغه لپاره څه بندش سي نو دوهم ايت ته منتقل
سي يا رکوع وکړي که يې په قدر د کفايت قرآئت ويلى وي او مکروه دى چي په
خپل ځاى باندى ولاړ اوسي د هغه لمانځه وروسته د کوم وروسته چي سنت وي مګر
دا قدر چي صرف" اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا زوالجلال والاکرام "
ووايي او په دغه باندي اثر وارد دى او مکروه دى د امامت لپاره د غلام، اعرابي،
ړوند، فاسق او حرامي مخته کول مګر که چېري مخته سو نو لمونځ جائز دى او د
اعرابي څخه مراد جاهل دى او په عيدګاه کي د اختر د لمانځه څخه دمخه نوافل
مکروه دي، په خپل کور يا مسجد کي لمونځ وکړي او مکروه دى چي په لمانځه کي
په داسي حالت کي داخل سي چي په هغه باندي د پاخانه يا بولو زور وي او که
چېري د هغو وطرف ته توجه هغه د لمانځه څخه مشغول کړي نو دي لمونځ قطعه
کړي او که چېري يې لمونځ وکړ نو جائز دى مګر ګناهګار سو، دغه ډول که چېري د
شروع کولو وروسته په هغه بوج سو او مکروه دى چي مسجد قبله د بيت الخلا يا
حمام يا قبر وطرف ته وي او کد يې په خپل کور کي لمونځ وکړ او د هغه قبله د
حمام وطرف ته وه نو هيڅ باک نسته او مکروه دى د لمونځ کونکي مخ ته تيريدل
که کله د هغه مخ ته څه حائل نه وي لکه سُتره يا ستن يا د هغو په مثل يو بل شي.

**تشریح**: په کومه لار چي د عامو خلګو تګ راتګ وي په هغه کي لمونځ کول مکروه دي ولي چي د خلګو عام تیرېدلو په وجه په لمانځه کي خشوع او خضوع نه پاته کیږي او په یوه روایت کي دي چي نبی کریم صلی الله علیه وسلم په اووه ځایو کي د لمونځ کولو څخه منعه کړي ده د کوم څخه چي یوه لار هم ده، د قرآئت ویلو په وخت کي یوه یا دوې کلمې ویلو وروسته دوهم سورت شروع کول مکروه دی ولي چي دا ډول د یوه ایت په بل ایت باندي بلا دلیله د فضیلت شائبه پیدا کیږي د دې لپاره که چېري د عذر په وجه وي یعي چي کله دا ایت په کوم چي یې شروع کړي ده ایریي سي او په قدر د میاجوز به الصلوة هم نه وي کړی نو د بل ایت وطرف ته منتقل کېدل مکروه نه دی، د داسي امامت هم مکروه دی د چا څخه چي قوم د یوه مکروه خصلت په وجه منتفر وي او په حدیث شریف کي راغلي دي د داسي امام د لمانځه د نه قبولیت عذاب راغلی دی مګر که چېري د قوم نفرت بلا د څه شرعي عذر خاص د ذاتي عناد په وجه وي نو د الله تعالی په نِز داسي خلګ خوښ نه دي بلکي په یوه حدیث کي علیه السلام مبارک د کامل ایمان دا علامه بیان کړي ده چي د کامل ایمان والا محبت او نفرت صرف د الله تعالی لپاره دی، د امام په مقدر د سنت قرآئت اوږدول چي په قوم بوج سي مکروه دی دغه ډول د قوم په مطالبه باندي د مقدار سنت څخه کمول هم مکروه دی او د فرائضو کولو وروسته تر ډېره پوري کښینستل هم مکروه دي او د امامت لپاره د غلام یا صحرایي مخته کول هم مکروه دی ولي چي په هغوی کي جهل غالب وي او د مسائل نماز او مسائل امامت څخه خبره وي، د ړانده امامت هم مکروه دی ولي چي هغه د بینا انسان په مثل صفيي نه سي کولای او نه د قبلې وطرف ته صحیح مخ کولای سي، د فاسق او حرامي امامت د دې لپاره مکروه دی چي هغه د خلګو په نظر کي حقیر کتل کیږي او د امام رتبه بلنده ده مګر که چېري د دا مذکور بالا خلګو څخه څوک مخته سي امامت وکړي نو

جائز دی او د دې لمانځه اعاده نسته، د اختر په ورځ په عیدګاه د اختر د لمانځه څخه ترمخه یا وروسته نوافل مکروه دي البته د اختر د لمانځه وروسته د عیدګاه څخه علاوه بل ځای نوافل کولای سي، لمونځ کول د بولو وبیزار د زور سره یا د دوی څخه د یوه سره یا د هوا د نیولو سره مکروه تحریمي دی د ابو داود شریف په یوه روایت کي دی چي حلال نه دی یوه ته چي ایمان لري چي لمونځ وکړي په داسي حالت کي چي هغه بولي ټینګي کړي وي تر هغه وخته پوري چي د هغه څخه فارغه سي، دغه صورت د پاخانه هم دی، د مسجد د محراب مخته ګندګي کوړه جوړول مکروه دی ولي چي په دې ترک تعظیم لازم راځي او په مسجد کي بدبویي محسوسه کیږي لهٰذا د دې خبرو څخه اجتناب کول پکار دي الغرض دا چي هر هغه فعل په لمانځه کي مکروه دی چي په توجه الی الله کي فرق راولي۔

# فصل د سنتو په بيان کي

(فَصْلٌ فِي السُّنَنِ)

اَوَّلُهَا الْاَذَانُ وَرَفْعُ الْيَدَيْنِ مَعَ التَّكْبِيْرِ وَنَشْرُ الْاَبَعِ وَجَهْرُ الْاِمَامِ بِالتَّكْبِيْرِ وَالثَّنَآءُ وَالتَّعَوُّذُ وَالتَّسْمِيَّةُ وَالتَّامِيْنُ وَالْاِخْفَآءُ بِهِنَّ اِمَامًا كَانَ اوْمُقْتَدِيًا وَوَضْعُ الْيَمِيْنِ عَلَى الشِّمَالِ وَتَحْتَ السُّرَّةِ لِلرِّجَالِ وَعَلَى الصَّدْرِ لِلْمَرْاَةِ وَالتَّكْبِيْرَاتُ الَّتِيْ يُؤْتٰى بِهَا فِيْ خِلَالِ الصَّلٰوةِ وَتَسْبِيْحَاتُ الرُّكُوْعِ وَتَسْبِيْحَاتُ السُّجُوْدِ وَاَخْذُ الرُّكْبَتَيْنِ بِلْيَدَيْنِ فِي الرُّكُوْعِ مُنْفَرِجًا اَصَابِعَهُ وَافْتِرَاشُ الرِّجْلِ الْيُسْرٰى وَالْقُعُوْدُ عَلَيْهَا وَنَصْبُ الْيُمْنٰى وَالصَّلٰوةُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمْ بَعْدَ التَّشَهُّدِ فِي الْقَعْدَةِ الْاَخِيْرَةِ وَالدُّعَآءُ بِمَا يُشْبِهُ اَلْفَاظَ الْقُرْاٰنِ وَالْاِشَارَةُ بِالْمُسَبِّحَةِ عِنْدَ ذِكْرِ الشَّهَادَتَيْنِ فِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ كَمَا ذَكَرْنَا وَقِيْلَ قِرَآءَةُ الْفَاتِحَةِ فِي الْاُخْرَيَيْنِ فِي الْفَرَائِضِ وَالْخُرُوْجُ بِلَفْظِ السَّلَامِ وَالسَّلَامُ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَيُسَارِهٖ وَقِيْلَ بَعْضُ هٰذِي الْاَفْعَالِ اَدَبٌ وَمَاذَكَرْنَا مِمَّا سِوٰى ذٰلِكَ فَهُوَ اٰدَابٌ

**ژباړه**: اول سنت اذان دی، د تکبير سره د لاسو پورته کول ، د ګوتو خلاصول، د امام تکبير بالجهر کول، ثناء او اعوذبالله او بسم الله ويل او امين ويل په دې ټولو کي کراروالی دی که امام وي او که مقتدی، د راسته لاس په چپه اېښوول او د نارينه لپاره زيرناف او د ښځو لپاره په سينه لاس اېښوول او هغه تکبيرونه چي په مابينځ کي دلمانځه وي د رکوع او سجودو تسبيحات او په رکوع کي په خلاصو

ګوتو سره د څنګنو نیول او د چپه پښې په غوړولو سره په هغې کښېنستل د راسته پښې درول په اخیره ناسته کې د تشهد وروسته په نبی کریم صلی الله علیه وسلم باندې درود ویل، مشابه د قران الفاظو سره دعاء کول او د شهادتینو ویلو په وخت کې د ځینو روایاتو مطابق لکه څنګه چې موږ ذکر کړي دي د شهادت په ګوتې سره اشاره کول، او ویل سوي دي چې د فرائضو په اخیري دوو رکعاتو کې د فاتحې ویل او په لفظ سلام سره د لمانځه څخه وتل، راسته چپه طرف ته سلام ګرځول او ویل سوي دي چې د دوی څخه ځیني افعال مستحب دي او د هغوی څخه علاوه چې موږ ذکر کړه هغه آداب دی.

**تشریح**: د باجماعته پنځو لمنځو لپاره اذان که ادا وي او که قضا، د جمعې د لمانځه لپاره اذان او اقامت کول سنت دي او ځینو مشائخو د وجوب قول ویلی دی ولې چې امام محمد رحمه الله وایي که چېري جمله اهل بلد اذان پرېږدي نو موږ به د هغوی سره جنګ کوو، د جمهورو علماؤ په نز د اذان مشروعیت د هجرت وروسته په مدینه منوره کې د حضرت عبدالله بن زید رضی الله تعالی عنه د خوب څخه وسو، ملا علي قاري رحمه الله په مرقات کې لیکلي دي چې په دې باندې د امت اتفاق دی چې په وخت د تکبیري تحریمه رفع یدین منسون دی مګر لاسونه تر کوم ځایه پورته کول په دې سلسله کې روایتونه مختلف دي.

د احنافو رحمهم الله په نز د وائل بن حجر رضی الله عنه روایت ډېر معتبر دی چې په هغه کې نبی کریم علیه السلام به چې کله تکبیر وایه نو دواړه لاسونه به یې د غوږو په مقابل کې پورته کول البته ښځه به د سینې او د ثدینو (تیانو) په مقابل کې صرف د تروږو پوري لاس پورته کوی ولې چې دا طریقه د هغه لپاره د زیاتي پردې ده د تکبیري تحریمي وروسته د ولاړي په حالت کې په راسته لاس سره د چپه لاس نیول او زیرناف ایښوول سنت نبوي دی د دې وروسته په ثناء ویلو سره د سورت

فاتحې څخه ترمخه اعوذبالله او بسم الله په خفيه طور سره ويل لکه څنګه چې الله تعالی په قران پاک کې ويلي دي نو چې کله وايا ست قران نو د الله تعالی پناه واخلئ د شيطان مردود څخه، دغه ډول بسم الله هم په حديث مشهوره وو کي نقل ده، په رکوع کي په خلاصو ګوتو سره ځنګنونه نيول هم سنت دي لکه څنګه چې عليه السلام ته حضرت انس رضی الله عنه ويلي وه چې کله ته رکوع کوي نو دواړه لاسونه په خپلو ځنګنو باندي کښيږده او په ګوتو کي خلاصوالی وکړه چې کله د رکوع او سجودي څخه فارغه سي د ناستي کولو اراده يې وي نو مسنون دادی چې چپه پښه وغوړوي او راسته پښه ودروي او که چېري ښځه وي نو په خپل چپه کوناټي باندي دي کښيني او دواړي پښي دي راسته طرف ته وباسي ولي چې دا حالت د هغې لپاره زيات ساتِر دی، د لمانځه په اخيري ناسته کي په عليه السلام باندي درود ووايا ست او د ټولو مسلمانانو لپاره دعا وکړئ.

په صحيحينو کي د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې عليه السلام مبارک ارشاد وواېه چې کله ستاسي څخه څوک د اخيري التحياتي څخه فارغه سي نو د څلورو شيانو څخه دي د الله تعالی پناه وغواړي ۱ د عذاب جهنم، ۲ قبر، ۳ د ژوند او مرګ د فتنې څخه، ۴ او د فتنې مسح دجال د شر څخه.

## دا فصل په بيان کي د نوافلو دی

(فَصْلٌ فِي النَّوَافِلِ)

اِعْلَمْ اَنَّ السُّنَّةَ قَبْلَ الْفَجْرِ رَكْعَتَانِ وَاَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَانِ بَعْدَهَا وَاَرْبَعٌ قَبْلَ الْعَصْرِ وَرَكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَاَرْبَعٌ قَبْلَ الْعِشَآءِ وَاَرْبَعٌ بَعْدَهَا وَاِنْ شَآءَ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَمَا ذَكَرْنَا قَبْلَ الْعَصْرِ وَالْعِشَآءِ فَذٰلِكَ مُسْتَحَبٌّ وَفِي الْمُحِيْطِ اِنْ تَطَوَّعَ قَبْلَ الْعَصْرِ بِاَرْبَعٍ وَقَبْلَ الْعِشَآءِ بِاَرْبَعٍ فَحَسَنٌ لِاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يُوَاظِبْ عَلَيْهِمَا وَقَبْلَ الْجُمُعَةِ اَرْبَعٌ وَبَعْدَهَا اَرْبَعٌ وَعِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ سِتٌّ وَالْاَفْضَلُ عِنْدَنَا اَنْ يُّصَلِّيَ اَرْبَعٌ ثُمَّ رَكْعَتَيْنِ وَاَمَّا سُبْحَةُ الضُّحٰى فَقَدْ وَرَدَةِ الْاَحَادِيْثُ فِيْهَا مِنْ رَكْعَتَيْنِ اِلَى اثْنَتَيْ عَشْرَةِ رَكْعَةً ثُمَّ الْاَفْضَلُ فِيْ صَلٰوةِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ اَرْبَعُ رَكْعَاتٍ بِتَحْرِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ عِنْدَهٗ وَقَالَا فِي اللَّيْلِ رَكْعَتَانِ وَالزِّيَادَةُ عَلٰى ثَمَانِيْ رَكْعَاتٍ لَيْلًا وَعَلٰى اَرْبَعٍ نَهَارًا بِالْاِجْمَاعِ.

**ژباړه:** پوه سه چي د سهار څخه د مخه دوه رکعاته سنت او د ماپښين څخه د مخه څلور او وروسته دوه رکعاته دي او څلور د مازيگر څخه د مخه او دوه رکعاته د ماښام وروسته او د ماخستن څخه د مخه څلور او د هغه وروسته څلور رکعاته که يې هروخت وغواړي نو ودي کړي، او کوم چي موږ د مازيگر او ماخستن څخه د مخه ذکر کړي دي نو هغه مستحب دي او په محيط کي راغلي دي که چېري د مازيگر او ماخستن څخه د مخه نوافل وکړي نو دا بهتره ده ولي چي نبی کريم عليه السلام په

دې باندې همیشه توب نه دی کړی او د فرض جمعې څخه د مخه او وروسته هم
څلور رکعاته دي او د ابو یوسف رحمه الله په نِز شپږ دي او زموږ په نِز افضل دادی چې
اول څلور رکعاته وکړي بیا دوه او د څابنت په نوافلو کې د دوو رکعاتو څخه بیا تر
دوولس رکعاتو پورې احادیث وارد سوي دي بیا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نِز د
ورځې او شپې په نوافلو کې په یوه نیت سره څلور رکعاته کول بهتر دي او صاحبین
رحمهم الله وایي د شپې په لمانځه کې دوه رکعاته بهتر دي او په اتو رکعاتوباندې
په یوه تکبیرې تحریمه سره په ورځ او شپه کې زیادت بالاجماع مکروه دی.

**تشریح**: د ماپښین او د جمعې د فرائضو څخه د مخه څلور رکعاتونه سنت مؤکده
دي او څلور وروسته د جمعې په یوه سلام سره او که چېرې یې په دوه سلامه سره
کوي نو د سنت قائم مقام نه کیږي او دوه رکعاتونه د سهار څخه مخکې او دوه د
ماپښین وروسته او مابنام او ماخستن وروسته سنت مؤکده دي، په درمختار کې
دي چې اول سنتونه د شیطان د طمعې د قطعه کولو په واسطه مشروع سوي دي
یعنې چې کله انسان سنتونه کوي نو شیطان وایي چې کوم شی په هغه فرض نه وو
هغه یې نه پرېښودی نو دا به څنګه پرېږدي نو په هغه فرض دی او د وروسته سنت د
نقصان د پوره کولو لپاره یعنې په فرائضو کې که چېرې په څه عذر مثلاً په ایره
وغیره سره یو څه کمي یا پیښي سوي وي نو د وروسته سنت چې هغه ترڅه وخته
پورې کوي او څلور رکعاتونه د ماځیګر او ماخستن څخه د مخه او څلور رکعاته د
ماخستن وروسته مستحب دي لکه څنګه چې په ترمذي شریف کې روایت دی چې
کوم څوک محافظت کوي په څلورو رکعاتو باندې د ماپښین څخه د مخه او څلور
وروسته د ماپښین نو الله تعالی په هغه باندې د دوږخ اور حرامه وي، د امام ابو
یوسف رحمه الله په نِزد جمعې وروسته شپږ رکعات سنت دي چې هغه د حضرت علی رضي الله عنه
څخه منقول دي د دې لپاره علماء وایي چې بهتره داده چې اول څلور رکعاته وکړي

یا دوه رکعاته سنت وکړي او د څلور رکعاتو څخه زیات په یوه تحریمه باندي په ورځ کي او په شپه کي په اتو رکعاتو کي د یوه تکبیري تحریمه څخه زیادت کول مکروه دي چي د دې څخه زائد په احادیثو کي نه دي وارد سوي البته افضل امام ابوحنیفه په نِز په شپه او ورځ کي په یوه سلام سره څلور رکعاته کول دي او صاحبین رحمهما الله ویلي دي چي د شپې په لمانځه کي دوه رکعاته کول بهتر دي او مختار د صاحبینو په قول باندي فتوٰی نقل کړي ده.

مَنْ شَرَعَ فِيْ صَلٰوةِ التَّطَوُّعِ اَوْفِيْ صَوْمِ التَّطَوُّعِ ثُمَّ اَفْسَدَهُمَا فَعَلَيْهِ قَضَآئُهُمَا وَاِنْ شَرَعَ فِي التَّطَوُّعِ بِنِيَّةِ الْاَرْبَعِ ثُمَّ فَطَعَ لَايَلْزَمُهُ اِلَّا الشُّفْعُ خِلَافًا لِاَبِيْ يُوْسُفَ قَالُوْا هٰذَا فِيْ غَيْرِ السُّنَنِ اَمَّا اِذَا شَرَعَ فى الاربع من السنن ثُمَّ قَطَعَ يَلْزَمُهُ اَرْبَعٌ فَاِنْشرعَ فِي الْاَرْبَعِ وَلَمْ يَقْعُدْ فِيْ اٰخِرِ الثَّانِيَةِ فَسَدَتْ عِنْدَ مُحَمَّدٍ وَزُفَرَ وَيَقْضِى الْاُوْلَيَيْنِ وَقَالَا لَاتُفْسِدُ وَكُلُّ رَكْعَتَيْنِ اَذَا اَفْسَدَهُمَا فَعَلَيْهِ قَضَآءُ هُمَا دُوْنَ ضَآءُ مَاقَبْلَهُمَا وَلَوِافْتَتَحَ التَّطَوُّعَ قَآئِمًا ثُمَّ قَعَدَ مَنْ غَيْرِ عُذْرٍ جَازَ وَاِنْ نَذَرَ صَلٰوةً وَلَمْ يَقُلْ اَنَّهُ قَآئِمًا اَوْقَاعِدًا يَلْزَمُهُ قَائِمًا وَاِنْ صَلّٰى قَاعِدًا قِيْلَ يَجُوْزُ قِيَاسًا وَطُوْلُ الْقِيَامِ اَفْضَلُ مَنْ عَدَدِ الرَّكْعَاتِ.

**ژباړه:** چا چي په نفلي لمانځه یا په نفلي روژه شروع وکړه بیایې فاسده کړه نو په هغه باندي د دواړو قضا ده او که چېري یې نفلي لمونځ د څلور رکعاتو په نیت د شروع کولو وروسته قطعه کړ نو په هغه باندي فقط دوه رکعاته لازم دي په خلاف د ابویوسف رحمه الله، علماؤ ویلي دي چي دا قاعده د سنت څخه علاوه ده که چېري یې څلور سنت شروع کړه او بیایې قطعه کړل نو په هغه باندي څلور لازم دي که یې

څلور شروع کړل او د دوهم رکعات په آخر کي نه کښينستی نو د امام زفر رحمه الله په نِز لمونځ فاسد سو او حضرات شيخين وايي چي فاسد نه سو او هر هغه دوه رکعاته کوم چي فاسد کړل نو په هغه باندي د هغو قضاده نه د ماقبل رکعاتو او که چېري يې نفلي لمونځ په حالت د ولاړه کي شروع کړ بيا د عذر په وجه کښينستی نو جائز دی او که چېري يې لمونځ نذر کړ او د دريدو يا کښينستو تعين يې نه وکړ نو په هغه باندي په ولاړه ادا کول لازم دي که چېري يې په ناسته لمونځ وکړ نو بناء برقياس جائز دی او ولاړه د په اوږدو رکعاتو کي زياته بهتره ده.

**تشريح:** په کوم نفلي عبادت چي شروع وکړل سي نو هغه د انسان پر ذمه لازم کيږي، ابوداود ترمذي او نسائي د ام المؤمنين حضرت عائشې صديقې رضی الله تعالی عنها څخه نقل کړی دی چي زه او حضرت حفصه رضی الله تعالی عنها روژه داري وو نو موږ ته ډوډۍ پيش سوه چي د هغه و خوراک ته مي زړه ولاړ سو نو موږ هغه وخوړله بيا رسول الله عليه السلام تشريف راوړی نو حضرت حفصې رضی الله عنها په پوښتنه کولو زما سره مخکي سوه او هغه د خپل پلار لور وه يعني د پلار په مثل جرات منده وه پوښتنه يې وکړه چي يا رسول الله موږ روژه داري وو نو زموږ مخته ډوډۍ پيش سوه کوم خوراک ته چي زموږ زړه ولاړ سو نو موږ هغه وخوړی، د دې په باره کي شرعاً څه حکم دی؟ عليه السلام ارشاد ووايه چي تاسي دواړي په بله ورځ کي د دې روژې قضاء راوړی، چونکي لمونځ چي کله نفل د دې حديث په رُو سره د هغه قضا لازمه ده دا حکم د احنافو او امام مالک رحمه الله په نِز دی او امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله د حج او عمرې څخه علاوه په بل هيڅ نفل عبادت په شروع کولو کي د لزوم قائل نه دي، که چېري د نفلي لمانځه دوه يا د دوو څخه زيات نيت يي وکړ بيايې فاسد کړ نو د طرفينو په نِز فقط د دوو رکعاتو قضاء واجب ده ولي چي د نفل هره شفعه جلا جلا ده، او امام ابويوسف رحمه الله بيا د نذر ډول په شروع

کي په تکبیري تحریمه سره د نیت اعتبار کړی دی د دې لپاره د هغه په نِز د څومره رکعاتو نیت چي یې تړلی وي هغومره قضا لازمه ده البته د فرض پنګانه سره کېدونکي سنت مؤکده بالاتفاق د ټولو قضاء لازمه ده مثلاً د ماپښین څخه د مخه د څلور سنت شروع کولو وروسته که چېري یې هغه فاسد کړل نو د څلورو رکعاتو قضاء ضروري ده ولیّ چي دا په یوه سلام سره شروع سوي دي، دغه ډول د علیه السلام څخة نقل دي، اوس چونکي اول ذکر کړل سوی دي چي ټوله نوافل په اصل کي دوه دوه رکعاته جلا جلا لمونځ دی که په یوه نیت سره زیات هم وکړي نو پوښتنه دا پیدا کیږي چي مثلاً که چېري یې د څلورو رکعاتو د نفلي لمانځه نیت وکړ او د دوو رکعاتو وروسته یې ناسته ایره سي او د څلورم لپاره ولاړ سي نو د فرض قعده پرینښودلو په وجه د هغه لمونځ فاسدیږي که نه؟ امام محمد رحمه الله او امام زفر رحمه الله وايي چي د هغه لمونځ فاسدیږي ولي چي نفل یوه یوه شفعه علیٰحده لمونځ دی نو دا ناسته فرض سوه او د فرض په پرینښوولو سره لمونځ فاسد کیږي امام ابوحنیفه رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله وايي چي په نوافلو کي د دوو رکعاتو وروسته ناسته خپله بذاته فرض نه ده بلکي هغه د لمانځه د قطعه کولو لپاره یعني د خروج از نماز په وجه فرض ده چي هغه د ناستي بغیر مشروع نه دي نو چي کله یې د خروج نیت نه وي کړی نو ناسته هم نه فرض کیږي، د صاحب کتاب په نِز د ولاړي اوږدوالی د کثرت رکعات څخه افضل دی او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دی ولي چي ولاړه کله اوږده سي نو په هغه کي قرآئت زیاتیږي او قرآئت که چېري ټوله قرآن ته ورسیږي ټوله فرض به فرض یي په خلاف د رکوع او د سجدې د تسبیحاتو چي هغه فرض نه دي او امام محمد رحمه الله کثرت د رکوع او سجودو افضل ګڼلی دی.

ثُمَّ السُّنَّةُ فِيْ سُنَّةِ الْفَجْرِ اَنْ لَّايَأْتِيَ بِهَا مُخَالِطًا لِلصَّفِّ وَاَنْ يَّأْتِيَ بِهَا اِمَّا فِيْ بَيْتِهٖ اَوْعِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ وَاِنْ لَّمْ يُمْكِنْهُ فَفِي الْمَسْجِدِ الْخَارِجِ وَاِنْ كَانَ الْمَسْجِدُ وَاحِدًا فَخَلْفَ اُسْطُوَانَةٍ وَنَحْوَ ذٰلِكَ هٰذَا اِذَا كَانَ بَعْدَ الشُّرُوْعِ فِي الْفَرِيْضَةِ وَاَمَّا قَبْلَ شُرُوْعِهِمْ فِي الْفَرِيْضَةِ فَيَأْتِيْ بِهَا فِيْ اَيِّ مَوْضِعٍ شَآءَ وَاَمَّا السُّنَنُ الَّتِيْ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ اَنْ تَطَوَّعَ فِي الْمَسْجِدِ فَحَسَنٌ وَفِي الْبَيْتِ اَفْضَلُ لِمَارُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَهٗ كَانَ يُصَلِّيْ جَمِيْعَ السُّنَنِ وَالْوِتْرَ فِي الْبَيْتِ.

**ژباړه**: بیا په سنتو کي د سهار سنت دادي چي په صف کي یې مختلط نه وکړ بلکي خپل کور یا دروازه د مسجد سره متصله کړي که چېري دلته ممکن نه وي نو دي د مسجد په خارج حصه کي وي که چېري مسجد یو وي نو د یو ستني شاته یا دي په دا ډول یو بل ځای کي ودریږي او دا حکم هلته دی چي کله فرض لمونځ شروع سوی وي او په فرض کي د دوی د شروع څخه د مخه چېري چي زړه وغواړي ودي کړي او هغه سنت چي د فرائضو وروسته دي که چېري دا سنت په مسجد کي وکړي نو ښه دي او په کور کي ډېر بهتره ده ولي چي د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه مروي دی چي هغه مبارک به ټوله سنت او وتر په کور کي کول .

**تشریح**: د سهار دوو سنتو کولو او دغه ډول د ټولو سنتو مؤکده کولو سنت مؤکده دادی چي د جماعت په صف کي یا د صف شاته بغیر د حائل نه وکړل سي بلکي بهتره داده چي په کور یا په مسجد کي علیٰحده یوځای ودریږي سنت وکړي ولي چي په صف کي په ولاړه سره په سنت اداکولو کي د جماعت مخالفت لازم راځي او دا مکروه دی، که چېري څوک په داسي حالت کي مسجد ته ورسیږي چي د سهار فرض لمونځ درېدلی وي نو د حضراتو شیخینو رحمهما الله په نز که چېري د دې

ېږي يقين وي چي په سنت کولو سره د امام سره په ناسته کي شريک کېدی سم نو
هغه دي سنت وکړي او امام محمد رحمه الله وايي که چېري هغه دوهم رکعات نيولی سي
نو دي سنت وکړي که نه وي نو دي پرېږدي ولي چي د باجماعت فرض لمانځه
فضيلت د سهار د سنتو څخه زيات دی، دغه ډول په ترک جماعت باندي عذاب هم د
ترک سنت څخه زيات دی او د سهار د سنت پاته کيدو وروسته د شيخينو د قول په
مطابق نه به د طلوع افتاب څخه د مخه او نه وروسته کيږي او امام محمد رحمه الله وايي
چي ماته خوښه ده چي د طلوع شمس څخه وروسته د زوال څخه د مخه د هغو
قضا اداکړم او د سهار د سنتو څخه علاوه د باقي سنتو بالاتفاق قضا نسته او د فجر
د سنتو په اول رکعات کي" قل يا ايها الكفرون "او په دوهم کي سورة اخلاص ويل
افضل دي ، د فرائضو وروسته کونکي سنتونه په کور کي کول افضل دي لکه څنګه
چي د عليه لسلام ارشاد مبارک دی چي بهتره لمونځ د سړي د هغه په کور کي دی
بغير د فرض لمانځه څخه ، آئمه کرامو د دې حکم څخه تراويح مستثنٰی کړي دي مګر
چي کوم وخت بيره وي چي په کور کي به په نورو کارو کي اخته سي او څلور رکعاته
سنت او نوافل به پاته سي نو په دې صورت کي بهتره داده چي په مسجد کي يې
وکړي او اصح دادی چي خشوع او اخلاص پکښي زياته وي نو دې هلته وکړي که نه
وي نو دي په کور نه کوي، د در مختار عبارت داسي دی والافضل النفل غير
التراويح المنزل الا لخوف شغل عنها والاصح افضلية ماكان اخشع واخلص. دغه
ډول د تحية المسجد او د لمر د ترندي د لمانځه او د معتکف نوافل هم د دې حکم
څخه مستثنٰی دي.

وَمِنَ السُّنَنِ التَّرَاوِيْحُ وَاِقَامَتُهَا بِالْجَمَاعَةِ سُنَّةٌ اَيْضًا عَلٰى سَبِيْلِ الْكِفَايَةِ حَتّٰى
لَوْتَرَكَ اَهْلُ مَحَلَّةٍ كُلُّهُمُ الْجَمَاعَةَ فَقَدْ تَرَكُوا السُّنَّةَ وَقَدْ اَسَآئُوْا فِىْ ذٰلِكَ وَاِنْ

اُقِيمَتُ التَّرَاوِيْحُ وَتَخَلَّفَ عَنْهَا رَجُلٌ مِّنْ اَفْرَادِ النَّاسِ وَصَلّٰى فِيْ بَيْتِهٖ فَقَدْ تَرَكَ الْفَضِيْلَةَ كَمَا فِي الْمَسْجِدِ وَهٰكَذَا فِي الْمَكْتُوْبَاتِ. وَالْاِحْتِيَاطُ فِي النِّيَّةِ اَنْ يَّنْوِيَ التَّرَاوِيْحَ اَوْقِيَامُ اللَّيْلِ اَوْسُنَّةَ الْوَقْتِ لِاَنَّ الْمَشَايِخَ قَدِاخْتَلَفُوْا فِيْ جَوَازِ اَدَآءِ السُّنَّةِ النَّفْلِ قَالَ بَعْضُ الْمُتَقَدِّمِيْنَ لَايَجُوْزُ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ وَقَالَ بَعْضُ الْمُتَاَخِّرِيْنَ يَجُوْزُ كَمَنْ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ بِنِيَّةِ صَلٰوةِ اللَّيْلِ ثُمَّ تَبَيَّنَ اَنَّهُ كَانَ طَلَعَ الْفَجْرُ قَالَ بَعْضُهُمْ يَنُوْبُ عَنْ سُنَّةِ الْفَجْرِ وَهُوَ قَوْلُهُمَا وَاِنْ شَكَّ فِيْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ لَايَنُوْبُ بِالْاِتِّفَاقِ وَاِنْ نَوَى التَّرَاوِيْحَ صَلٰوةً مُطْلَقَةً فَحَسْبُ قَالُوْا اَلْاَصَحُّ اَنَّهُ لَايَجُوْزُ وَوَقْتُهُ بَعْدَ الْعِشَآءِ وَلَايَجُوْزُ قَبْلَهَا وَهُوَ الْمُخْتَارُ وَلَوْ صَلَّى الْعِشَآءَ بِاِمَامٍ وَصَلَّى التَّرَاوِيْحُ بِاِمَامٍ اٰخَرَ ثُمَّ عَلِمَ اَنَّ الْاِمَ الْاَوَّلَ قَدْ صَلَّى الْعِشَآءَ عَلٰى غَيْرِ وَضُوْءٍ يُعِيْدُ الْعِشَآءَ وَالتَّرَاوِيْحَ وَاِنْ فَاتَتْهُ تَرْوِيْحَةً اَوْتَرْوِيْحَتَانِ ذُكِرَ فِي الذَّخِيْرَةِ اِخْتَلَفَ مَشَايِخُ زَمَانِنَا قَالَ . بَعْضُهُمْ يُؤْتِرُ مَعَ الْاِمَامِ ثُمَّ يُقْضِيْ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يُصَلِّي التَّرَاوِيْحَ الْمَتْرُوْكَةَ ثُمَّ يُؤْتِرُ وَاَمَّا الْاِسْتِرَاحَةُ فَيَجْلِسُ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيْحَتَيْنِ مِقْدَارَ تَرْوِيْحَةٍ فَاِنِ اسْتَرَاحَ عَلٰى خَمْسِ تَسْلِيْمَاتٍ قَالَبَعْضُهُمْ لَابَاْسَ بِهٖ وَقَالَ اَكْثَرُ الْمَشَايِخِ لَايَسْتَحِبُّ.

**ژباړه:** په سنتو کي تراويح هم دي او هغه په جماعت سره ادا کول سنت کفائي دي تر دې پوري که چيري ټوله اهل محله يي جماعت ترک کړ نو يقيناً يې سنت ترک کړ او په دې عمل سره ګناهګار دی او که چيري يې تراويح قائم کړه او د دې خلکو

ځه یو سړی د دې څخه پاته سو او په خپل کور کي یې ادا کړه نو هغه په ځای د
ښتو فضیلت ترک کړ او که چېري ټولو په خپل کور کي د جماعت سره ادا کړه نو
مغوی ته د مسجد د ډول د جماعت ثواب نه سو حاصل او دغه حکم د فرائضو هم
ی، په نیت کي دادی چي تراویح یا ولاړه یا د وقتي سنت نیت وکړل سي ولي چي د
مشائخو د نفل په نیت سره د سنت په ادا کیدو کي اختلاف دی ځینو متقدمینو
ویلي دي چي نه دی جائز او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دی او ځینو متاخرینو
ویلي دي چي جائز دی لکه څنګه چي څوک دوه رکعاته د تهجد په نیت سره وکړي
یا ورته معلومه سي چي سهار سوی دی ځینو علماؤ ویلي دي چي دا د سهار سنت
قائم مقام دي او دا د صاحبین رحمهما الله قول دی، که چېري په طلوع فجرکي شک
وي نو بالاتفاق قائم مقام نه سي کیدی او که چېري یې د تراویحو په نیت سره مطلق
لمونځ وکړ نو علماء وایي چي اصح دادی چي دا جائز نه دی او د تراویحو وخت د
ماخستن وروسته دی د دې څخه د مخه نه دي جائز او مختار هم قول دادی، که چېري
یې د ماخستن فرض د یوه امام شاته وکړه او تراویح یې د بل امام شاته وکړي او بیا
معلوم سي چي اول امام د ماخستن لمونځ بغیر د اوداسه کړی وو نو د ماخستن او
تراویحو ټولو اعاده به وکړي او که چېري یوه تراوه یا ترویحات د هغه څخه پاته سي
نو په ذخیره کي ذکرسوي دي چي زموږ د زمانې د علماؤ په دې کي اختلاف دی
ځینو ویلي دي چي د امام سره د وترو وروسته دي قضاراوړي، او ځینو ویلي دي چي
د مترکه تراویح کولو وروسته دي وتر وکړي، او جلسه د استراحت دادہ چي د هرو
دوو ترویحاتو په مابینځ کي د یوه ترویح په مقدار کښیني که چېري د پنځو
سلامونو د لسو رکعاتو وروسته یې جلسه استراحت وکړه نو ځینو علماؤ ویلي دي
چي په دې کي هیڅ باک نسته او اکثره علماؤ ویلي دي چي دا مستحب نه دی.

**تشریح**: تراویح سنت مؤکده دي ولي چي د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د دور څخه تر

نه پوري صحابه او علماء د امت د تراويحو په مسنونيت باندي متفق را روان دي اكثرو علماؤ د دې په مسنون كيدو باندي اجماع نقل كړي ده، په هدايه كه هم سنت مؤكده ورته ويل سوي دي د تراويحو په باره كي د روافضو قول قابل د اعتبار نه دى چي صرف يې د نارينهوو په حق كي سنت ګڼي بلكي علماؤ صراحتاً ذكر كړي دي چي تراويح د نر او ښځي دواړو لپاره سنت مؤكده دي، د اصح قول مطابق د تراويحو وخت د ماخستن وروسته ترسهاره پوري دى د وترو څخه د مخه او د وترو وروسته هم نو كه چېري چاته يو څه تراويح د امام سره نه ونيسي او امام د وترو لپاره ولاړ سي نو هغه سړى دي د امام سره وتر وكړي بيا دي هغه تراويح وكړي چي د امام څخه فوت سوى دي، او د اصح قول مطابق د تراويحو جماعت سنت كفايي دى كه چېري د ټول مسجد والا د تراويحو جماعت پرېږدي نو هغه ټوله ګناهګاره كيږي نه هغه څوک چي ځينو جماعت پرې ايښى وي البته مطلقي تراويح د ټولو په حق كي جلا جلا سنت دي كه چېري څوک تراويح پرېږدي نو تارک سنت كيږي او جماعت چي كله يو څه خلګ قائم كړي نو د نورو د ذمې څخه ساقط كيږي او په طور د استحباب د هرو څلورو ركعاتو وروسته جلسه استراحت يعني ځان ته آرام رسولو لپاره تقريبا د څلورو ركعاتو په مقدار كښينستل سته، او هر چا ته اختيار دى چي په دې توقف كي تسبيح وايي يا د قران تلاوت وكړي يا خاموش كښيني ،علامه قهستانى رحمة الله عليه ويلي دي چي د دې توقّف په منځ كي درې واره دا كلمات ويل بهتر دى والجبروت سبحان الملک الحى الذى لا يموت سبوح قدوس رب الملئكة والروح لا اله الا الله نستغفر الله نسألک الجنة ونعوذ بک من النار.

وَالاَفْضَلُ لِلْاِمَامِ تَعْدِيْلُ الْقِرَءَةِ بَيْنَ التَّسْلِيْمَاتِ وَاِنْ صَلّٰى قَاعِدًا بِغَيْرِ عُذْرٍ جَازَ مِنْ غَيْرِ كَرَاهَةٍ وَاَنْكَانَ الْاِمَامُ قَاعِداً بِعُذْرٍ وَالْقَوْمُ قَائِمِيْنَ جَازَ لَا يُسْتَحَبُّ وَلَوْ

صَلَّى التَّرَاوِيْحَ كُلَّهَا بِتَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ وَقَدْ قَعَدَ عَلٰى رَأْسِ كُلِّ رَكْعَتَيْنِ جَازَ وَلَا يُكْرَهُ لِأَنَّهُ اَكْمَلُ ذُكِرَ فِي الْمُحِيْطِ وَإِذَا شَكُّوْا فِيْ اَنَّهُمْ صَلَّوْا تِسْعَ تَسْلِيْمَاتٍ اَوْعَشْرَ تَسْلِيْمَاتٍ فَفِيْهِ اِخْتِلَافٌ وَالصَّحِيْحُ انهم يُصَلُّوْنَ بِتَسْلِيْمَةٍ اُخْرٰى فرادٰى وَذُكِرَ فِي الْمُلْتَقَطِ يَقْرَءُ فِي التَّرَاوِيْحِ مِقْدَارِ مَالَا يُؤَدِّيْ اِلٰى تَنْفِيْرِ الْقَوْمِ وَفِي الْفَتَاوٰى يَقْرَءُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ ثَلٰثِيْنَ اٰيَةً حَتّٰى يَقَعَ بِهِ الْخَتْمُ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَقْرَءُ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ عِشْرَ اٰيَةٍ وَهُوَ الصَّحِيْحُ وَبِهِ تَحْصِيْلُ السُّنَّةِ وَهُوَ الْخَتْمُ مَرَّةً وَّاحِدَةً لَوْ اَمَّ فِي التَّرَاوِيْحِ ثُمَّ اقْتَدٰى بِاٰخَرَ فِيْ تَرَاوِيْحِ تِلْكَ اللَّيْلَةِ لَا يُكْرَهُ وَإِذَا بَلَغَ الصَّبِيُّ عَشْرَ سِنِيْنَ فَاَمَّ الْبَالِغِيْنَ فِي التَّرَاوِيْحِ يَجُوْزُ وَذُكِرَ فِيْ بَعْضِ الْفَتَاوٰى اَنَّهُ لَا يَجُوْزُ وَهُوَ الْمُخْتَارُ وَاِنْ صَلّٰى اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ بِتَسْلِيْمَةٍ وَاحِدَةٍ وَلَمْ يَقْعُدْ عَلٰى رَأْسِ الرَّكْعَتَيْنِ تَجْزِئُ عَنْ تَسْلِيْمَةٍ وَّاحِدَةٍ وَهُوَ الْمُخْتَارُ وَاِذَا فَرَغَ مِنَ التَّشَهُّدِ يَنْظُرُ اِنْ عَلِمَ اَنَّهُ يَثْقُلُ عَلَى الْقَوْمِ لَا يَزِيْدُ الدَّعْوَاتِ الْمَاثُوْرَةِ وَلَوْ تَذَكَّرُوْا تَسْلِيْمَةً بَعْدَ الْوِتْرِ اِخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ قَالَ اَبُوْبَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ لَا يُصَلُّوْنَ بِجَمَاعَةٍ وَقَالَ الصَّدْرُ الشَّهِيْدُ يَجُوْزُ اَنْ يُّصَلِّيْ بِجَمَاعَةٍ وَلَوْ سَلَّمَ الْاِمَامُ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَةٍ سَاهِيًا فِي الشُّفْعِ الْاَوَّلِ ثُمَّ صَلّٰى مَابَقٰى عَلٰى وَجْهِهَا قَالَ مَشَايِخُ بُخَارٰى يَقْضِي الشُّفْعَ الْاَوَّلَ لَا غَيْرُ وَقَالَ مَشَايِخُ سَمَرْقَنْدَ عَلَيْهِ قَضَآءُ الْكُلِّ.

**ژباړه:** د امام لپاره بهتره ده چي د سلامو په مابينځ کي برابر والى وکړي، که بېله

عذره کښيني تراويح وکړي نو بلا کراهته جائز دی او که چېري امام د يوه عذر په وجه ناست وي او قوم ولاړ وي نو جائز دی او بهتر نه دی، که چېري يې پوره تراويح په يوه سلام سره وکړي او د دوو رکعاتو وروسته يې ناسته وکړه نو بلا کراهته جائز دی ولي چي دا په ثواب کي اکمل دی او په محيط کي ذکر سوي دي که چېري يې په دې کي شک وکي چي هغه نه سلامه ګرځولي وي يا لس نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی او اصح دادی چي هغه دي په انفرادي طور زيات دوه رکعاته وکړي او په ملتقط کي ذکرسوي دي چي په تراويحو کي دومره مقدار قرآئت ويل چي د څخه د قوم نفرت نه وي او په فتاوٰی کي راغلي دي چي په هر رکعات کي دي دېرش آياته ووايي چي دا ډول درې واره د قرآن ختم وسي او ځينو علماؤ ويلي دي چي په هر رکعات کي دي د لسو آيتو قرآئت ووايي او دغه صحيح دی، دا ډول د سنتو حصول کيږي چي يو وار ختم د قرآن کول دي او که چېري يې په تراويحو کي امامت وکړ او بيايې په دغه شپه کي د بل چا اقتدا وکړه نو مکروه نه دی او چي کله کوچنی د لسو کالو سي او په تراويحو کي د بالغانو امامت وکړي نو جائز دی او په ځينو فتاوؤ کي دي چي نه دی جائز او دغه قول مختار دی، که چېري څلور رکعاته په يوه سلام سره وکړي او په دوو رکعاتو کي نه کښينستی نو دا په دوو رکعاتو سره کافي کيږي او دا قول مختار دی او چي کله د التحياتي څخه فارغه سي نو دي وګوري که چېري يې د وتر وروسته دوه رکعاته په ياد سوه نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله ويلي دي چي په جماعت سره به يې نه کوي او صدر الشهد ويلي دي چي جائز دي چي په جماعت سره يې وکړي او که چېري امام په ايره سره په اوله شفعه کي سلام وګرځوی او پاته لمونځ يې په خپله طريقه سره وکړ نو د بخارٰی علماؤ ويلي دي چي په هغه باندي د ټولو قضاء لازمه ده.

**تشريح**: که چېري پوره تراويح په يوه تکبيري تحريمه[1] او يوه سلام سره وکړي او د

دوو رکعاتو وروسته ناسته وکړي نو جائز دی او صاحب کتاب ویلي دي چي د ثواب په لحاظ دا زیات کامل دی ولي چي په دې کي مشقت زیات دی مګر صاحب کبري په خلاصه وغیره سره د دې کراهت نقل کړی دی د دې لپاره چي د زیات او کامل اجر حاصلولو لپاره فقط مشقت نه دی کافی بلکي اتباع د سنتو ضروري ده او اتو رکعاتو څخه زیات په یوه سلام سره کول د احادیثو مبارکه وو څخه نه دي ثابت نو مکمل شل رکعاته تراویح په یوه سلام سره کول جواز مع الکراهت دی او چي کله د امام او د قوم شک سي چي اتلس رکعاته یې کړي دي یا شل نو په دې صورت کي بهتره داده چي باقي دوه رکعاته په انفرادي طور هر یو وکړي د دې لپاره چي د شلو رکعاتو څخه زیات نوافل د جماعت سره د کولو احتراز وسي، په تراویحو کي د قرآئت مقدار دومره پکار دی چي قوم منتفر نه سي ځیني علماء وایي چي په هر رکعات کي دي دیرش آیته وویل سي نو د رمضان المبارک په هري عشري کي یو ختم د قرآن کیږي لکه څنګه چي په کبیري کي د ابوعثمان هندي په حواله سره لیکلي دي چي حضرت عمر فاروق رضی الله عنه درې قراء کرام را وغوښتل او د هغوی څخه یې قرآئت وواریدی کوم قرآئت چي زیات سریع وو هغه ته یې حکم ورکړ چي د خلکو لپاره په هر رکعات کي دیرش دیرش رکعاته وایه او ځینو علماؤ ویلي دي چي په هر رکعات کي لس آیتونه ویل بهتر دي او دا ډول د رمضان تر آخره پوري د قرآن یو ختم به وسي، ځینو آئمه کرامو په اوویشتمه شپه کي ختم د قرآن مستحب لیکلی دی ولي چي دا امید کیږي چي دا لیلة القدر دی.

دغه ډول که چیري په قوم باندي بوج وي نو دعوات ماثوره دي پریښودل سي مګر درود شریف ویل دي نه پریږدي ولي چي دا د امام شافعي رحمه الله په نز فرض دی البته صرف په" اللهم صل علی محمد وعلی ال محمد "باندي اکتفاء کولای سي قوم ته پکار ده چي د خوش الحان په ځای د درست خوان حافظ قرآن انتخاب وکړي

او د يوه سړی لپاره جائز ده چې په يوه مسجد کې تراويح وکړي او په دغه شپه کې خپله د بل چاته تراويح وکړي ولي که څه هم هغه د شلو رکعاتو څخه زيات تراويحو څخه زيات باقي نوافل د جماعت سره کړي دي او دا مکروه دی مګر دا هغه وخت مکروه کيږي چې کله امام او مقتدی دواړه د زائد نفل کولو والا وي او عوام يې د دې نفلي جامعت لپاره راغوښتي وي مګر په دې صورت کې امام خپله د خپل تراويح کونکی دی او مقتدی بيا منتفل دی نو دا جماعت پوره منتفل نه سو البته د يوه امام په دوو ځايو کې د تراويح کولو مسئله اختلافي ده ابوبکر اسکاف رحمه الله دا ناجائز ګڼلي دي او امام ابو نصر رحمه الله دې ته جائز ويلي دي او د دې اختلاف اصلي منشاء هغه ده چې تراويح په مطلق د نفل په نيت سره جائز دي که نه د کوم ذکر چې اول تېر سوی دی دغه ډول نصير بن يحيٰى رحمه الله ويلي دي چې کله هلک د لسو کالو په عمر کې امور بالصلوة سو نو دی د بالغ په حکم کې سو او په تراويحو کې د بالغ لمونځ هم نفل دی ولي چې د بالغانو نفل لمونځ د نابالغ د لمانځه څخه قوي دی د دې لپاره چې د نوافلو شروع کولو وروسته د فاسد کولو سره د بالغانو ذمه لازمه راځي او د نابالغ په ذمه نه لازم کيږي نو دا اقتداء د قوي خلف الضعيف ده چې زموږ په نز نه ده جائز او د مصنف رحمه الله عبارت" وان صلى اربع ركعات بتسليمة واحدة...الخ "مطلب دادی چې کله د څلورو رکعاتو نيت وکړي مګر د دوو رکعاتو وروسته يې ناسته ايره سي نو د نوافلو هره ناسته د فرضيت په وجه د قياس تقاضا ده چې دا لمونځ فاسد سي مګر حضراتو شيخينو رحمهما الله دا استحساناً جائز ګڼلی دی مګر د اولي شفعي په فساد کې يې قياس معتبر کړی دی نو په دې صورت کې اوله شفعه فاسديږي او په دوهمي شفعي کې د بقاء تحريمې په وجه د عدم فساد حکم کيږي نو دا څلور رکعاته فقط د دوو رکعاتو سره کافي دي او که چېري څوک په تراويحو کې د دوو رکعاتو څخه زيات يو د تحريمه وسلام سره ادا کوي او په

ایره سره یې په یوه رکعات باندي سلام وګرځوي نو په دې صورت کي د مشائخو د بخارٰی فتوٰی ده چي په دا خلګو فقط د دوو رکعاتو قضاء ده ولي چي د دا نوافلو هره شفعه علیحده لمونځ دی او په شفعه ثاني کي یې چي کله شروع کړي نو د شفعي اولي څخه ووتی نو باقي لمونځ په شفعه ثاني بنا کیږي او شفعه ثاني فاسده نه ده، د دې لپاره فقط دوه رکعاته یعني په اوله شفعه کي دي قضا راوړي، د مشائخ سمرقند فتوٰی ده چي کله هغه په ایره سره په یوه سلام سره سلام ګرځولی وي نو د باقي دوو رکعاتو د کولو وروسته به په دریم سلام ګرځوي او دغه ډول دا سلسله به د الی اخره پوري جاري وي مګر د ټولو قضاء واجب ده .

وَالوِتْرُ ثَلَاثُ رَكْعَاتٍ بِسَلَامٍ وَّاحِدٍ عِنْدَنَا يَقْرَءُ الْفَاتِحَةَ وَالسُّوْرَةَ فِيْ جَمِيْعِ رَكْعَاتِهَا وَيَقْنُتُ فِي الثَّالِثَةِ قَبْلَ الرُّكُوْعِ فِيْ جَمِيْعِ السَّنَةِ وَلَايُصَلِّيْ بِجَمَاعَةٍ اِلَّا فِيْ رَمْضَانٍ وَالْمَسْبُوْقُ يَقْنُتُ مَعَ الْاِمَامِ وَلَايَقْنُتُ بَعْدَهَا وَاِنْ شَكَّ اَنَّهُ فِي الثَّانِيَةِ اَوْفِي الثَّالِثَةِ يَقْنُتُ مَرَّتَيْنِ وَذٰلِکَ لِاَنَّ تَكْرَارَ لُقُنُوْتِ فِيْ مَوْضِعِهِ وَذُكِرَ فِي الذَّخِيْرَةِ اَنَّهُ اِنْ قَنَتَ فِيْ الْاُوْلٰى اَوْفِيْ الثَّانِيَةِ سَاهِيًا لَمْ يَقْنُتْ فِي الثَّالِثَةِ وَبَيْنَهُمَا فَرْقٌ وَهَلْ يُصَلِّيْ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى الله عَلَيه وَسَلم فِيْ اٰخِرِ الْقُنُوْتِ اَمْ لَاقَالَ الْفَقِيْهُ اَبُو اللَّيْثِ يُصَلِّيْ وَذُكِرَ فِيْ بَعْضِ الْفَتَاوٰى لَابَأْسَ بِاَنْ يُّصَلِّيَ وَهَلْ يُجْهَرُ الْاِمَامُ بِالْقُنُوْتِ قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْفَضْلِ يُخَافِتُ كَذَاجَرَتِ الْعَادَةُ فِي مَسْجِدِ اَبِيْ حَفْصِ الْكَبِيْرِ بِبُخَارٰى وَقَالَ صَاحِبُ الذَّخِيْرَةِ بُرْهَانُ الدِّيْنِ اسْتَحْسَنُوْا الْجَهْرَ فِيْ بِلَادِ الْعَجَمِ لِيَتَعَلَّمُوْا وَذُكِرَ فِيْ شَرْحِ الْاِسْبِيْجَابِيِّ يَكُوْنُ ذٰلِکَ الْجَهْرُ دُوْنَ جَهْرِ الْقِرَآءَةِ وَاَمَّا الْمُقْتَدِيْ

فَهُوَ مُخَيَّرٌ اِنْ شَآءَ قَنَتَ وَاِنْشَآءَ اٰمَّنَ وَاِنْشَآءَ سَكَتَ كُلُّهُ مَرْوِيٌّ عَلَى الْاِخْتِلَافِ بَيْنَ اَبِيْ يُوْسُفَ وَمُحَمَّدٍ وَاِنْ قَنَتَ لَوْ اٰمَّنْ لَايَرْفَعُ صَوْتَهُ بَالْاِتِّفَاقِ.

**ژباړه**: زموږ په نز وتر درې ركعاته په يوه سلام سره او په هر ركعات كي به فاتحه او سورت وايي او په دريم ركعات كي به د ركوع څخه د مخه تول كال دي دعائي قنوت وايي او د رمضان د مياشتي بغير دې په جماعت سره نه كوي او مسبوق دي دعائي قنوت د امام سره ووايي وروسته نه او كه چېري په شک كي پاته سو چي په دوهم ركعات كي دى كه په دريم ركعات كي نو دي دوه واره دعائي قنوت ووايي چي د عائي قنوت تكرار په خپل ځاى مكروه دى لكه څنګه چي په اوله مسئله كي تير سوي دي او په دوهم صورت كي يو په خپل ځاى كي نه سو واقع او په ذخيره كي ذكرسوي دي كه چېري يي په اول يا دوهم ركعات كي په ايره سره دعائي قنوت ووايه نو په دريم ركعات كي دي نه وايي او په دې دواړو مسئلو كي فرق دى او د دعائي قنوت په آخر كي درود شريف وويل سي كه نه؟

ابو الليث سمرقندي رحمه الله ويلي دي چي درود شريف دي ووايي او په ځينو فتاوٰى كي ذكر دي كه چېري يې درود شريف ووايه نو هيڅ باک نسته او امام به د دعائي قنوت په وخت كي به جهر كوي كه نه؟ محمد بن فضل رحمه الله ويلي دي چي خفيه دي ووايي او دغه طريقه په بخارٰى كي د ابوحفص كبير په مسجد كي جاري وه او صاحب الذخيره برهان الدين رحمه الله ويلي دي چي علماؤ د عجم په شارو كي جهر بهتر ګڼلى دى د دې لپاره چي خلګ يې ايزده كولاى سي او په شرحه اسبيجابى كي دي چي دا جهر به د قرآئت د جهر څخه كم وي او مقتدي ته اختيار دى كه وغواړي نو دعائي قنوت دي ووايي يا دي اٰمين وكړي يا دي چپ سي او دا ټوله اقوال مروي دي د ابويوسف او محمد په اختلاف باندي او كه چېري قنوت ووايي يا اٰمين ووايي

بالاتفاق دي آواز نه پورته کوي .

**تشريح**: مصنف رحمه الله وتر لمونځ د سننو او نوافلو سره ذکر کړي دي د دې لپاره چي په ډېرو احکامو کي د نوافلو په مثل دی لکه څنګه چي د اذان او اقامت نه کېدل او په ټولو رکعاتو کي قرآئت ويل وغيره او د نوافلو او وترو ټولو ثبوت د احاديثو مبارکه وو څخه دی، د ابو دواد شريف روايت دی چي عليه السلام درې واره وويل الوتر فمن لم يوتر فليس منی، دا لمونځ د امام ابوحنيفه رحمه الله په نِز واجب دی او د صاحبينو رحمهما الله ؤ په نِز سنت دی او دا به درې رکعاته لمونځ په يوه سلام سره کوي او دېغه قول د اکابرو صحابه لکه حضرت عمر، ابن مسعود، انس، ابن عباس، او د ابو امامه رضوان الله تعالی عليهم اجمعين دی ،او د فقهائي سبعه مدينه هم دا قول دی، په وتر لمانځه کي مستحب دادی چي په اول رکعات کي" سبح اسم ربک الاعلی "په دوهم رکعات کي" قل يا ايهاالکافرون "او په دريم رکعات کي" قل هو الله احد "وويل سي او دعائي قنوت د رکوع څخه د مخه به دريم رکعات ويل کيږي او د حضرت عبدالله بن عمر په حديث کي دي او د ابن عباس په روايت کي دغه ډول منقول دي، د ځينو علماؤ قول دی چي د دعائي قنوت لپاره دي څه خاص الفاظ نه مقرريږي بلکي څه ډول چي کيدی سي د الله تعالی څخه يې وغواړي مګر د اکثره علماؤ قول دادی چي کومي دعاګاني په روايت کي منقولي دي د هغو ويل بهتر دي چي په هغه کي د ټولو ښه دعاء مشهوره او معروفه ده" اللهم انا نستعينک....الخ "او د رمضان څخه علاوه وتر لمونځ په جماعت سره کول مکروه دي او که چېري مقتدی د اول يا دوهم رکعات څخه پاته سي نو هغه دي د امام سره دعائي قنوت ووايي ولي چي دغه دريم رکعات دی او د دعاء تکرار هم جائز نه دی او که چېري د وتر لمونځ کولو په وخت کي په شک کي ولويږي چي دا دوهم رکعات دی که دريم وي نو دي دوه واره قنوت ووايي ولي چي په دې دوو رکعاتو کي دا

احتمال دی چې کیدی چې دریم رکعات وي او د دعائي قنوت تکرار هغه وخت غیر مشروع دی چې کله علی الیقین دریم رکعات معلوم وي او په دې صورت کې یو په خپل ځای کې دواړه نه دي، په محیط کې دي چې د امام محمد رحمه الله قول په دعائي قنوتو کې د جهر کولو دی او امام یوسف رحمه الله په قنوت کې د جهر قائل نه دی صاحب کتاب د برهاالدین قول نقل کړی دی چې په بلاد عجم کې جهر بهتر دی د دې لپاره چې خلک یې ایزده کړي مګر دا قول د دې لپاره مقبول نه دی چې د لمانځه د ایزده کولو محل نه دی د دې لپاره تولو محققین لکه صاحب هدایه وغیره اخفاء ته بهتر ویلي دي او په دې باندې تر ننه پورې زموږ په زمانه کې د علماؤ عمل جاري دی او د مقتدی لپاره هم بهتر دغه دی چې هغه هم په خفیه طور دعائي قنوت ووایي.

# دا فصل په بیان کي د لمانځه د فاسدوونکو شیانو دی

## (فَصْلٌ فِيمَا يُفْسِدُ الصَّلٰوةَ)

وَإِذَا تَكَلَّمَ بِكَلَامِ النَّاسِ نَاسِيًا أَوْ عَامِدًا تَفْسُدُ بِشَرْطِ أَنْ يَّكُوْنَ مَسْمُوْعًا لِنَفْسِهِ وَإِنْ لَّمْ يُصَحِّحْ حُرُوْفَهُ أَوْ يَكُوْنَ مُصَحِّحًا وَإِنْ لَّمْ يُسْمَعْ وَإِنْ نَامَ فَتَكَلَّمَ أَوْ ضَحِكَ وَهُوَ نَآئِمٌ تَفْسُدُ وَإِنْ أَنَّ فِيْ صَلٰوتِهٖ أَوْ تَأَوَّهَ أَوْ أَبْكٰى فَارْتَفَعَ بُكَاؤُهٗ إِنْ كَانَ مِنْ ذِكْرِ الْجَنَّةِ أَوِ النَّارِ لَمْ يَقْطَعْهَا وَإِنْ كَانَ مِنْ وَجَعٍ أَوْ مُصِيْبَةٍ يَقْطَعُهَا وَلَافَرْقَ بَيْنَ قَوْلِهٖ أَوَّهْ وَبَيْنَ قَوْلِهٖ اٰهْ وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ اٰخِرًا لَاتَفْسُدُ فِيْ اٰهْ وَأُفْ وَتُفْ وَفِي الْمُلْتَقَطِ إِذَا لَعَسَتْهُ الْحَيَّةُ فَقَالَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ تَفْسُدُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ خِلَافًا لِّأَبِيْ يُوْسُفَ وَرُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ إِنْ كَانَ الْمَرِيْضُ لَايَمْلِكُ نَفْسَهٗ لَاتَفْسُدُ كَمَالَوْ تَجَشّٰى أَوْعَطَسَ فَرْتَفَعَ صَوْتُهٗ وَحَصَلَ بِهٖ حُرُوْفٌ لَمْ تَفْسُدْ ذَكَرَهُ الْخَاقَانِيَّةُ.

**ژباړه:** چي کله د خلکو په راز خبري وکړي که په ایره سره وي یا قصداً نو فاسد کیږي په دې شرط چي هغه کلام خپله واوري که څه هم د هغه حروف صحیح نه وي که څه هم یې نه واوري او که چېري بیده سو او بیا یې کلام وکړ یایې وخندل او هغه بیده وو نو د هغه لمونځ فاسد دی که چېري یې په لمانځه کي فریاد وکړ یا یې وژړل وژړل په لوړ اواز سره وه نو که چېري د جنت یا د دوزخ په یادیدو سره وي نو لمونځ نه فاسده وي او که د درد یا مصیبت په وجه وي نو لمونځ فاسده وي او د هغه په قول په اه آه کي هیڅ فرق نسته او ابویوسف رحمه الله په قول چي په آخر کي یې ویلي دي چي آه، اف او تف لمونځ نه فاسده وي او په ملتقط کي دی چي کله هغه مار وخوري

نو يې وويل بسم الله الرحمٰن الرحيم نو د امام محمد رحمه الله په نز فاسده وي په خلاف د امام ابويوسف رحمه الله، او د امام محمد رحمه الله څخه روايت سوی دی که چېري ناروغه په ځان باندي کنټرول نه کي پيدا نو نه يې فاسده وي لکه څنګه چي يو څوک آرړی يا آرړمی وکاږي او د هغه آواز لوړ سي او ورسره حروف هم حاصل سي نو نه يې فاسده وي دا په خاقانيه کي ذکرسوي دي.

**تشريح**: په لمانځه کي خبري کول حرامي دي او په دې سره لمونځ فاسديږي که څه هم په ايره سره وي، د حضرت امام شافعي رحمه الله په نز په ايره کلام کولو سره لمونځ نه فاسديږي د هغه مشهور حديث مبارک په وجه چي عليه السلام مبارک ويلي دي چي الله تعالی پوره کړي ده زما د امت څخه خطا او ايره په چا چي زور وکړل سي، مګر د احنافو په نز د دې حکم څخه أخروي مراد دی يعنی د ګناهو ليري کول، نو فساد د لمانځه چي کوم دنيوی حکم دی هغه مراد نه اخستل کيږي او زموږ دليل د مسلم شريف دا روايت دی" ان صلوٰتنا هٰذه لا يصلح فيما شی من كلام النساء "يعنی زموږ په دې لمانځه کي د انسانانو هيڅ کلام نسته، او د کلام کمه درجه داده چي متکلم که کوڼ نه وي نو هغه يې خپله آوريدی سي ولي که چېري د صحت باوجود يې متکلم خپله نه اوري نو دا فقط اشاره ده که چېري مصلی په لمانځه کي د تکليف آواز وکړ يعني آه يا د همزه په ضمه او د واو په سکون سره آه اواز يې راويستی ياي‌ٔ په زور سره ژړا شروع کړه که چېري دا د خوف آخرت په وجه وي نو لمونځ نه فاسد کيږي ولي چي دا دعائ رحمت په ډول ده او که چېري د دنياوي مصيبت په وجه وي نو لمونځ يې فاسد کيږي ولي چي دا بمنزله د شکايت دی.

وَفِي الذَّخِيْرَةِ اِذَاقَالَ الْمَرِيْضُ يَارَبِّ اَوْقَالَ بِسْمِ اللهِ لِمَا يَلْحَقُهُ مِنَ الْمُشَقَّةِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ اَجَابَ بِلَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَوْ اُخْبِرَ بِمَا يَسُرُّهُ اَوْ اَوْبِمَا يَسُوْءُهُ اَوْ يُعْجِبُهُ فَقَالَ سُبْحَانَ اللهِ اَوْقَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ اَوْقَالَ لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ تَفْسُدُ عِنْدَهُمَا خِلَافًا لِاَبِيْ يُوْسُفَ وَذَكَرَ الْقَاضِي الْاِمَامُ فَخْرُ الدِّيْنِ فِيْ قَوْلِهِ اَجَابَ هَلْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللهِ فَقَالَ لَااِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَلَوْ اَرَادَ اِعْلَامَهُ اَنَّهُ فِي الصَّلٰوةِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ عَطَسَ فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ عَطَسَ اٰخَرُ فَقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ يُرِيْدُ اِسْتِفْهَامَهُ تَفْسُدُ وَلَوْ عَطَسَ فِي الصَّلٰوةِ فَقَالَ لَهُ اٰخَرُ يَرْحَمُكَ اللهُ فَقَالَ الْمُصَلِّيْ اٰمِيْنَ تَفْسُدُ وَاِنْ فَتَحَ عَلٰى مَنْ لَيْسَ مَعَهُ فِي الصَّلٰوةِ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ وَاِنْ فَتَحَ عَلٰى اِمَامِهِ قِيْلَ اِنْ فَتَحَ بَعْدَ مَاقَرَءَ مِقْدَارَ مَاتَجُوْزُ بِهِ الصَّلٰوةُ تَفْسُدُ وَالصَّحِيْحُ اَنَّهُ لَاتَفْسُدُ وَاِنِ انْتَقَلَ الْاِمَامُ اِلٰى اٰيَةٍ اُخْرٰى فَفَتَحَ عَلَيْهِ بَعْدَ الْاِنْتِقَالِ تَفْسُدُ صَلٰوةُ الْفَاتِحِ وَاِنْ اَخَذَ الْاِمَامُ تَفْسُدُ صَلٰوةُ الْكُلِّ وَاِنْ فَتَحَ غَيْرُ الْمُصَلِّيْ عَلَى الْمُصَلِّيْ وَاَخَذَ بِفَتْحِهِ تَفْسُدُ وَاِنْ اَكَلَ اَوْشَرِبَ عَامِدًا اَوْنَاسِيًا تَفْسُدُ.

**ژباړه:** په ذخيره کي راغلي دي که يو ناروغه د تکليف په وجه سره يا رب، يا بسم الله ووايي نو لمونځ يې نه فاسد کيږي او که چېري چا په لمانځه کي په لااله الا الله سره ځواب ورکړ يا د خوشالی يا د غم يا عجب خبر ورکړل سو بيا يې سبحان الله، الحمدلله، يا لاحول ولاقوة الا بالله ووايه نو د طرفينو په نز فاسد کيږي په خلاف د ابويوسف رحمه الله ، قاضی امام فخرالدين رحمه الله ويلي دي چي لمونځ کونکي ته که

څوک ووايي چي آيا د الله تعالی څخه ماسوای بل معبود سته؟ بيا هغه لااله الا الله ووايه که څه هم د هغه اراده داوي چي هغه په لمانځه کي دی بيا هم نه سو فاسد، که اررمی په لمانځه کي ورته راله نو يې الحمدلله ووايه لمونځ يې نه فاسد کيږي که چېري دوهمه اررمی راله نو لمونځ کونکي الحمدلله د هغه د تعليم لپاره ووايه نو فاسد کيږي که چېري په لمانځه کي يوسړي ته آررمی راله نو يوبل سړي د هغه لپاره يرحمک الله ووايه بيا لمونځ کونکي آمين ووايه نو فاسد سو که چېري يې دې سړي ته لقمه ورکړه چي د ده سره په لمانځه کي شريک نه وو نو د هغه لمونځ فاسد سو او که چېري يې خپل امام ته لقمه ورکړه د دومره قرآئت ويلو وروسته په کوم سره چي لمونځ جائز کيږي نو صحيح دادی چي نه فاسد کيږي، که امام دوهم آيت ته منتقل سي او يوچا لقمه ورکړه نو د لقمې ورکونکی لمونځ فاسد کيږي او که چېري يې په لمانځه کي خوړل يا څښل وکړه که په ايره يا قصداً سره وي نو لمونځ يې فاسديږي .

**تشريح**: د امام ابويوسف رحمه الله د قول مطابق که چېري چا د درد په وجه د يا رب يا بسم الله الفاظ ادا کړل نو د هغه لمونځ نه فاسد کيږي ولي چي دا الفاظ ذکر الله دي چي فقط د انسان په اراده سره نه بدليږي او امام ابويوسف رحمه الله په داسي الفاظو کي د ملفوظ خيال کړی دی د نيت نه، که چېري لمونځ کونکي امام ته لقمه يعني ګوله يې ورکړه او امام په قدر مايجوز به الصلوة قرآئتِ ووايه نو د اصح قول مطابق د مقتدي او امام دواړو لمونځ نه فاسد کيږي لکه څنګه چي په يوه روايت کي راغلي دي چي عليه السلام مبارک په لمانځه کي د سورة المؤمنين تلاوت يې وکړ او په قرآئت ويلو سره يې يوه کلمه ايره سوه نو چي کله د لمانځه څخه فارغه سو نو يې وويل چي په تاسو کي اُبی موجود نه وو هغه ځواب ورکړ چي حضرت ولي دی، نو عليه السلام مبارک وويل چي تا وماته لقمه ولي را کړه ، نو اُبی رضی الله

عنه ځواب وکړ چي زما خيال وو چي شايد دا کلمه منسوخه سوي ده نو عليه السلام مبارک وويل که چيري منسوخه سوي واى نو ما به ضرور تاسو ته ويل، نو دا د لمانځه د نه فاسديدو واضح دليل دى.

دغه ډول که چيري امام دوهم آيت ته منتقل سوى وي بيا هم د اکثرو علماؤ د قول مطابق لمونځ نه فاسد کيږي.

وَكَذَا الْعَمَلُ الْكَثِيرُ وَكُلُّ عَمَلٍ يُشِكَّ النَّاظِرُ اَنَّهُ لَيْسَ فِي الصَّلٰوةِ فَهُوَ عَمَلٌ كَثِيرٌ وَقَالَ بَعْضُهُم كُلُّ عَمَلٍ يُعْمَلُ بَالْيَدَيْنِ عُرْفًا فَهُوَ كَثِيرٌ وَذُكِرَ فِي الْمُلْتَقَطِ لَايُعْتَبَرُ فِيْ فَسَادِ الصَّلٰوةِ عَمَلُ الْيَدَيْنِ وَلٰكِنْ يُعْتَبَرُ اَلقِلَّتَهُ وَلَا كَثْرَةُ وَلِوَادَّهَنَ بِدُهْنٍ اَخَذَهُ مِنْ اِنَآءٍ اَوكَانَ بَيَدِهِ فَاَخَذَهُ بِيَدِهِ الْاُخْرٰى وَادَّهَنَ بِهِ رَاْسَهُ اَوْسَرَّجَ شَعْرَهُ تَفْسُدُ وَلَوْكَانَ الدُّهْنُ اَوْنَحْوُ بِيَدِهِ فَمَسَحَهُ بِرَاْسِهِ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ حَمَلَتِ الْمَرْةُ صَبِيًّا فَاَرْضَعَتْهُ تَفْسُدُ وَاِنْ مَصَّ صَبِيٌّ ثَدْیَ اِمْرَاَةٍ تُصَلِّیْ اَنْ خَرَجَ مِنْهُ اللَّبَنُ تَفْسُدُ وَاِلَّافَلَاوَاِنْ صَافَحَ بِيَدِهِ يُرِدُّ السَّلَامَ تَفْسُدُ وَلَوْ رَفَعَ الْعَمَامَةَ مِنْ رَاْسِهِ وَوَضَعَ عَلَى الْاَرْضِ اَوْرَفَعَ مِنَ الْاَرْضِ وَوَضَعَ عَلٰى رَاْسِهِ اَوْنَزَعَ الْقَمِيْصَ اَوْتَعَمَّمَ بِيَدٍوَّاحِدَةٍ لَاتَفْسُدُ وَلٰكِنْ يَّكْرَهُ وَلَوْ ضَرَبَ اِنْسَانًا بِيَدٍ وَّاحِدَةٍ اَوْ ضَرَبَهُ بِسَوْطٍ وَنَحْوِهِ تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ كَذَافِي الْمُحِيْطِ وَذُكِرَ فِي الذَّخِيْرَةِ اِنَّ الْمُصَلِّيْ عَلَى الدَّآبَّةِ اِذَا ضَرَبَهَا مَرَّةً اَوْمَرَّتَيْنِ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ ضَرَبَهَا لِاِسْتِسْرَاعِ السَّيْرِ تَفْسُدُ وَبَعْضُ الْمَشَايِخِ قَالُوْا اِذَا ضَرَبَهَا مَرَّةً اَوْمَرَّتَيْنِ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ ضَرَبَهَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ مُتَوَالِيَاتٍ تَفْسُدُ وَبَعْضُ

مَشَايِخِنَا قَالُوْا اِذَاكَانَ مَعَهُ سَوْطٌ فَهَشَّهَابِهِ وَفِيْ نُسْخَةٍ فَهَيَّاهَا اَوْنَخَسَّاهَا لَاتَفْسُدُ وَلَوْهَدّٰى بِهِ اِلَى الطَّرِيْقِ وَضَرَبَهَا تَفْسُدُ وَاِنْ حَرَّكَ رِجْلًا لَا عَلَى الدَّوَامِ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ حَرَّكَ رِجْلَيْهِ تُفْسِدُ وَقَالَ بَعْضُهُمْ اِنْ حَرَّكَ رِجْلَيْهِ قَلِيْلًا لَاتَفْسُدُ.

**ژباړه**: دغه ډول عمل کثیر لمونځ فاسده وي او هر هغه عمل چي کتونکی په دې شک کي واچوي چي دا سړی لمونځ کونکی دی نو هغه عمل کثیر دی او ځینو علماؤ ویلي دي چي هر هغه عمل چي په دواړو لاسو سره وکړل سي نو دا عمل کثیر دی او په ملتقط کي ذکرسوي دي چي د لمانځه په فاسدیدو کي د دواړو لاسو عمل معتبر نه دی بلکي کمي او زیاتی معتبر دی، که چېري یې تیل ولګول چي د لوښي څخه یې اخستي وه یا د هغه په لاس د اول څخه وه نو یې په دوهم لاس ولګول او په سر یې ولګول یایې وربښتان زمونږ کړل نو فاسد کیږي او که چېري تیل یا د هغه په مثل یې په لاس وو او هغه یې په سر مسحه کړل نو نه فاسد کیږي، که ښځي کوچنی پورته کړ او هغه ته یې شیدې ورکړي نو فاسد کیږي او که چېري کوچني په لمانځه کي د ښځي تیان کش کړل نو د هغوی څخه شیدې ووتلې نو فاسد دی که نه وي نو نه دی، که یې د سلام په نیت روغبړ وکړ نو فاسد کیږي او که چېري یې د سر څخه لنګوټه راواخستله او په مځکه یې کښیښووله یا د ځمکي څخه یې پورته کړه په سر یې کړه یایې قمیص ویستی یا په لاس سره یې لنګوټه وتړله نو لمونځ نه فاسد کیږي مګر مکروه دی که چېري یوسړي په لاس سره یا په اوسپني سره یا په یوبل شي سره بل سړی ووهي نو د هغه لمونځ فاسد کیږي او ځیني علماء وایي چي کله د هغه سره اوسپنه وي او په دې سره یې راوګرځوي او په یوه نسخه کي دي چي بیا یې هغه تیاره کړه یا یې په تیره کړه نو نه فاسد کیږي او که چېري یې هغه په ووهي یا لار ورښیي نو فاسد کیږي. او که یوې پښې ته یې حرکت ورکړ مګر همیشه نه نو نه

فاسد کیږي که چېري دواړو پښو ته یې حرکت ورکوی نو فاسد کیږي او ځینو ویلي دي که یې دواړو پښو ته معمولي حرکت ورکړ نه فاسدیږي .

**تشریح**: د عمل کثیر په تعریف د فقهاؤ کرامو څخه پنځه اقوال نقل دي ۱ عمل کثیر هغه دی چي د هغه کولو والا د کتونکي په نظر کي په ظن غالب وي چي لمونځ نه کوي، دا د جمهورو علماؤ قول دی او دغه اصح قول دی .

۲: کوم کار چي عادتاً په دواړو لاسو سره کول کیږي هغه کثیر دی که څه هم لمونځ کونکی هغه په یوه لاس باندي وکړي لکه لنګوټه تړل چي په یوه لاس سره کیږي، هغه قلیل که څه هم لمونځ کونکی یې په دواړو لاسو وکړي لکه د خولۍ پرسر کول یا ایستل، ۳ درې حرکتونه پرله پسې کول داهم کثیر دی که نه وي نو نه دی بلکي قلیل دی، ۴ عمل کثیر هغه دی چي کونکی مقصود وي یعنی د هغه لپاره چي جلا مجلس کوي، ۵ عمل کثیر هغه دی چي کوم لمونځ کونکی دا خپل کارونه ډېر وګڼي، اوس د دې پنځو اقوالو په تناظر کي مصنف رحمه الله مختلف صورتونه بیان کړي دي چي د یوه څخه یو ډول په یوه قول منطبق کیږي .

وَعَنْ اَبِیْ بَکْرٍ فِیْ مَنْ قِیْلَ لَهٗ کَمْ صَلَّیْتُمْ فَاَشَارَ الْمُصَلِّیْ بِیَدِهٖ اِلٰی اَنَّهُمْ صَلَّوْا رَکْعَتَیْنِ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ کَتَبَ مَاتَسْتَبِیْنُ حُرُوْفُهٗ اِنْ کَانَ اَقَلَّ مِنْ ثَلٰثِ کَلِمَاتٍ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ زَادَ عَلٰی ذٰلِکَ تَفْسُدُ وَفِی الْمُلْتَقَطِ وَلَوْ قَالَ الْمُصَلِّیْ مِثْلَ مَاقَالَ الْمُؤَذِّنُ تَفْسُدُ صَلٰوتُهٗ وَفِی الْخَانِیَّةِ اِنْ اَذَّنَ یُرِیْدُ بِهِ الْاَذَانَ تَفْسُدُ وَقَالَ اَبُوْیُوْسُفَ لَاتَفْسُدُ مَالَمْ یَقُلْ حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ وَلَوْسَمِعَ اسْمَ اللّٰهِ تَعَالٰی فَقَالَ جَلَّ جَلَالُهٗ اَوْسَمِعَ اسْمَ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْ اَرَادَ اِجَابَتَهٗ تَفْسُدُ

وَاِنْ لَّمْ يُرِدِ الْجَوَابَ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ اَنْشَاَشِعْرًا اَوْخُطْبَةً وَّلَمْ يَتَكَلَّمْ بِلِسَانِهٖ لَاتَفْسُدُ وَقَدْ اَسَآءَ وَلَوْرَدَّ السَّلَامَ بِيَدِهٖ اَوْبَرَاْسِهٖ اَوْطُلِبَ مِنْهُ شَيْءٌ فَاَوْمٰى بِرَاْسِهٖ لَاتَفْسُدُ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اَكْرِمْنِيْ اَوْقَالَ اَنْعِمْ عَلَيَّ اَوْاَصْلِحْ اَمْرِيْ اَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِي الْعَافِيَةَ اَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِاَخِيْ فَفِيْهِ اخْتِلَافُ الْمُتَاَخِّرِيْنَ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِعَمِّيْ اَوْلِخَالِيْ تَفْسُدُ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ رُؤْيَتَكَ اَوْجَنَّتَكَ اَوْحَجَّ بَيْتِكَ لَاتَفْسُدُ وَلَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ دَآبَّةً اَوْكَرْمًا اَوْزَوْجَةً اَوْنَحْوَ ذٰلِكَ اَوْقَالَ اَللّٰهُمَّ اقْضِ دَيْنِيْ تَفْسُدُ وَلَوْنَظَرَ كِتَابٍ وَفَهِمَ مَافِيْهِ اِنْ نَظَرَ غَيْرَ مُسْتَفْهِمٍ لَاتَفْسُدُ بِالْاِجْمَاعِ وَاِنْ نَظَرَ مُسْتَفْهِمًا ذُكِرَ فِي الْمُلْتَقَطِ تَفْسُدُ وَذُكِرَ فِي الْاَجْنَاسِ لَاتَفْسُدُ عِنْدَ اَبِيْ يُوْسُفَ وَبِهٖ اَخَذَ مَشَايِخُنَا وَاِنْ قَرَءَ مِنَ الْمُصْحَفِ اَوْمِنَ الْمِحْرَابِ تَفْسُدُ عِنْدَ اَبِيْحَنِيْفَةَ خِلَافًا لَّهُمَا.

**ژباړه**: د ابوبکر رضي الله عنه څخه روايت دی د هغه سړی په باره کي د چا په باره کي چي چا ته وويل سي چي تا څومره لمونځونه کړي دي نو لمونځونکي په لاس سره اشاره وکړه چي هغه دوه رکعات کړي دي نو نه فاسد کيږي او که يې واضح حروف وليکل نو که چېري د درو کلماتو څخه کم وي نو نه فاسد کيږي او که د دې څخه زيات وي نو فاسد کيږي او په ملتقط کي راغلي دي که چېري لمونځ کونکی په مثال د مؤذن کلمات ادا کړي نو د هغه لمونځ فاسد سو او په خاقانيه کي راغلي دي که يې د اذان په کلماتو سره د اذان کولو اراده وي نو فاسد کيږي او ابو يوسف رحمه الله ويلي دي

چې تر څه وخته پورې يې حی الصلوة نه وي ويلی نو نه فاسد کيږي، که يې د الله تعالی نوم واوريدی نو جل جلاله يې ووايه يا يې د نبی عليه السلام نوم مبارک واوريدی نو يې صلی الله عليه وسلم ووايه که چيرې يې په دې سره ځواب ورکول مقصود وي نو فاسد کيږي او که يې ځواب ورکول مقصود نه وي نو نه فاسد کيږي، که چيرې يې په زړه زړه کې يو شعر يا خطبه جوړه کړه او په ژبه يې تکلم نه وکړ نو نه فاسد کيږي بلکې ګناهګار سو، که يې د سلام ځواب په سر د لاس اشاره سره ورکړ يا يې په دې سره يو شی وغوښتی بيا په سر سره اشاره وکړه نو نه فاسد کيږي او که چيرې يې وويل چې يا الله ماته عزت راکړې يا پر ما انعام وکړې يا زما ټوله امور ترسره کړې يا ماته عافيت نصيب کړې يا زما مور او پلار او ټولو مومنانو ته بخښنه وکړې نو نه فاسد کيږي او که يې وويل يا الله زما ورور ته مغفرت وکړې نو په دې کې د متاخرينو علماؤ اختلاف دی، او که يې وويل يا الله زما اکا او ماما ته مغفرت وکړې نو فاسديږي او که يې وويل چې يا الله ماته خپل ديدار يا خپل جنت يا د خپل بيتې حج رانصيب کړې نو نه فاسديږي او که يې وويل چې يا الله ماته سواری يا انګور يا مينه وغيره رانصيب کړې يا يې وويل چې يا الله زما پور ادا کړې نو په دې سره لمونځ فاسديږي، او که يې يو ليکل سوی شی وليدی او هغه يې وفهموی او که يې د ويلو په نيت نه وي ليدلی نو بالاتفاق نه فاسديږي، که يې د ويلو په نيت سره کتلی وي نو په ملتقط کې دي چې فاسد کيږي او په اجناس کې دي چې د ابويوسف رحمه الله په نز نه فاسديږي او په دغه باندې زمونږ د علماؤ اختلاف دی، که يې د مصحف يا د مخ د ديوار څخه قرآن ووايه نو د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نز فاسديږي په خلاف د صاحبينو.

دا عبارت د انتهائي وضاحت په وجه ناقابل د تشريح دی

وَلَوْ اَخَذَ حَجَرًا فَرَمٰى بِهٖ طَائِرًا تَفْسُدُ وَلَوْ كَانَ مَعَهٗ حَجَرٌ فَرَمٰى بِهٖ لَاتُفْسِدُ وَقَدْ اَسَآءَ وَقَالَ فِي الْاَجْنَاسِ اِنْ رَمٰى بِاَطْرَافِ اَصَابِعِهٖ وَاحِدً لَاتَفْسُدُ وَلَوْ حَكَّ جَسَدَهٗ مَرَّةً اَوْمَرَّتَيْنِ لَاتَفْسُدُ وَلٰكِنْ يَكْرَهُ وَكَذَا اِذَا فَعَلَ مِرَارًا غَيْرَ مُتَوَالِيَاتٍ وَلَوْفَعَلَ مِرَارًا مُتَوَالِيَاتٍ تَفْسُدُ وَهٰذَا اِذَا رَفَعَ يَدَهٗ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ وَاَمَّا اِذَالَمْ يَرْفَعْ فِيْ كُلِّ مَرَّةٍ فَلَاتَفْسُدُ وَذُكِرَ فِي الْاَجْنَاسِ اِذَا قَتَلَ الْقُمْلَةَ مِرَارًا اِنْ قَتَلَ مُتَدَارِكًا تَفْسُدُ وَاِنْ كَانَ بَيْنَ الْقَتْلَاتِ فُرْصَةَ لَاتَفْسُدُ وَالْكَفُّ عَنْهُ اَفْضَلُ وَكَذَا لَوْ رَوَّحَ بِثَوْبِهٖ اَوْبِمِرْوَحَةٍ مَرَّةً اَوْمَرَّتَيْنِ تَفْسُدُ وَلَوْ تَنَحْنَحَ يُرِيْدُ بِهٖ اِعْلَامَهٗ اَنَّهٗ فِي الصَّلٰوةِ وَسُمِعَ حُرُوْفُهٗ اَوْتَنَحْنَحَ لِتَحْسِيْنِ الصَّوْتِ مُتَعَمِّدًا تَفْسُدُ عِنْدَهُمَا كَذَاذَكَرَهٗ فِي الْاَجْنَاسِ وَلَوِ اسْتَأْذَنَ رَجُلٌ نِ الْمُصَلِّيْ فَجَهَرَ بِالْقِرَآءَةِ اَوْقَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ اَوِاللهُ اَكْبَرُ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ قَبَّلَتِ الْمُصَلِّيْ اِمْرَاَتُهٗ وَلَمْ يَشْتَهِهَا هو فَصَلٰوتُهٗ تَامَّةٌ وَلَوْ قَبَّلَهَا هُوَ بِشَهْوَةٍ اَوْ بِغَيْرِ شَهْوَةٍ فَسَدَتْ.

**ژباړه:** كه يې ډبره په لمانځه كي را واخسته او مُرغه ته يې ور وغورځوله نو لمونځ يې فاسديږي كه د هغه سره ډبره وي بيا يې هغه وويشتې نو نه فاسديږي كه چيري يې د يوې ګوتي د كنارو سره صرف يو وار وويشتې نو نه فاسديږي او كه يې خپل ځان يو يا دوه واره وګوروی نو لمونځ يې فاسد نه دی مګر مكروه دی دغه ډول كه يې چيري دا عمل څو واره وكړ مګر پرله پسې نه وي او كه پرله پسې يې څو واره وكړ نو فاسديږي او دا هلته چي هر وار لاس پورته كړي كه يې هر وار د خارش والا ځای څخه لاس نه کی پورته نو نه فاسديږي، په اجناس كي راغلي دي كه چيري يې

په لمانځه کي شپږي مړې کړي نو که يې مسلسلي مړې کړي وي نو فاسد سوی دی
که يې په مړه کولو کي څه وقفه کړي وي نو نه فاسديږي او د هغه نيول افضل دی.
دغه ډول که يې چېري په کالو يا په يوشي سره يې ځانته يو يا دوه واره هوا ورکړه نو
لمونځ يې فاسديږي، که يې په لمانځه کي غاړه صفا کړه نو د شيخينو رحمهما الله په
نز فاسديږي دغه ډول په اجناس کي ذکر دي که چا د لمونځ کونکي څخه اجازت
واخيست کړ نو هغه قرآئت په زور سره ووايه يا يې الحمدلله يا الله اکبر يې ووايه نو
لمونځ يې نه فاسديږي، که چېري لمونځ کونکي يو ښځه مچ کړه او لمونځ کونکی
يې نه کړ مچ نو د هغه لمونځ پوره دی او که چېري لمونځ کونکی هم هغه مچ کړه که
په شهوت سره وي او که بېله د شهوت نو فاسد سو.

**تشريح:** که چېري يې ډبره پورته کړه مرغه يې وويشتی نو د عمل کثير په وجه
لمونځ فاسده وي البته که چېري ډبره اول په لاس کي وه نو فقط ويشتل عمل قليل
دی د دې لپاره مفسد نماز نه دی که چېري دغه ډبره يو انسان ته ورسره کړي نو بيا
مخاصمه يعني دعوه وسوه او مخاصمه د عمل کثير په وجه مفسده ده دغه ډول په
لمانځه کي شپږي مړي کول د امام ابوحنيفه رحمه الله په نز مکروه دی او د امام
محمد رحمه الله په نز مکروه نه دی، مصنف رحمه الله د خبرداري يا تحسين صوت لپاره
غاړي تازه کولو د حضراتو شيخينو په نز مفسد ګڼلی دی حالانکي صحيح دا دی چي
دا مسئله د طرفينو ده ولي چي ابويوسف رحمه الله د دوو حروفو کوم يو چي د زوائدو
څخه وي د فساد نماز قائل نه دی او که چېري غاړي تازه کول د عذر په وجه وي نو
بالاتفاق مفسد نه دی مثلاً چي کله يې په قرآئت کي آواز بند سي نو دا غاړي تازه
کول د لمانځه د اصلاح لپاره دي لکه څنګه چي د بنا په صورت کي د اوداسه د ځای
لپاره تګ راتګ لمونځ نه فاسده وي، که چېري د لمانځه په وخت کي خپلي ښځي د
لمونځ کونکي څخه مچه واخسته مګر لمونځ کونکی ولاړ وو نو لمونځ کامل دی

مګر که چېري سړي د لمانځه په دوران کي مچه واخسته نو لمونځ فاسد دی که څه هم د شهوت بغير وي د دې لپاره چي نر فاعل د جماع دی، نو دواعی د جماع مرد د طرف څخه د جماع په معنٰی کي دی او ښځه فقط محل د جماع ده.

اَلْمُصَلِّيْ اِذَا وَسْوَسَهُ الشَّيْطٰنُ فَقَالَ لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ اِنْ كَانَ ذٰلِكَ فِيْ اَمْرِ الْاٰخِرَةِ لَا تَفْسُدُ وَاِنْ كَانَ فِيْ اَمْرِ الدُّنْيَا تَفْسُدُ كَذَا ذَكَرَهٗ فِي الذَّخِيْرَةِ اَلْمُصَلِّيْ اِذَا اَرَادَ اَنْ يُّسَلِّمَ عَلٰى غَيْرِهٖ سَاهِيًا فَقَالَ اَلسَّلَامُ فَتَذَكَّرَ فَسَكَتَ تَفْسُدُ وَذُكِرَ فِي الذَّخِيْرَةِ اَلْمَشْيُ فِي الصَّلٰوةِ اِذَاكَانَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ لَاتَفْسُدُ اِذَالَمْ يَكُنْ مُتَلَاحِقًا وَلَمْ يَخْرُجْ مِنَ الْمَسْجِدِ وَاِنْ كَانَ فِي الْفَضَاءِ لَاتَفْسُدُ مَالَمْ يَخْرُجْ عَنِ الصُّفُوْفِ وَبَعْضُ الْمَشَايِخِ قَالُوْ فِيْ رَجُلٍ رَاٰى فُرْجَةً فِي الصَّفِّ الثَّانِيْ فَمَشٰى اِلَيْهَا لَاتَفْسُدُ وَلَوْمَشٰى اِلَى الصَّفِّ الثَّالِثِ تَفْسُدُ هٰذَا اِذَالَمْ يَكُنْ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ وَاَمَّا اِذَا اسْتَدْبَرَ الْقِبْلَةَ فَسَدَتْ كَمَا اِذَا اسْتَدْبَرَ الْقِبْلَةَ عَلٰى ظَنٍّ اَنَّهٗ رَعُفَ ثُمَّ تَبَيَّنَ اَنَّهٗ لَمْ يَكُنْ رَعُفَ فَسَدَتْ وَاِنْ لَّمْ يَخْرُجْ مِنَ الْمَسْجِدِ وَلَوْمَضَغَ الْعَلَكَ اَوِالْهَلِيْلَجَ تَفْسُدُ وَلَوابْتَلَعَ مَابَقِيَ بَيْنَ اَسْنَانِهٖ اِنْ كَانَ زَائِدًا عَلٰى قَدْرِ الْحِمْصَةِ تَفْسُدُ وَاِنْ كَانَ اَقَلَّ مِنْ قَدْرِ الْحِمْصَةِ لَاتَفْسُدُ صَلٰوتُهٗ وَلَاصَوْمُهٗ.

**ژباړه:** که چېري لمونځ کونکی شيطان په وسوسه کي واچوي بيا هغه لاحول ولا قوة ووايي که چېري دا وسوسه د اٰخرت په باره کي وه نو لمونځ نه فاسديږي که د دنيايي امورو څخه وو نو فاسديږي دغه ډول په ذخيره کي دي چي لمونځ کوونکی چي کله په ايره سره د سلام کولو اراده وکړه نو د لفظ سلام ويلو وروسته يې په ياد

سو نو بیا چپ سو نو فاسدیږي او په ذخیره کي راغلي دي چي په لمانځه کي د قبلې طرف ته کیدل لمونځ نه فاسدیږي چي کله پرله پسې نه وي او د مسجده څخه نه وي وتلی که په خلاصه صحرا کي لمونځ کوي نو تر څه وخته پوري چي د جای صفوف څخه نه وي وتلی نو لمونځ نه فاسدیږي او ځینو خلکو د هغه سړي په باره کي ویلي دي چا چي په دوهم صف کي ګنجائش ولیدی بیا هغه طرف ته روان سو او که چېري دریم صف ته ولاړی نو فاسدیږي دا حکم هلته دی چي د قبلې وطرف ته شا ګرځونکی نه وي که چېري یې د قبلې وطرف ته شا کړه نو فاسدیږي که څه هم د مسجد څخه نه وي وتلی، که چېري یې ژاولي یا غوښه وژو وله نو فاسدیږي که یې د غاښو په مابینځ کي بند شی تیر کړ نو که د نخود د دانې د مقدار څخه زیات وي نو فاسدیږي که چېري د نخود د مقدار څخه کم وي نو د هغه لمونځ او روژه نه فاسدیږي.

**تشریح**: که د لمونځ کوونکي دا ایر سي چي هغه لمونځ کوي بیا یې یو چاته سلام وکړ مګر صرف د السلام ویلو وروسته او د وعلیکم څخه تر مخه یې یاد سي چي هغه لمونځ کوي نو د طرفینو رحمهما الله په نِز د هغه لمونځ فاسد دی. امام ابو یوسف رحمه الله وایي چونکي د السلام لفظ ذکر دی د دې لپاره مفسد نه دی. که چېري لمونځ کونکی په خپل لمانځه کي مخته شاته، راسته یا چپه طرف ته ولاړ سي او د قبلې وطرف ته د هغه شا نه وي یا شا ته چپه روان وي مګر په هر صورت کي تلل مسلسل نه وي بیا د یو رکن په مقدار ودرېدی نو د هغه لمونځ نه فاسدیږي تر څه وخته پوري چي د مسجد څخه نه ووزي او که چېري په صحرا کي لمونځ کوي نو د موضوع صفوف څخه تجاوز نه وکړي، دغه ډول که چېري لمونځ کونکي ته د مخ په صف کي ځای په نظر سي او هلته ولاړ سي نو د هغه لمونځ نه فاسدیږي مګر که چېري د خپل صف څخه هم د مخ په صف کي ځای خالي وي او په هغه کي په پرله

پسې قدمو سره ولاړ سي نو د هغه لمونځ فاسدیږي البته که چېري د هر قدم وروسته لږ ودرېدی نو لمونځ صحیح دی په غاښو کي بند شی که چېري د نخود د مقدار څخه زیات وي نو په دې سره لمونځ فاسدیږي او که چېري يې په خوله کي ګوړه یا بوره یا یوبل خوږ شی ایښی وي چي د هغه خوند لږ لږ و حلق ته ځي نو په دې سره لمونځ نه فاسدیږي ولي چي ډېر زيات کم وي .

# دا فصل په بيان کي د سجده سهوي دی

(فَصْلٌ فِيْ سُجُوْدِ السَّهْوِ)

سَجْدَةُ السَّهْوِ وَاجِبَةٌ لَاتَجِبُ اِلَّابِتَرْکِ الْوَاجِبِ اَوْبِتَاخِيْرِهٖ اَوْبِتَاخِيْرِ رُکْنٍ اَمَّا تَرْکُ الْوَاجِبِ فَهُوَ کَمَا اِذَا نَسِیَ قِرَاءَةَ الْقُنُوْتِ اَوِالتَّشَهُّدِ فِیْ اِحْدَی الْقَعْدَتَيْنِ فِیْ اَظْهَرِ الرِّوَايَاتِ وَکَمَا اِذَا نَسِیَ تَکْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ وَکَمَا اِذَا جَهَرَ فِيْمَا يُخَافَتُ اَوْخَافَتَ فِيْمَا يُجْهَرُ وَذُکِرَ فِی الذَّخِيْرَةِ يَجِبُ بِسِتَّةِ اَشْيَآءٍ بِتَقْدِيْمِ رُکْنٍ نَحْوُ اَنْ يَّرْکَعَ قَبْلَ اَنْ يَّقْرَءَ وَيَسْجُدَ قَبْلَ اَنْ يَّرْکَعَ وَبِتَاخِيْرِ رُکْنٍ نَحْوُ اَنْ يَّتْرُکَ سَجْدَةً صُلْبِيَّةً فَتَذَکَّرَهَا فِی الرَّکْعَةِ الثَّانِيَةِ فَسَجَدَهَا اَوْيُؤَخِّرَ الْقِيَامَ اِلَی الثَّانِيَةِ اَوِ الثَّالِثَةِ وَبِتِکْرَارِ الرُّکْنِ نَحْوُ اَنْ يَّرْکَعَ مَرَّتَيْنِ بِتَغْيِيْرِ الْوَاجِبِ نَحْوُ اَنْ يَّجْهَرَ فِيْمَا يُخَافَتُ اَوْيُخَافِتَ فِيْمَا يُجْهَرُ فِيْهِ وَبِتَرْکِ الْوَاجِبِ نَحْوُ اَنْ يَّتْرُکَ الْقَعْدَةَ الْاُوْلٰی فِی الْفَرَائِضِ وَبِتَرْکِ السُّنَّةِ الْمُضَافَةِ اِلٰی جَمِيْعِ الصَّلٰوةِ نَحْوُ اَنْ يَّتْرُکَ قِرَاءَةَ التَّشَهُّدِ فِی الْقَعْدَةِ الْاُوْلٰی وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ اَلتَّشَهُّدُ فِی الْقَعْدَةِ الْاُوْلٰی وَاجِبٌ وَالْجَهْرُ وَالْمُخَافَتَةُ فِیْ مَحَلِّهٖ وَاجِبٌ وَلَوْ جَهَرَ فِيْمَا يُخَافَتُ اَوْخَافَتَ فِيْمَا يُجْهَرُ قَدْرَ مَاتَجُوْزُ بِهِ الصَّلٰوةُ يَجِبُ وَهُوَ الْاَصَحُّ وَاِلَّا فَلَا وَذُکِرَ فِی النَّوَادِرِ اِنْ خَافَتَ الْفَاتِحَةَ اَوْاَکْثَرَهَا اَوْخَافَتَ مِنَ السُّوْرَةِ ثَلٰثَ اٰيَاتٍ قِصَارٍ اَوْ اٰيَةً طَوِيْلَةً فَعَلَيْهِ السَّهْوُ وَاِنْ خَافَتَ اٰيَةً

قَصِيْرَةً يَجِبُ عِنْدَهُ خِلَافًا لَهُمَا ثُمَّ اَدْنَى الْجَهْرِ اَنْ يَّسْمَعَ غَيْرُهُ وَاَدْنَى الْمُخَافَةِ اَنْ يَّسْمَعَ نَفْسُهُ وَهٰذَا هُوَ الْمُخْتَارُ ذَكَرَهُ فِي الْقُنْيَةِ.

**ژباړه:** سجده سهوه واجب ده او نه واجب كيږي مگر نه د واجب په پرېښوولو سره يا د هغه په موخر كولو سره يا د يوه ركن په تاخير سره، نو د واجب پرېښوول لكه دعاء قنوت، يا په ناسته كي يې التحياته ايره سي نو د ښكاره روايت مطابق او دغه ډول چي كله تكبيرات عيدين يې ايرسي دغه ډول كه چېري د اخفاء په ځای جهر وكړي يا د جهر په ځای اخفا وكړي او په ذخيره كي راغلي دي چي په شپږو شيانو سره سجده سهوه واجب كيږي، د ركن مخكي كول لكه د قرآئت څخه تر مخه ركوع وكړي او د ركوع څخه تر مخه سجده وكړي او د ركن په تاخير سره لكه څنگه چي د لمانځه سجده پرېږدي بيا په دوهم ركعات كي په يادېدو سره هغه سجده وكړي يا ولاړه د دوهم يا دريم ركعات مؤخره كړي، په تكرار د ركن سره لكه چي ركوع دوه واره وكړي، د واجب په مغير كولو سره لكه څنگه چي د اخفاء په ځای جهر كول او د جهر په ځای اخفا كول او د واجب په پرېښوولو سره لكه چي په فرائضو كي اوله ناسته پرېږدي او د داسي سنت په پرېښوولو سره چي ټوله لمونځ په مثل منسوب وي لكه څنگه چي په اوله ناسته كي التحياته پرېښوول او ځينو علماؤ ويلي دي چي په اوله ناسته كي التحياته ويل واجب دي، جهر او اخفاء په خپل خپل ځايو كي واجب ده، او كه چېري د اخفاء پر ځای جهر او د جهر پر ځای اخفاء په دومره مقدار كي ووايي په كوم سره چي لمونځ جائز كيدی سي نو سجده سهوه واجب ده كه نه وي نه ده او دغه اصح قول دی، په نوادر كي ذكرسوي دي كه چېري الحمد لله شريفه يې پوره يا اكثره خفيه وويل يا د سورت څخه درې آياته مختصر يا يو آيت لوی ووايه نو په هغه باندي سجده سهوه لازمه ده او كه چېري يې يو ايت مختصر خفيه ووايه نو

د ابو حنيفه رحمه الله په نِز واجب ده بخلاف د صاحبينو، نو بيا ادڼی جهر دادی چي د دې نه علاوه يې يوڅوک واوري او ادڼی اخفاء داده چي هغه يې خپله واوري او دغه مختار قول دی دغه يې په کوقنيه کي ذکر کړي دي .

**تشريح**: سجوده سهوه زموږ په نِز واجب ده او دا په لمانځه کي مخته راتلونکي نقصاناتو لپاره جبيره ده لکه چي په امورو حج او عمره کي دم دی، په ترک واجب سره لازميږي او سنتو و مستحباتو لکه ثناء، امين، تکبيرات، انتقالات او رکوع وسجودو کي په تسبيحاتو وغيره سره نه لازميږي او نه د فرائضو په پرېښوولو سره سجده سهوه لازمه ده ولي چي د فرائضو جبيره په دې سره نه سي کېدی بلکي پرې ښوول د لمانځه دي او د فرائضو اعاده کول ضروري ده، صاحب ذخيره ويلي دي چي په شپږو شيانو سره سجده سهوه واجب کيږي.

۱: په تقديم رکن سره د دې مثال مصنف رحمه الله دا پيش کړی دی چي رکوع د قرآئت څخه د مخه او سجده د رکوع څخه د مخه وکړل سي مګر رکوع د قرآئت څخه د مخه او سجده د رکوع څخه د مخه په لمانځه کي نه شمارل کيږي بلکي د قرآئت وروسته رکوع او د رکوع وروسته سجده کول لازم دي نو چي کله يې دوی په لمانځه کي شمار کړل نو دا د رکن مقدم کول نه سو البته په دا ډول کولو سره سجده سهوه د دې لپاره لازمه ده چي په دې زيادت سره د رکن تاخير وسو .

۲: د رکن په تاخير سره لکه څه ډول چي څوک په يوه رکعات کي يوه سجده ايره کړي په دوهم رکعات کي يې هغه په ياد راتلو سره ادا کړي يا په دوهم رکعات سره ولاړه مؤخره کړي يعني دا چي اول رکعات په دوهم باندي، يا په اوله ناسته کي د تحياتي سره درود شريف يوځای کړي د دريم رکعات ولاړه مؤخره کړي.

۳: په تکرار رکن سره مثلاً د يوې رکوع پر ځای دوې يا د دوو سجدو پر ځای په يوه رکعات کي درې سجدې کول .

۴: واجب د خپل صفت څخه د دوهم صفت وطرف ته متغير كول لكه د جهر په ركعاتو كي خفيه او په خفيه كي جهر كول.

۵: په ترك د واجب سره لكه څوك چي اوله ناسته پريږدي د دريم ركعات لپاره ولاړ سي.

٦: د داسي سنت په پريښوولو سره د كوم نسبت چي د پوره لمانځه وطرف ته وكړل سي لكه د اولي ناستي التحياته ويل چي دې ته تهشد الصلوة ويل كيږي او تشهد قعده نه ويل كيږي لكه تسبيحات د ركوع او د سجودو صرف د ركوع او سجود وطرف ته منسوب كيږي.

مګر دا شپږم قسم د هغه علماؤ د قول مطابق دی چي د اولي ناستي التحياته سنت ګڼي او د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي په اوله ناسته كي التحياته ويل واجب دي، ولي چي نبی كريم صلى الله عليه وسلم په دې مواظبت كړی دی.

وَلَوْقَامَ اِلَى الْخَامِسَةِ اَوْقَعَدَ فِى الثَّالِثَةِ يَجِبُ بِمُجَرَدِ الْقِيَامِ وَالْقُعُوْدِ وَاِنْ نَهَضَ اِلَى الثَّالِثَةِ سَاهِيًا اِنْكَانَ اِلَى الْقُعُوْدِ اَقْرَبَ يَقْعُدُ وَفِىْ وُجُوْبِ السَّهْوِ عَلَيْهِ اخْتِلَافٌ وَاِنَّمَا يَكُوْنُ اِلَى الْقُعُوْدِ اَقْرَبُ اِذَالَمْ يَرْفَعْ رُكْبَتَيْهِ فَاِنْكَانَ اِلَى الْقِيَامِ اَقْرَبُ لَمْ يَقْعُدْ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَلَوْ كَرَّرَ الْفَاتِحَةَ فِى الْاُوْلَيَيْنِ اَوْقَرَءَ الْقُرْاٰنَ فِىْ رُكُوْعِهِ اَوْفِىْ سُجُوْدِهِ اَوْفِى التَّشَهُّدِ يَجِبُ وَاِنْ قَرَءَ الْفَاتِحَةَ فِى الْاُخْرَيَيْنِ مَرَّتَيْنِ اَوْضَمَّ فِيْهِمَا سُوْرَةً اَوْقَرَءَ التَّشَهُّدَ مَرَّتَيْنِ فِى الْقَعْدَةِ الْاَخِيْرَةِ اَوْتَشَهَّدَ قَآئِمًا اَوْرَاكِعًا اَوْسَاجِدًا لَاسَهْوَ عَلَيْهِ كَذَافِى الْمُخْتَارِ وَلَوْ زَادَ فِى التَّشَهُّدِ فِى الْقَعْدَةِ الْاُوْلٰى اِن قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّعَلٰى اٰلِ مُحَمَّدٍ يَجِبُ بِالْاِتِّفَاقِ وَرُوِىَ عَنْ اَبِىْ حَنِيْفَةَ اَنَّهُ اِنْ زَادَ حَرْفًا وَاحِدًا

يَجِبُ وَرَوِىَ عَنْهُمَا اِنْ قَالَ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ لَايَجِبُ وَاِنْ سَكَتَ فِى الْاُخْرَيَيْنِ مُتَعَمِّدًا فَقَدْ اَسَآءَ وَاِنْ سَكَتَ سَاهِيًا يَجِبُ عَلَيْهِ السُّهُوُ وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ لَاسَهْوَ عَلَيْهِ.

**ژباړه:** که چېري د پنځم رکعات لپاره ولاړ سو يا په دريم رکعات باندي کښېنستی نو صرف په ولاړه او ناسته باندي سجده سهوه واجب کيږي او که چېري د دريم رکعات لپاره په ايره سره ولاړ سو نو که و ناستي زيات نژدې وي نو دې کښېني او پر ده باندي د سجده سهوي په لازميدو کي اختلاف دی او ناستي ته قريب هغه وخت وي چي کله ځنګنونه نه کړي پورته که چېري ولاړي ته نژدې وي نو نه دي کښېني او سجده سهوه دي وکړي او که يې په اولو دوو رکعاتو کي الحمد لله شريفه دوه واره وويل يا يې په رکوع او سجوده کي قرآن ووايه يا په التحياتي کي نو واجب دی او که يې په اخيري دوو رکعاتو کي الحمدلله دوه واره وويل يا يې په هغه کي سورت يو ځای کړ يا يې په اخيره ناسته کي التحياته دوه واره وويل يا يې په حالت د ولاړي، رکوع او سجده کي ووېل نو په هغه باندي هيڅ سجده سهوه نشته دغه مختار قول دی .

د اولي ناستي په التحياته کي يې : "اللهم صلي على محمد وعلى ال محمد " زيادت وکړ نو بالاتفاق واجب ده او د امام حضرت ابو حنيفه رحمه الله څخه روايت دی که يې چېري يو حرف هم زايد کړ نو واجب ده او د صاحبينو څخه روايت سوی دی که چېري يې " اللهم صل على محمد "ووايه نو نه واجب کيږي او که په اخيري دوو رکعاتو کي قصداً چپ وو نو ګناهګار دی او که په ايره سره چپ وو نو په هغه سجده سهوه لازمه ده او ابويوسف رحمه الله وايي چي په هغه هيڅ سجده نشته .

**تشريح:** که چېري په څلور رکعاتيزه لمانځه کي د پنځم رکعات لپاره ولاړ سو يا د

دريم ركعات د سجودو وروسته د څلورم ركعات په ځاى په دريم ركعات كښينستى يا د ماښام په لمانځه كي د څلورم ركعات لپاره يا د سهار په لمانځه كي د دريم ركعات لپاره ولاړ سو نو كه څه هم د ولاړي په حالت كي يې هيڅ نه وي ويلي صرف په ولاړي سره سجده سهوه لازمه ده، دغه ډول دريم ركعات بېله د ماښام يا د اول ركعات وروسته صرف په ناستي سره كه په ناسته كي يې څه وويل او كه نه سجده سهوه باندي لازمه ده ولي چي په دې صورتو كي د واجب عمل په تاخير يعني په ولاړي سره التحياته او سلام مؤخر كيږي، د ناستي په صورت كي ركن يعني ولاړه مؤخره كيږي، كه چېري يې په دوهم ركعات باندي د كښينستلو پر ځاى اوله ناسته يې ايره سوه د دريم ركعات لپاره ولاړسو نو دي وكتل سي كه ناستي ته نژدې وو يعني ځنګنونه يې نه وه پورته كړي يا د بدرالدين كردري د قول مطابق نيم نه وي پورته سوى نو دي كښيني او د اصح قول مطابق په هغه باندي سجده سهوه نه ده لازمه او كه چېري سيده ودريدى نو دي ناسته پرېږدي لمونځ دي مكمل كړي او په هغه باندي د واجب ترک كولو په وجه سجوده سهوه لازمه ده مګر كه چېري د دريم ركعات په اوله ناسته كي په ياد راتلو سره بيرته وګرځي نو كه څه هم ځينو علماؤ د فساد نماز فتوٰى كړي ده ولي چي هغه فرض ولاړه پريښودله د واجب ناستي وطرف ته را وګرځيدى مګر د حافظ ابن الهمام د تحقق مطابق لمونځ نه فاسديږي البته ګناهګار ضرور دى، زموږ د علماؤ فتوٰى هم د عدم فساد ده، كه يو مقتدى د امام سره په اوله ناسته كي شريک سي مګر د التحياتي د شروع كولو څخه تر مخه امام پورته سي نو مقتدي ته التحياته پوره كول پكار دي، كه يې په اوله ناسته كي په ايره سره درود شريف" اللهم صل على محمد وعلى ال محمد "پوري ووايه نو د مفتٰى به قول مطابق په هغه باندي سجده سهوه ضروري ده.

وَإِنْ قَرَءَ بَعْدَ التَّشَهُّدِ فِي الْقَعْدَةِ الْاٰخِرَةِ لَاسَهْوَ عَلَيْهِ وَإِنْ تَذَكَّرَ الْقُنُوْتَ بَعْدَ الرُّكُوْعِ لَمْ يَعُدْ وَإِنْ تَذَكَّرَ وَهُوَ فِي الرُّكُوْعِ فَفِيْهِ رِوَايَتَانِ وَقَالَ النَّاطِقِيُّ عَادَ اَوْلَمْ يَعُدْ يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَإِنْ سَلَّمَ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ فِي الظُّهْرِ عَلٰى رَأْسِ رَكْعَتَيْنِ فِي الظُّهْرِ عَلٰى ظَنِّ اَنَّهَا جُمُعَةٌ اَوْ فَجْرٌ يَسْتَأْنِفُ وَإِنْ سَهٰى عَنِ الْقَعْدَةِ الْاٰخِيْرَةِ وَقَامَ اِلَى الْخَامِسَةِ يَعُوْدُ اِلَى الْقَعْدَةِ مَالَمْ يَسْجُدْ لِلْخَامِسَةِ وَيَسْجُدُ للسَّهْوِ وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِالسِّجْدَةِ بَطَلَ وَتَحَوَّلَتْ صَلٰوتُهُ نَفْلًا وَعَلَيْهِ اَنْ يَّضُمَّ اِلَيْهَا رَكْعَةً سَادِسَةً وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَإِنْ قَعَدَ فِيْ اٰخِرِ الرَّابِعَةِ ثُمَّ قَامَ كَانَ فَرْضُهُ تَامًّا وَالرَّكْعَتَانِ نَافِلَةً وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ اِسْتِحْسَانًا.

**ژباړه:** که یې په اخیره ناسته کې د التحیاتي وروسته قرآئت ووایه نو په هغه باندې سجده سهوه واجب نه ده او که چېرې یې د رکوع وروسته دعائي قنوت په یاد سي نو اعاده دې نه کوي او که په رکوع کې ورپه یاد سو نو په دې کې دوه روایتونه دي امام ناطقي رحمه الله ویلي دي که یې اعاده وکړه او که نه بهر صورت به سجده کوي او که چېرې یې د ماپښین په لمانځه کې په دې خیال سره سلام وګرځوی چې لمونځ پوره سوی دی بیا یې په یاد سو چې هغه فقط دوه رکعاتونه کړي دي نو دی دي لمونځ پوره کړي او سجده سهوه دې وکړي او که یې چېرې په دوو رکعاتو باندې په دې خیال سره سلام وګرځوی چې د جمعې یا د سهار لمونځ کوي نو دې د شروع څخه لمونځ وکړي او که یې چېرې اخیره ناسته ایره سوه د پنځم رکعات لپاره ولاړ سو نو تر څه وخته پوري چې یې د پنځم رکعات سجده نه وي کړي نو د ناستې و طرف ته دې را وګرځي او سجده سهوه دې وکړي او که یې پنځم رکعات د سجده

سهوي سره مقيد کړ نو فرض باطل سو او ټول لمونځ يې نفل سو او په هغه لازمه ده چي د شپږم رکعات ورسره يوځای کولو سره سجده سهوه وکړي که چېري په څلورم رکعات کښينستی بيا ودريدی نو د هغه فرض پوره سوه او دوه رکعاته نفل سوه او استحساناً دي سجده سهوه وکړي.

**تشريح**: په لمانځه کي په اخيري ناسته کي د التحياتي وروسته يې د قرآن پاک يو څه آياتونه وويل نو په دې سره سجده سهوه نه لازميږي ولي چي دا د ثنا او دعا محل دی، قرآن پاک په دعا باندي مشتمل دی که چېري په وتر لمانځه کي يې دعائي قنوت اېر سي او د رکوع کولو وروسته يې په ياد سي نو دعائي قنوت دي پرېږدي فقط په اخر کي دي سجده سهوه وکړي مگر چي کله يې په رکوع کي دننه په ياد سي نو بيا دي هم دعائي قنوت پرېږدي ولي چي د رکوع وروسته قومه د ولاړي په حکم کي نه ده او دعائي قنوت په حالت د ولاړي کي ويل کيږي نو ځکه صرف په سجده سهوه سره د هغه لمونځ صحيح کيږي، د څلور رکعاتو په لمانځه کي په دې خيال سره په دوو رکعاتو باندي سلام وگرځوی نو د ياد راتلو وروسته يې که چېري منافی د لمانځه کار نه وي کړی نو پاته دوه رکعاته دي د هغوی سره يوځای کړي په اخر کي دي سجده سهوه وکړي نو د هغه لمونځ به درست وي ولي چي د هغه خيال د کامل لمانځه وو نو سلام سهوًا سو مگر که يې د څلور رکعاته لمانځه متعلق دغه خيال کړی وو چي دوه رکعاته دي مثلاً د جمعې دوه فرض رکعاته دي نو هغه سلام گرځولی دی نو د هغه سلام د لمانځه لپاره قاطع سو د باقي دوو رکعاتو بنا په هغه باندي نه سي کيدی د دې لپاره دي پوره لمونځ وکړي، که چېري يو سړي ته په اخير د لمانځه کي سهوه وسي او په ايره سره په رباعي کي پنځم په ثلاثي کي څلورم په ثنائی کي د دريم رکعات لپاره ولاړ سو نو که يې چېري په دې زائد رکعات کي سجده نه وي کړي نو د هغه بيرته گرځيدل پکار دي او د ناستي سره په سجده سهوه

ولو سره لمونځ پوره کول پکار دي ولې چې هغه يو رکن يعني اخيري ناسته کې
نه ولي ده مګر که يې په دې زائد رکعات کې سجده وکړه نو زموږ په نز د هغه د
لمانځه فرضيت باطل سو ټوله لمونځ يې نفل کيږي لهٰذا د دې زائد رکعات سره دي
يو رکعات بل يوځاى کړي چې نفل جُفت سي او که چېري يې اخيره ناسته په قدر د
التحياتي ويلو وروسته د زائد رکعات لپاره ولاړ سو نو که د سجدې کولو څخه
ترمخه يې په ياد سي نو دي د ناستې وطرف ته را وګرځي او په سجده سهوه کولو
سره دي سلام وګرځوي، زائد رکعاتونه چې يې څومره کړي وي هغه نه شمارل کيږي
ولې چې د يوه رکعات څخه کم لمونځ د ماتولو قابل وي، که چېري امام د زائد
رکعات لپاره ولاړ وي نو مقتدى دي د هغه پيروي نه کوي بلکي که چېري هغه د
زائد رکعات د سجدې څخه ترمخه را وګرځيدى نو دي د هغه اتباع وکړي که يې
سجده وکړه نو مقتدى دي په خپله سلام وګرځوي.

وَسَهْوُ الْاِمَامِ يُوْجِبُ السِّجْدَةُ عَلَيْهِ وَعَلَى الْقَوْمِ وَسَهْوُ الْمُؤْتِمِ لَايُوْجِبُ عَلَى الْاِمَامِ
وَلَاعَلَيْهِ وَاِنْ سَهٰى عِنِ السَّلَامِ يَعْنِيْ اَنَّهُ اَطَالَ الْقَعْدَةَ عَلٰى ظَنِّ اَنَّهُ خَرَجَ مِنَ
الصَّلٰوةِ فَسَلَّمَ يَسْجُدُ للسَّهْوِ وَاِنْ سَلَّمْ مَنْ عَلَيْهِ السَّهْوُ يُرِيْدُ بِهِ قَطْعَ الصَّلٰوةِ يَعْنِيْ
لَايُرِيْدُ سَجْدَةً للسَّهْوِ ثُمَّ بَدَالَهُ فَلَهُ اَنْ يَّسْجُدَ مَالَمْ يَتَكَلَّمْ وَلَايَسْتَدْبِرُ الْقِبْلَةَ
مَنْ شَكَّ فِي الْقِيَامِ اَنَّهُ كَبَّرَ لِلْاِفْتِتَاحِ اَمْ لَاوَطَالَ تَفَكُّرُهُ وَعَلِمَ اَنَّهُ كَبَّرَ اَوْظَنَّ اَنَّهُ
لَمْ يُكَبِّرْ فَاَعَادَ التَّكْبِيْرِ ثُمَّ تَذَكَّرَ فَعَلَيْهِ السَّهْوُ ثُمَّ الْاَصْلُ فِيْ حُكْمِ التَّفَكُّرِ اِنْ
مَنَعَهُ عَنْ اَدَآءِ رُكْنٍ اَوْ وَاجِبٍ يَلْزَمُهُ السَّهْوُ وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ اِنْ مَنَعَهُ عَنْ
الْقِرَاءَةِ اَوِ التَّسْبِيْحِ يَجِبُ عَلَيْهِ السَّهْوُ وَاِلَّا فَلَا.

**ژباړه**: د امام سهوه په خپله په هغه او په قوم باندي سجده سهوه واجب وي، او د مقتدی سهوه په امام او په خپله پر هغه نه واجبه وي، که چېري په سلام سره سهوه وي يعنی هغه ناسته په دې خيال سره اوږده کړي چي هغه د لمانځه څخه وتلی دی د هغه وروسته يې سلام وګرځوی د هغه وروسته يې سجده سهوه وکړه او که چېري هغه سړی په چا چي سجده سهوه لازمه وه د سلام قطع کولو په نيت سره وګرځيدی يعني د سجده سهوه ادا کولو نيت يې نه وو بيا هغه ته معلومه سوه نو هغه دي سجده وکړي تر هغه وخته پوري چي يې خبري نه وي کړي او د قبلې وطرف ته يې شا نه وي کړي، کوم څوک چي په ولاړه کي په دې شک کي سي چي هغه تکبيري تحريمه ادا کړه که نه او د هغه فکر اوږد سو او معلوم سو چي تکبير يې ويلی دی يا يې دا ګمان وکړ چي تکبيري يې نه دی ويلی نو دوباره دي تکبير ووايي بيا يې په ياد سوه نو په هغه باندي سجده سهوه ده، په اصل قاعده په فکر کولو کي داده چي که چېري هغه د رکن يا واجب ادا کولو څخه بند کړي نو په هغه باندي سجده سهوه لازمه ده او ځينو علماؤ ويلي دي که چېري هغه د قرآئت او رکوع کولو څخه بند کړي نو په هغه باندي سجده سهوه واجب ده .

**تشريح**: د امام سهوه په مقتدي باندي سجده واجب کوي که څه هم مقتدی مسبوق وي چي کوم وخت امام ته سهوه سوې وه هغه وخت دی موجود نه وو مثلاً په اول رکعات کي امام سهوه سو چي د هغه په وجه سجده لازمه سوه اوس يو سړی په دوهم يا دريم رکعات کي شريک سو نو چي کله امام سجده سهوه کوي نو په دې مقتدي مسبوق هم لازمه ده، البته واضح دي وي چي د امام سره به صرف په سجدې کي شريک وي د امام سره به سلام نه ګرځوي بلکي منتظر به وي چي کله امام سجده وکړي نو دی به هم شريک سي او د امام د فراغت وروسته به خپل پاته لمونځ پوره کړي او د مقتدی په سهوه سره نه په امام سجده واجب ده او نه په مقتدی د دې

لپاره چي تنها د مقتدي په سجده کولو کي د امام مخالفت دی او د هغه په وجه که چېري امام سجده وکړي نو امام چي اصل وو هغه به ددې مقتدی تابع سي او دا جائز نه ده ·

په لمانځه کي که سوچ او فکر چېري د یوه رکن په مقدار اوږد سي نو په هغه باندي سجده سهوه لازمه ده ولي چي په دې سره په ارکانو او واجباتو کي تاخیر راځي ·

وَاِنْ سَلَّمَ الْمَسْبُوْقُ مَعَ اِمَامِهٖ لَاسَهْوَ عَلَيْهِ وَاِنْ سَلَّمَ بَعْدَهٗ يَجِبُ وَفِي الْمُلْتَقَطِ الْمَسْبُوْقُ اِذَا سَلَّمَ مَعَ اِمَامِهٖ وَكَبَّرَ اَيَّامَ التَّشْرِيْقِ مَعَ اِمَامِهٖ سَهْوًا فَعَلَيْهِ السَّهْوُ وَالْمَسْبُوْقُ يُتَابِعُ اِمَامَهٗ فِيْ سُجُوْدِ السَّهْوِ وَاِنْ قَامَ قَبْلَ سَلَامِ الْاِمَامِ وَقَرَءَ وَرَكَعَ وَلَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى سَجَدَ الْاِمَامُ لِلسَّهْوِ يُتَابِعُهٗ وَيَرْفِضُ قِيَامَهٗ وَرُكُوْعَهٗ وَاِنْ لَّمْ يُتَابِعِ الْاِمَامَ يَسْجُدُ اِذَا فَرَغَ وَاِنْ سَهٰى فِيْ مَايَقْضِيْ يَسْجُدُ اَيْضًا.

**ژباړه**: که مسبوق د امام سره سلام وګرځوی نو په هغه باندي سجده سهوه نسته او که یې د هغه وروسته وګرځوی نو واجب ده او په ملتقط کي راغلي دي چي مسبوق کله د امام سره سلام وګرځوي او د امام سره تکبیرات تشریق هم ووایي نو په هغه سجده سهوه لازمه ده، او مسبوق دي په سجده سهوه کي د امام اتباع وکړي او که چېري د امام د سلام څخه ترمخه ولاړ سو قرآئت او رکوع یې وکړل او سجده یې نه وه کړي تر دې پوري چي امام د سجده سهوه لپاره سجده وکړه نو هغه دي د امام اتباع وکړي او خپله ولاړه او رکوع دي پرېږدي او که یې د امام اتباع نه وکړه نو د قرآئت د فراغت څخه وروسته دي په آخیري ناسته کي دي سجده وکړي او که چېري په خپل پاته لمانځه کي سهوه سو نو په هغه کي دي هم سجده سهوه وکړي ·

**تشريح:** کوم سړی چي د يوڅو رکعاتو څخه پاته سي هغه ته د فقهي په اصطلاح کي مسبوق ويل کيږي نو مسبوق د امام سره د سلام ګرځولو وروسته د خپل پاته سوي رکعاتو لپاره ولاړيږي مګر که چيري يو مسبوق خپل پاته رکعات اير کړي د امام سره سلام وګرځوي بيا يې خپل پاته رکعات کول په ياد سي نو په دې سلام ګرځولو سره په هغه باندي سجده سهوه واجب نه ده ولي چي دی د سلام ګرځولو پوري د امام په اقتدا کي دی او اول تېر سوی دی چي د مقتدي په سهوه سره په هغه سجده نه لازميږي او که د امام سره د سلام ګرځولو څخه وروسته مقتدی سلام وګرځوي يعنی د امام د سلام سره مقارن نه وي نو په مقتدي باندي سجده سهوه لازمه ده ولي چي اوس د منفرد په حکم کي سو او مسبوق به هم په سجده سهوه کي د امام اتباع کوي چي د هغه تفصيل د دې عبارت څخه تر مخه په تشريح کي تېر سوی دی.

وَلَايَنْبَغِيْ لِلْمَسْبُوْقِ اَنْ يَّقُوْمَ اِلٰى قَضَآءِ مَاسَبَقَ بِهٖ قَبْلَ سَلَامِ الْاِمَامِ فَاِنْ قَامَ قَبْلَ اَنْ يَّفْرُغَ الْاِمَامُ مِنَ التَّشَهُّدِ فَالْمَسْئَلَةُ عَلٰى وُجُوْهٍ اِمَّا اِنْ كَانَ مَسْبُوْقًا بِرَكْعَةٍ اَوْبِرَكْعَتَيْنِ اَوْبِثَلٰثِ رَكْعَاتٍ فَلَنْ كَانَ مَسْبُوْقًا بِرَكْعَةٍ اِنْ وَقَعَ مِنْ قِرَآئَتِهٖ بَعْدَ فَرَاغِ الْاِمَامِ مِنَ التَّشَهُّدِ مِقْدَارَ مَاتَجُوْزُ بِهِ الصَّلٰوةُ جَازَتْ صَلٰوتُهٗ وَاِلَّا فَسَدَتْ لِاَنَّ قِيَامَهٗ وَقِرَآئَتَهٗ قَبْلَ فَرَاغِ الْاِمَامِ مِنَ التَّشَهُّدِ لَايُعْتَبَرُ وَكَذَا اِنْ كَانَ مَسْبُوْقًا بِرَكْعَتَيْنِ.

**ژباړه:** د مسبوق لپاره مناسبه نه ده چي د خپل پاته رکعاتو ادا کولو لپاره د امام د سلام څخه تر مخه ولاړ سي نو که چيري امام د التحياته د فراغت څخه وروسته ولاړ سو نو دا مسئله په يوڅو صورتو باندي ده يا خو به د يوه يا دوه يا به د درو رکعاتو

مسبوق وي نو که چیرې د یوه رکعات مسبوق وي نو د هغه د قرآئت دومره مقدار په کوم سره چې لمونځ جائز کیدی سي د امام د التحیاتي د فراغت څخه وروسته واقع وي نو د هغه لمونځ جائز دی که نه وي نو فاسد دی ولي چې د هغه ولاړه او قرآئت د امام د التحیاتي د فراغت څخه ترمخه معتبر نه دي او دغه حکم دی که چیرې مسبوق د دوو رکعاتو وي.

**تشريح**: د مسبوق لپاره نه دی جائز بلکي مکروه تحریمي دی چې د امام د سلام څخه ترمخه د خپل پاته لمونځ پوره کولو لپاره ولاړ سي ولي چې نبی علیه السلام وویل" انما جعل الامام یؤتم تختلفوا علیہ "یعنی امام خو د دې لپاره مقرر کیږي چې د هغه اتباع وکړل سي نو د هغه څخه اختلاف مه کوئ، البته که د ضرورت پر بنا د امام د فراغت څخه تر مخه ولاړ سي مثلاً که چیرې د امام لپاره انتظار وکړي نو په پاته رکعاتو کي طلوع آفتاب د سهار په لمانځه کي یا د ماپښین په لمانځه د عصر د وخت د خول خوف وي نو د امام د فراغت څخه تر مخه ولاړیدل جائز دي بیا په دې صورت کي به کتل کیږئ چې دا مسبوق یا به د یوه یا د دوو رکعاتو څخه پاته سوی وي نو هغه که چیرې د امام د التحیاتي څخه د فراغت ترمخه قرآئت ووایي او امام د هغه وروسته فارغه سو نو دا لمونځ د دې لپاره فاسد دی چې دا قرآئت بمنزله د عدم عدم دی نو چې کله فرض قرآئت نه وي نو د لمانځه فاسیدېدل لازم دی مګر که چیرې د امام د فراغت وروسته د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزیو آیت او د صاحبینو په نز درې آیاته مختصر یا یو لوی آیت ووایي نو لمونځ به یې درست سي ولي چې د قرآئت فرض مقدار پوره سوی دی، که چیرې د درو یا څلورو رکعاتو مسبوق وي او د امام د التحیاتي د فراغت څخه ترمخه خپل قرآئت یې پوره کړ نو د هغه لمونځ د دې لپاره جائز دی چې په پاته رکعاتو کي د قرآئت کمی پوره کول ممکن دی ولي چې قرآئت په دوو رکعاتو کي علی التعین فرض دی البته که یې چیرې په پاته

رکعاتو کي قرآئت نه ووايه نو لمونځ يې فاسد دی.

وَذُكِرَ فِي الْخَاقَانِيَّةِ رَجُلٌ صَلّٰى وَلَمْ يَدْرِ اَثَلٰثًا صَلّٰى اَمْ اَرْبَعًا اِنْ كَانَ ذٰلِكَ اَوَّلُ مَاسَهٰى اِسْتَقْبَلَ يَعْنِيْ اَوَّلُ مَاسَهٰى فِيْ عُمْرِهٖ وَعَلَيْهِ اَكْثَرُ الْمَشَايِخِ وَاِنْ لَقِيَ ذٰلِكَ غَيْرُ مَرَّةٍ يَتَحَرّٰى فَاِنْ وَقَعَ تَحَرِّيْهِ عَلٰى اَنَّهٗ صَلّٰى رَكْعَةً فِيْ رَكْعَتَيْنِ يُضِيْفُ اِلَيْهَا رَكْعَةً اُخْرٰى وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَاِنْ وَقَعَ تَحَرِّيْهِ عَلٰى اَنَّهٗ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ يَقْعُدُ وَيَتَشَهَّدُ وَيُسَلِّمُ وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ وَاِنْ لَّمْ يَقَعْ تَحَرِّيْهِ عَلٰى شَيْءٍ اَخَذَ بِالْاَقَلِّ وَاِنْ كَانَ فِيْ صَلٰوةِ الْفَجْرِ يَجْعَلُ كَاَنَّهٗ صَلّٰى رَكْعَةً فَيَقْعُدُ لِاِحْتِمَالِ اَنَّهٗ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَفِي الذَّخِيْرَةِ لَوْشَكَّ فِيْ ذَوَاتِ الْاَرْبَعِ اَنَّهَا هَلْ هِيَ الْاُوْلٰى اَوِ الثَّانِيَةُ يَقْعُدُ عَلٰى رَاْسِ كُلِّ رَكْعَةٍ وَفِي الْفَتَاوٰى الْفَضْلِيِّ اِذَا دَارَ بَيْنَ الثَّانِيَةِ وَالثَّالِثَةِ لَايَقْعُدُ وَهُوَ الصَّحِيْحُ اِلَّا فِي الْمَغْرِبِ وَالْوِتْرِ وَاِنْ بَدَاَ بِالسُّوْرَةِ فِي الْاُوْلٰى فَعَلَيْهِ السَّهْوُ وَاِنْ قَرَءَ حَرْفًا كَذَا فِي الْخَاقَانِيَّةِ وَسَجْدَةُ السَّهْوِ سَجْدَتَانِ بَعْدَ السَّلَامِ وَيَتَشَهَّدُ وَيُسَلِّمُ وَيَاْتِيْ بِالصَّلٰوةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ كِلْتَا الْقَعْدَتَيْنِ وَالْاَدْعِيَةِ فِيْ قَعْدَةِ السَّهْوِ وَقَالَ بَعْضُهُمْ يَاْتِيْ بِالْاَدْعِيَةِ فِيْهِمَا وَاللّٰهُ اَعْلَمُ.

**ژباړه:** په خاقانيه کي ذکرسوي دي چي يو سړي ته په لمانځه کي د لمونځ کولو سره دا نه معلوميده چي درې رکعاته يې کړي دي که څلور نو علماء وايي که چېري اول وار دا غلطي سوي وي نو د شروع څخه دي وکړي يعني چي کله په ژوند کي اول وار سهوه سوی وي او په دغه باندي د اکثره علماؤ عمل دی، که چېري دا عمل

...بات وي نو سوچ وفکر دي وکړي که چېري د هغه سوچ دا سي وي چي هغه د دوو رکعاتو څخه يو کړی وي نو د هغه سره دي يو رکعات بل هم يوځای کړي او سجده سهوه دي وکړي او که چېري د هغه سوچ يو طرف ته هم نه ځي نو دي د کم اعتبار وکړي او که د سهار په لمانځه کي وي نو دا سي خيال وکړي چي يو رکعات يې کړی دی نو ناسته وکړي د دې احتمال وجه چي کيدی سي دوه رکعاته يې کړي وي او په ذخيره کي دي که چېري په رباعي لمانځه کي يې شک سي چي دا اول رکعات دی که دوهم نو دي په هر رکعات کي کښيني ... فضلي کي راغلي دي که يې په دوهم او دريم کي شک سي نو نه دي کښيني ... صحيح دی مگر نه د ماښام او په وتر لمانځه کي، که چېري يې په اول رکعات کي د الحمدلله شريفي څخه ترمخه سورت ووايه نو په هغه باندي سجده سهوه ده که څه هم يو حرف يې ويلی وي دغه ډول په خاقانيه کي راغلي دي.

سجده سهوه د سلام وروسته دوې سجدې دي او التحياته دي هم ووايي او سلام دي هم وگرځوي او په نبی عليه السلام دي په دواړو ناستو کي درود شريف ووايي او دعاگاني صرف د سهوي په ناسته کي او ځينو علماؤ ويلي دي چي په دواړو ناستو کي دي دعاگاني ووايي، او الله تعالی تر ټولو ښه پوهيږي.

**تشريح:** حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله وايي که چېري په لمانځه کي شک په اول وار راغلی وي يعني د بلوغ وروسته په ټوله عمر کي اول وار پيښ سوی وي نو دي د سره څخه لمونځ وکړي چنانچي د ابن شيبه رحمه الله څخه مصنف رحمه الله روايت کړی دی چي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ويلي دي چي کوم چا ته دا نه وي معلوم چي درې يې کړه يا څلور نو اعاده دي وکړي تر هغه وخته پوري چي ښه يې ياد سي، که اکثره وخت شک ورته پېښيږي نو په تحري کولو سره دي په غلبه ظن باندي عمل وکړي ...ي چي په صحيحينو کي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه مرفوعاً روايت دی چي

"واذا شک احد کم فی صلوته فلیتحرالصواب فلیتم علیه "مګر که چېري د هغه سوچ او فکر په یوې خبري نه سي یوځای یعني غلبه د ظن نه سي حاصله نو کمتر چي کوم یقیني دی په هغه دي عمل وکړي مثلاً په دوو یا درو رکعاتو کي شک وي نو په دوو کېدو کي هیڅ شک نه وي او یقیناً تر دې کم نسته، نو په دغه دي مدار وکړي ولي چي امام مسلم د ابوسعد خدری رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي کله ستاسو څخه ثوک په خپل لمانځه کي شک وکړي نه باندي پوه سي چي څومره يې کړي دي نو دي په یقین بناء وکړي تر دې پوري چي دا یقین يې سي چي پوره کړی يې دي نو دي د سلام ګرځولو څخه ترمخه دوې سجدې وکړي په کوم صورت کي چي په کمتر بنا وکړي په هغه کي دي پر هر هغه رکعات ناسته کوي کوم چي د رکعات اخیر ګڼي مثلاً په یو دوو کي يې شک وي او فکر يې یوه طرف ته نه سو یوځای نو ځکه هغه په یوه بنا وکړه نو د هغه وروسته دي ناسته وکړي د دې وهم په وجه چي دا دوهم هم کیدی سي نو محل د ناستي دی او په دوهم رکعات کي دي هم ناسته وکړي ولي چي د بناء علی الاقل وروسته دا دوهم رکعات دی که څه هم د هر رکعات وروسته کښېنستل بدعت دی مګر د ترک فرض یا واجب څخه د ځان ساتلو لپاره دا صورت اختیار سوی دی، په لمانځه کي د سهوه کیدلو جبیره د سلام وروسته دوې سجدې دي مګر په ناسته کي چي کوم درود شریف او دعاګاني ویل کیږي د هغه مقام ناسته صلوٰتیه ده که ناسته او سجده سهوه؟

په دې بابت د مشائخو اختلاف دی امام کرخی رحمه الله وايي درود دي د ناستي وغیره د سجده سهوي څخه په وروسته ناسته کي ویل پکار دي صاحب هدایې هم د دې تصحیح کړي ده ولي چي د درود شریف او دعاګانو محل د لمانځه اخیري حصه ده او د سجده سهوي څخه ترمخه لمونځ نامکمل وي، د امام طحطاوي رحمه الله په نِز د سجده سهوي څخه ترمخه او وروسته په دواړو ناستو کي دي ووايي.

په فتح القدير كي راغلي دي چي درود شريف په دواړو ناستو او دُعا صرف په اخري ناسته پكار ده، د سجده سهوي د اداكولو لپاره صلاحيت د وخت قيد دى يعني سجده سهوه دي هغه وخت وكړي چي كله د لمانځه صلاحيت لري نو كه چېري د سهار په لمانځه كي د سلام وروسته لمر راپورته سي يا د سلام وروسته د لمونځ كونكي څخه يو منافع د لمانځه عمل ښكاره سي نو په دې صورتو كي د هغه څخه سجده سهوه ساقطيږي.

# دا فصل په بیان کې د قرآئت ویونکو د غلطیانو په بیان کې دی

(یو ضروري وضاحت)

په دې فصل کې یوائې ژباړه لیکل کیږي، صاحب کتاب خپله تصریح کړې ده چې دا مسائل په علم لغت کې د" مهارب تامه "څخه بغیر په یو بل باندې قیاس نه سي کیدی ځکه صرف د ماهرینو اقوال نقل کول کافي دي البته د دې مسائلو په صحیح طور د ایزده کولو لپاره په نور الایضاح کې د شیخ الادب محمد اعزاز رحمه الله نقل کرده حاشیه مسائل زلة القاري د عنوان څخه مطالعه کول ضروري دي.

اَلْاَصْلُ فِيْهِ اَنَّهُ اِنْ لَّمْ يَكُنْ مِّثْلُهُ فِي الْقُرْاٰنِ وَالْمَعْنٰى بَعِيْدٌ مُّتَغَيَّرٌ تَغَيُّرًا فَاحِشًا تَفْسُدُ صَلٰوتُهُ كَمَا قَرَءَ هٰذَا الْغُبَارُ مَكَانَ الْغُرَابِ وَكَذَا اِنْ لَّمْ يَكُنْ مِثْلُهُ فِي الْقُرْاٰنِ وَلَا مَعْنٰى لَهُ كَمَا اِذَا قَرَءَ يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِلُ مَكَانَ السَّرَآئِرُ وَاِنْ كَانَ مِثْلُهُ فِي الْقُرْاٰنِ وَالْمَعْنٰى بَعِيْدٌ وَلَمْ يَكُنْ مُّتَغَيِّرًا تَغَيُّرًا فَاحِشًا تُفْسِدُ نَحْوُ اِنَّا كُنَّا غَافِلِيْنَ مَكَانَ فَاعِلِيْنَ وَهُوَ الْاَحْوَطُ وَقَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ لَاتَفْسُدُ لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰى وَلَايُقَاسُ مَسَآئِلُ زِلَّةِ الْقَارِئ بَعْضُهَا عَلٰى بَعْضٍ اِلَّا بِعِلْمٍ كَامِلٍ فِي اللُّغَةِ وَاِنْ بَدَّلَ حَرْفًا مَكَانَ حَرْفٍ الْاَصْلُ فِيْهِ اِنْ كَانَ بَيْنَهُمَا قُرْبُ الْمَخْرَجِ اَوْكَانَا مِنْ مَّخْرَجٍ وَّاحِدٍ لَاتَفْسُدُ كَمَا اِذَا قَرَءَ تَكْهَرْ بِالْكَافِ مَكَانَ تَقْهَرْ اَمَّا اِذَا قَرَءَ مَكَانَ الذَّالِ ظَآءً اَوْمَكَانَ الضَّادِ ظَآءً اَوْعَلَى الْقَلْبِ فَتَفْسُدُ صَلٰوتُهُ وَعَلَيْهِ اَكْثَرُ الْاَئِمَّةِ

وَرُوِیَ عَنْ مُحَمَّدِبْنِ سَلْمَةَ لَاتَفْسُدُ لِاَنَّ الْعَجَمَ لَايُمَيِّزُوْنَ وَكَانَ الْقَاضِي
الشَّهِيْدُ الْمُحْسِنُ يَقُوْلُ الْاَحْسَنُ فِيْهِ اَنْ يَّقُوْلَ اِنْ جَرٰی عَلٰی لِسَانِهِ وَلَمْ يَكُنْ
مُمَيِّزًا وَفِیْ زَعْمِهِ اَنَّهُ اَدَّی الْكَلِمَةَ عَلٰی وَجْهِهَا لَاتَفْسُدُ وَكَذَا رُوِیَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ
الْمُقَاتِلِ وَعَنِ الشَّيْخِ الْاِمَامِ اِسْمٰعِيْلَ الزَّاهِدِ وَفِی الذَّخِيْرَةِ اِنْ لَّمْ يَكُنْ بَيْنَ
الْحَرْفَيْنِ اِتِّحَادُ الْمَخْرَجِ وَلَاقُرْبُهُ اِلَّا اَنَّ فِيْهِ بَلْوٰی عَآمَّةٌ نَحْوُ اَنْ يَّاْتِیَ بِالذَّالِ
مَكَانَ الضَّادِ اَوْ بِالزَّایِ الْمَحْضِ مَكَانَ الذَّالِ اَوِالظَّآءِ مَكَانَ الضَّادِ لَاتَفْسُدُ
عِنْدَ بَعْضِ الْمَشَايِخِ وَفِیْ قَطْعِ الْكَلِمَةِ بِاَنْ يَّقُوْلَ اَلْ فَانْقَطَعَ ثُمَّ قَالَ حَمْدُ لِلّٰهِ
فَقَدْ كَانَ الْاِمَامُ شَمْسُ الْاَئِمَّةَ الْحَلْوَانِیُّ يُفْتِیْ بِالْفَسَادِ وَعَامَّةُ الْمَشَايِخِ قَالُوْالَا
تُفْسِدُ لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰی اَمَّا الْوَقْفُ فَلَا يُوْجِبُ فَسَادَ الصَّلٰوةِ اَيْضًا لِعُمُوْمِ الْبَلْوٰی
عِنْدَ عَامَّةِ عُلَمَآئِنَا وَعِنْدَ بَعْضٍ تَفْسُدُ نَحْوُ اَنْ يَّقْرَءَ لَآ اِلٰهَ وَوَقَفَ وَابْتَدَاَ بِقَوْلِهٖ
اِلَّا هُوَ اَوْقَرَءَ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَوَقَفَ وَابْتَدَءَ
وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوْا اللهَ اَوْقَرَءَ وَيُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَقَفَ وَابْتَدَاَ وَقَرَاَ وَاِيَّاكُمْ
اَنْ تُوْمِنُوْا بِاللهِ اِلٰی غَيْرِ ذٰلِكَ وَلَوْ وَصَلَ حَرْفًا مِنْ كَلِمَةٍ بِكَلِمَةٍ اُخْرٰی بِاَنْ قَرَءَ
اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّا كَنَسْتَعِيْنُ اَوْاِنَّا اَعْطَيْنَا كَلْكَوْثَرَ اَوْاِذَا جَآءَ نَصْرُ اللهِ وَمَا اَشْبَهَ
ذٰلِكَ لَاتَفْسُدُ عَلٰی قَوْلِ الْعَامَّةِ وَعَلٰی قَوْلِ بَعْضِ الْمَشَايِخِ تَفْسُدُ وَبَعْضُ

اَلْمَشَايِخِ قَالُوْا اِنْ عَلِمَ اَنَّ الْقُرْاٰنَ كَيْفَ هُوَ اِلَّا اَنَّهٗ جَرٰى عَلٰى لِسَانِهٖ هٰذَا لَاتَفْسُدُ وَاِنْكَانَ فِىْ اِعْتِقَادِهٖ اَنَّ الْقُرْاٰنَ كَذٰلِكَ تَفْسُدُ وَذُكِرَ فِى الْمُلْتَقَطِ اَنَّهٗ لَوْقَرَءَ اَلْهَمْدُ لِلّٰهِ بِالْهَاءِ اَوْقَرَءَ كُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ وَلَايَقْدِرُ عَلٰى غَيْرِهٖ تَجُوْزُ صَلٰوتُهٗ وَلَوْقَرَءَ قُلْ اَعُوْذُ بِالدَّالِ اَوْقَرَءَ فَسَآءَ صَبَاحُ الْمُنْذِرِيْنَ بِكَسْرِ الذَّالِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ قَرَءَ الْاَلْثَغُ لَبِّ مَكَانَ رَبِّ لَاتَفْسُدُ وَعَنْ اَبِىْ حَنِيْفَةَ فِىْ مَنْ قَرَءَ وَاِذَابْتَلٰى اِبْرٰهِيْمُ رَبَّهٗ بِضَمِّ الْمِيْمِ وَفَتْحِ الْبَآءِ اَوِالْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ بِفَتْحِ الْوَاوِ اَوْ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَايُطْعِمُ بِفَتْحِ الْعَيْنِ فِى الْاَوَّلِ وَكَسْرِهَا فِى الثَّانِىْ لَاتَفْسُدُ وَاِنْ زَادَ حَرْفًا اِنْ لَّمْ يُغَيِّرِ الْمَعْنٰى لَاتَفْسُدُ وَاِنْ غَيَّرَ الْمَعْنٰى نَحْوُ اَنْ يَّقْرَءَ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسِلِيْنَ وَاِنَّ سَعْيَكُمْ لَشَتّٰى تَفْسُدُ وَيَنْبَغِىْ اَنْ لَّاتَفْسُدُ وَذُكِرَ فِىْ زِلَّةِ الْقَارِىْ لِلشَّيْخِ حِسَامِ الدِّيْنِ اَبِىْ سَعِيْدِبْنِ اَسْعَدِ النَّسَفِيِّ وَلَوْقَرَءَ اَللّٰهُ السَّمَدُ بِالسِّيْنِ مَكَانَ الصَّادِ لَاتَفْسُدُ وَهٰذَا اِخْتِيَارُ نَجْمُ الدِّيْنِ عُمَرَ النَّسَفِيِّ وَلَوْقَرَءَ عَتّٰى مَكَانَ حَتّٰى لَاتَفْسُدُ وَلَوْقَرَءَ سَمِعَ اللّٰهُ لِمَلْحِمَدَهٗ يُرْجٰى اَنْ لَّاتَفْسُدَ وَلَوْ قَرَءَ يَدْعُ الْيَتِيْمَ بِتَسْكِيْنِ الدَّالِ اَوْبِضَمِّ الدَّالِ وَتَرْكِ التَّشْدِيْدِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْلَمْ يَقِفْ وَوَصَلَ قَالَ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ تَفْسُدُ وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ الْمُبَارِكِ وَاَبِىْ حَفْصِ الْكَبِيْرِ الْبُخَارِيِّ وَمُحَمَّدِبْنِ الْمُقَاتِلِ وَجَمَاعَةٍ مِّنَ الْوَاوِزَةِ اَنَّهٗ لَاتَفْسُدُ وَكَذَا اَفْتٰى

اَبُوْ نَصْرِ الْمَاتُرِيْدِیْ وَلَوْ قَرَءَ اِنَّ اللهَ بَرِیْءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ وَرَسُوْلِهٖ بِكَسْرِ اللَّامِ لَاتُفْسِدُ وَلَوْ قَرَءَ اِنَّا كُنَّا مُنْذَرِيْنَ بِفَتْحِ الذَّالِ تُفْسِدُ قَطْعًا وَذُكِرَ فِيْ فَتَاوٰی قَاضِيْخَانَ وَلَوْ قَرَءَ يَدْعُ الْيَتِيْمَ بِتَسْكِيْنِ الدَّالِ تُفْسِدُ وَلَوْ قَرَءَ يَتْخُلُوْنَ بِالتَّآءِ مَكَانَ الدَّالِ تُفْسِدُ وَلَوْ قَرَءَ اِنَّا خَلَقْنَا مَكَانَ اِنَّا جَعَلْنَا اَوْقَرَءَ اِيَاكَ نَعْبُدُ بِغَيْرِ التَّشْدِيْدِ لَاتُفْسِدُ عِنْدَ الْمُتَاَخِّرِيْنَ وَلَوْ قَرَءَ مَاضْطُرِرْتُمْ بِالزَّايِ اَوْبِالظَّآءِ اَوْبَالذَّالِ تُفْسِدُ وَلَوْ قَرَءَ اِلَّا مَاضْتُرِرْتُمْ باالتَّآءِ لَاتُفْسِدُ عِنْدَ الْمُتَاَخِّرِيْنَ وَلَوْ قَرَءَ مَاضْطُرِرْتُمْ بِالزَّايِ اَوْبِالظَّآءِ اَوْ بَالذَّالِ تُفْسِدُ وَلَوْ قَرَءَ اَللّٰهُمَّ سَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ بِالسِّيْنِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْقَرَءَ مَاوَدَعَكَ بِتَرْكِ التَّشْدِيْدِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْتَرَكَ التَّشْدِيْدَ فِی الرَّبِّ تَفْسُدُ وَلَوْ قَرَءَ كَيْدَهُمْ فِیْ تَظْلِيْلِ بِالظَّآءِ تَفْسُدُ وَلَوْ قَرَءَ بِالذَّالِ الْمُعْجَمَةِ لَاتَفْسُدُ وَلَوْ قَرَءَ حَمَّالَةَ الْحَتَبِ بِالتَّآءِ تَفْسُدُ وَلَوْ قَرَءَ مِنَ الْجَنَّةِ وَالنَّسِ بِنَصْبِ الْجِيْمِ لَاتَفْسُدُ.

**ژباړه:** په دې کې اصلي قاعده داده که چېرې د دې غلط لفظ مثل په قرآن کې نه وي او د هغه لفظ معنٰی د قرآني لفظ د معنٰی څخه ډېره لیرې او زیاته متغیره وي نو د دې غلط لفظ ویونکې لمونځ فاسدیږي لکه څنګه چې څوک د غراب په ځای غبار ووايي او دغه حکم دی که چېرې د هغه مثل په قرآن کې نه وي او دا لفظ هیڅ معنٰی نه لري لکه" یوم تبلی السرائر "په ځای سرائل ووايي او که چېرې د دې لفظ مثل په قرآن کې وي او معنٰی یې بعیده وي مګر ډېره متغیره نه وي نو بیا هم لمونځ

فاسديږي مثلاً (انا كنا فاعلين) په ځای غافلين ووايي او په دې قول كي زيات احتياط دی، ځينو علماؤ ويلي دي چي د عموم بلوی په وجه په دې صورت لمونځ نه فاسديږي، د زلة القاري مسائل په يو بل نه قياس كيږي مګر دا چي د لغت عربيه كامل علم لري او كه چيري د يوه حرف پر ځای بل حرف ووايي نو په دې كي دا قاعده ده كه چيري د دې دوو حروفو په مابينځ كي قريب مخرج وي يا د يوه مخرج څخه وي نو نه فاسديږي لكه څنګه چي يو څوک د فلا تقهر پر ځای تكهر ووايي او كه چيري يې د ذال پر ځای ظاء او ضاد پر ځای ظاء وويل نو د هغه لمونځ فاسديږي او په دغه باندي د ټولو علماؤ فتوی هم ده، د محمد بن سلمه رضي الله عنه څخه روايت سوی دی چي نه فاسديږي ولي چي عجمي خلک په دې كي تميز نه سي كولی او امام قاضی شهيد الحسن رحمه الله ويلي دي چي په دې مسئله كي بهتره داده چي داسي وويل سي چي د خلګو په ژبه كه چيري داسي غلط جاري وي او عام خلک د دې حروفو په منځ كي تميز نه سي كولی يا د هغه په ګمان كي دا كلمه په خپله طريقه باندي ادا كړه نو نه فاسديږي او دغه ډول قول د امام محمد بن مقاتل او امام اسماعيل زاهد څخه روايت دی ، په ذخيره كي راغلي دي كه چيري د دوو حروفو په منځ كي اتحاد مخرج او قريب نه وي مګر د دې حروفو په غلط ويلو كي عام خلک ګرفتار وي لكه د ضاد پر ځای ذال يا د ذال پر ځای خالص زا او يا د ضاد پر ځای ظاء ووايي نو د ځينو علماؤ په نز په دې سره لمونځ نه فاسديږي، د يوې كلمې په ټوكړې ټوكړې كولو كي لكه د اَل په ويلو سره يې كلمه قطع كړه بيا يې حمدلله وويل نو په دې باره كي شمس الائمه حلواني رحمه الله د فساد حكم كړی دی .

عام مشائخ وايي چي د عموم بلوی په وجه نه فاسديږي او وقف هم د عموم بلوی په وجه د علماء وو په نِز لمونځ نه فاسده وي د ځينو په نِز فاسديږي لكه چي لااله يې ووايه او وقف يې وكړ او بيا د الا هو څخه يې شروع كړه" ولقد وصينا الذين اوتوا

الکتب من قبلکم یې ووایه او وقف یې وکړ بیا یې وتړ ثم ان التقوالله څخه شروع کړیا ویخرجون الرسول یې ووایه وقف یې وکړ او وایاکوم ان تؤمنوا بالله ربکم څخه یې شروع وکړه وغیر وغیره. که یې چېرې د یوې کلمې حرف د دوهمې کلمې سره یوځای کړ مثلاً ایاک نعبد وایاک نسعتین یا انا اعطینا کلکوثر یا اذاجاء نصرا الله یا د دې په مثل بل نو د عامو علماؤ په نز لمونځ فاسدیږي او د ځینو علماؤ په نز لمونځ نه فاسدیږي او ځیني علماء وایي که چېرې دا وګڼي چې قرآن په صحیح ډول څنګه چې وي مګر د هغه په ژبه دغه ډول راځي نو لمونځ نه فاسدیږي او که چېرې د هغه یقین وي چې د قرآن لفظ دا ډول دی نو فاسدیږي او په ملتقط کې ذکر دي که چېرې هغه الهمد لله یا کل هو الله احد وویل او د هغه څخه علاوه په ویلو قادر نه وو نو د هغه لمونځ جائز دی او که چېرې یې د دال سره اعوذ یا فساء صباح المنذرین د ذال په کسرې سره یې ووایه نو لمونځ فاسد نه دی او که چېرې هکلا د چا په ژبه کې لکنت وي د رب پر ځای لب ووایي نو نه فاسدیږي، د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله څخه روایت دی چې په دې باره کې چې د میم کومه ضمیمه او د باء د فتحې سره واذبتلی ابراهیم ربه یا د واؤ د فتحې سره الخالق البارئ المصور یا د اول عین د فتحې او د ثاني د کسره سره، هو یطعم ولا یطعم ووایي نو لمونځ یې نه فاسدیږي او که چېرې یې دیوه حرف زیادت وکړ نو که په دوی کې تبدیلي نه وي نو نه فاسدیږي او که معنٰی یې بدله سوه لکه وانک لمن المرسلین او وان سعیکم لشتٰی یې ووایه په دې آیاتو کې د واو په زیادت سره په معنٰی کې تغیر دا ډول سو چې اوس دا ځواب قسم نه سي جوړېدی حالانکې دا دواړه آیاتونه د ماقبل لپاره ځواب واقع سوي دي نو لمونځ فاسدیږي او مناسب قول دادی چې فاسد نه وي ولې چې دا تغیر فاحش نه دی، د زلة القاری په مسائل کې شیخ حسام الدین ابوسعید بن اسعد النسفي رحمه الله ذکر کړي دي که چېرې د صاد پر ځای د سین سره الله السمد

ووايي نو نه فاسديږي او دغه قول نجم الدين عمر النسلي رحمه الله اختيار کړی دی ، که چیر د حتّٰی پر ځای عتّٰی ووايي نو نه فاسديږي او که يې سمع الله لمل حمده ووايه نو اميد دی چي نه فاسديږي او که چېري د شد پر ځای د دال سکون يا د ضمې سره يدع اليتيم ووايي نو د عام ګرفتارۍ په سبب لمونځ نه فاسديږي او که ان الذين اٰمنوا وعملوا الصلحٰت يې ووايه او د وقف کولو وروسته اولٰئک اصحاب الجحيم يې ووايه نو نه فاسديږي او که چېري د وقف بغير په يوځای کيدو سره نو د عامو علماء وو فتوٰی د فساد ده او د عبدالله بن مبارک، ابوحفص الکبير البخاری محمد بن مقاتل او مراوزه علماؤ د يوه جماعت څخه روايت دی چي نه فاسديږي، دغه ډول د ابونصر الماتريدی رحمه الله فتوٰی هم ده، مروه په ملک فارس کي ۵ يوه ښار نوم دی چي کله د هغه وطرف ته نسبت کوي نو مروزی ويل کيږي چي د هغه جمعه مراوزه ده، که چېري د ان الله بریءٌ من المشرکين ورسوله د لام د کسرې سره يې ووايه نو نه فاسديږي او که چېري يې انا کنا منذرين د ذال د فتحې سره يې ووايه نو يقيناً فاسديږي او په فتاوٰی قاضيخان کي ذکرسوي دي که چېري د دال د سکون سره يدع اليتيم ووايي نو فاسديږي او د دال پر ځای د تاء سره يتخلون ووايي نو فاسديږي او که چېري د انا جعلنا پر ځای انا خلقنا يا بغير د شد اياک نعبد ووايي نو د متاخرينو علماؤ په نِز نه فاسديږي او که يې چېري مااضطررتم د زاء يا ظاء ياذال سره ووايه نو فاسديږي او ما اضتررتم د طاء پر ځای د تاء سره يې ووايه نو نه فاسديږي او که چېري من ختف الختفة د تاء سره يې ووايه نو فاسديږي او که چېري قل هو الله احت په تاء سره يې ووايه نو فاسديږي او که چېري اللهم سَل علی محمد په سين سره يې ووايه نو نه فاسديږي او که يې شد پرې ښووی مَاودعک يې ووايه نو نه فاسديږي او که په رب کي يې شد پرېښووی نو فاسديږي، که چېري په ظاء سره کيدهم فی تضليل يې ووايه نو فاسديږي او که يې په ذال معجمه سره تذليل

ووايه نو نه فاسديږي او كه حمالة الحتب په تاء سره يې ووايه نو فاسديږي او كه يې د جيم په فتحه سره من الجنة والناس ووايه نو لمونځ نه فاسديږي.

تَمَّ الْكِتَابُ بِعَوْنِهٖ تَعَالٰى

وَصَلَّى اللّٰهُ تَعَالٰى عَلٰى رَسُوْلِ خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّاٰلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ بِرَحْمَتِكَ يَا اَرْحَمَ الرَّاحِمِيْنَ. يَارَبِّ لَكَ الْحَمْدُ كَمَا يَنْبَغِيْ لِجَلَالِ وَجْهِكَ وَلِعَظِيْمِ سُلْطَانِكَ.

**ژباړونکی**

**حافظ مولوي نور احمد حقاني**